(حقوق طبع د مصنف د پاره محفوظ دی)

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ

تفسیر

# احسن الکلام

بلغۃ البشتو

للشیخ ابی زکریا عبد السلام الرستمی

الجزء الرابع

(څلورم جزء)

من سورۃ مائدہ الی سورۃ توبه


الناشر:
جامعۃ عربیۃ لاشاعۃ التوحید والسنۃ
بده بیر - پشاور

سورة المآئدة مدنیة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیاتها ١٢٠ رکوعاتها ١٦

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړم په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ اُحِلَّتْ

اے ایمان والو! پوره کړئ لوظونه، حلال کړے شوی

المنزل ٢

بسم الله الرحمٰن الرحیم

سورة المآئدة: او د دے نور نومونه سورة العقود او سورة المنقذة دی۔

ربط د دے د مخکښې سورت سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه مخکښې سورت کښې رد دے په مظالمو د جاهلیت په باره د کمزورے مخلوق کښې او س رد کوی په مظالمو د جاهلیت باندے په باره د حِل او حرمت کښې۔ دویمه وجه داده چه په هغه سورت کښې خطاب عام وؤ د پاره د کمال د انسانیت نو په دے سورت کښې خطاب خاص دے د پاره د کمال د ایمان۔ دریمه وجه داده چه په مخکښې سورت کښې ذکر شول قبائح د یهودو او رد وؤ په شرک د نصاریٰ باندے نو په دے سورت کښې نهی ده د هغوی د موالات (دوستانے) نه او د هغے نور اسباب ذکر کوی او شهادت د عیسیٰ علیه السلام ذکر کوی په ورځ د قیامت د پاره د رد په نصاریٰ باندے۔

دعویٰ د سورت: امر په وفاء د عقودو ایمانیو عمومًا او په باره د تحلیل و تحریم کښې خصوصًا سره د رد کولو نه په هغه کسانو باندے چه وفا ئے په عقودو نه ده کړے چه یهود او نصاریٰ دی۔ او رد دے په اقسامو د شرک باندے یعنی شرک فی التصرف، شرک فی العلم، شرک فی العبادت، شرک فی التحلیل والتحریم۔ او د معرفتِ الٰهیه د پاره ئے شپاړس اسماء حسنیٰ ذکر کړے دی۔

خلاصه د سورت په طریقه د اجمال سره داده چه شپاړس کرته یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا ئے ذکر کړے او دا عقودِ ایمانیه دی او وه اوامر شپږ نواهی درے اخبارات۔ او د سورت په اول او اخر کښې خطابات دی د پاره د مؤمنانو او په مینځ کښې تفصیل د قبائحو د اهلِ کتابو او دعوت دے نصاریٰ ته۔

خلاصه تفصیلی داده: چه په سورت کښې درے حصے دی اوله حصه تر ٧٧ پورے ده په دے کښې دوه بابونه دی اول باب تر ٤٤ پورے دے په دے کښې پنځه خطابات دی مؤمنانو ته او هغه عقود دی چه په هغے کښې رد دے په شرک

لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ

تاسو لره څاروي مګر هغه چه لوستلے کیږي په تاسو باندے

غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ط

مه کیږئ حلال ګڼړونکي دَ ښکار چه تاسو په حال دَ احرام کښې يئ.

إِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ ۝۱ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

يقينًا الله تعالىٰ فيصله کوي هغه چه اوغواړي. اے ایمان والو

في التحليل والتحريم باندے. په اول ایت کښې رد دے په تحريم لغير الله او ذکر دَ تحريم الٰهي دے او په ۲ کښې ذکر دَ ادب دے په باره تحريمات الٰهيو کښې چه هغے ته نذور الٰهيه هم وئيلے کيدے شي او په ۳ کښې تفصيل دے دَ تحريماتو چه په هغے کښې رد دے په نذر دَ غير الله باندے او په ۴، ۵ کښې نور تحريماتِ الٰهيه ذکر کوي او په ۶ کښې دريم خطاب دے په باره دَ طهارتِ بدنيه کښې او په ۷ کښې ترغيب دے په ايفاءِ عقود باندے او په ۸ کښې څلورم خطاب دے په باره دَ استقامت او عدل کولو کښې او په ۹ کښې بشارت او په ۱۰ کښې تخويف اخروي دے او په ۱۱ کښې پنځم خطاب دے په باره دَ شکر دَ نعمتونو دَ الله کښې دَ باره دَ ترغيب دَ ايفاء دَ عقودو. او په ۱۲ کښې ذکر دے دَ عقودو دَ بني اسرائيلو چه پنځه دي او په ۱۳ کښې دَ هغے عقودو دَ ماتولو دَ وجے نه پنځه عذابونه دنيوي ذکر دي او په ۱۴ کښې دَ نصاراى نقضِ عقود سره دَ يو عذاب نه ذکر شويدے.

تفسير:

۱ عُقُوْد هغه ټول احکام دي چه په تقاضا دَ ايمان سره په قرآن او سنت کښې لازم شويدي عمومًا او په باره دَ تحليل او تحريم کښې خصوصًا او هر کله چه دا سورت نازل شوے دے په وخت دَ فتح مکه کښې او دَ مشرکانو رسوم شرکيه دَ حلال او حرام په هغه وخت کښې رائج وو نو اول ئے رد اوکړو په شرک فعلي (شرك في التحليل والتحريم) باندے. او فرق په مينځ دَ عقود او عهود کښې دا دے چه عقود خاص دي په ايمان والو پورے او عهود عام دے هر هغه چا ته چه اسماني کتاب ئے منلي وي که کتابي کافر وي او که مؤمن وي کَ دے وجے نه په سورة بقره ۴۰ کښې "اوفوا بعهدي" وئيلے دے. بَهِيْمَةُ الْأَنْعَامِ بهيمه دَ بهم نه ماخوذ دے

لَا تُحِلُّوا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ

بے عزتي مه کوئ دَ نخو دَ الله تعالىٰ او نه دَ میاشت دَ عزت

وَلَا الْهَدْیَ وَلَا الْقَلَآئِدَ وَلَآ آٰمِّیْنَ

او نه دَ قربانئ او نه دَ امیل والو ځاروؤ او نه دَ قصد کوونکو

الْبَیْتَ الْحَرَامَ یَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ

دَ کور دَ عزت والا چه طلب کوی فضل دَ رب خپل

هغه څیز ته وئیلے شی چه ژبه یې وی لیکن خبرے نشی کولے او اَنْعَام دَ نعَم نه دے څرندونکے مال ته وئیلے شی او دَ دوارو مصداق یو دے یعنی ځاروی (چارپایه) او دا اضافت بیانیه دے په لفظ دَ بهیمه کښ معنی دَ عموم ده چه هغه یې په لفظ دَ جنس سره (مفرد) ذکر کړو او په لفظ دَ انعام کښ ډیرو قسمونو ته اشاره وه دَ دے وجے نه هغه یې جمع ذکر کړله۔ اُحِلَّتْ دَ مطلق تحلیل دَ پاره استعمالیږی لیکن دلته کښ مراد دَ دے نه رد دے دَ مشرکانو په تحریم لغیرالله باندے چه هغوی بحیره او سائبه وغیره په ځان باندے حرام کنړل دا رنګ معالم التنزیل کښ وئیلے دی۔ غَیْرَ مُحِلِّی الصَّیْدِ دَ دے په نصب (زور ورکولو) کښ اختلاف دے۔ حال دے دَ ضمیر دَ لکم نه په طریقه دَ استثناء سره که لفظ دَ بهیمة الانعام شامل وی صید ته نو استثناء متصل ده او که شامل نه وی نو استثناء منقطع ده لیکن غوره دا ده چه دَ دے فعل محذوف دے (کونوا) او دا رنګ ابن مالک په الفیه کښ وئیلے دی چه عرب کان سره دَ اسم نه حذف کوی او خبر باقی پریږدی او دا توجیه ځکه غوره ده چه دا مستقلے مسئلے ته اشاره ده چه هغه تحریم الٰهی دے چه دَ دے سورت دَ سلګ نه په تفصیل سره ذکر کیږی۔ اِنَّ اللّٰهَ یَحْکُمُ مَا یُرِیْدُ دا علت دے چه حکم کښ تحلیل او تحریم په اجمالی طریقے سره وو او په دے کښ رد دے په معتزلو باندے هغوی وائي چه په الله تعالىٰ باندے په احکامو شرعیو کښ مصلحت دَ بندګانو واجب دے نو دا غلطه خبره ده۔

وَرِضْوَانًا ؕ وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَلَا

او رضا مندی ۔ او کله چه اوځئ د احرام نه نو ښکار کوئ (که خوښه موشی)۔ او نه دے

يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ

تیزوی تاسو بُغض (دُشمنی) د یو قوم په دے وجه چه منع کړیوئ تاسو

عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ

د مسجد حرام نه چه د حد نه تیر شئ ۔

وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۖ وَلَا تَعَاوَنُوْا

او مدد کوئ د یو بل سره په نیکئ او تقوی کښ او مدد مه کوئ د یو بل سره

عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ

په گناه او د ظلم په کارونو کښ او یرهٔ کوئ د الله تعالیٰ نه ۔

اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ حُرِّمَتْ

یقیناً الله تعالیٰ سخت عذاب والا دے ۔ حرام کړیشوه

سلا په دے ایت کښ حکم ذکر کوی د هغه څیزونو چه د حرم کعبه سره ئے تعلق وی که مکان وی اوکه زمان وی څاروی وی اوکه انسانان (چه د هغے له تعبیر کیږی شی په نذورِ الٰهیه سره) اوپه دے کښ درے منهیات اودرے مأمورات دی او دا د عقودو له دویم عقد دے۔ لَا تُحِلُّوْا احلال د حرمت خلاف کولو ته وئیلے شی او حرمت دوه قسمه دے یو قسم منهیات دی نو په هغے کښ احلال په معنی ارتکاب د منهی عنه دے او دویم قسم حُرمت په معنی د احترام اود عزت دے نو په هغے کښ احلال په معنی د بے احترامئ او بے عزتئ کولو دے دلته دویمه معنی مراد ده۔ شَعَآئِرَ اللّٰهِ شعائر جمع د شعیرت ده هر هغه څیز چه په هغے سره بل څیز معلومیږی یعنی خاص علامت اولښے ته وئیلے شی۔ بیا د هر دین او مسلك د پاره خاص خاص علامات وی چه په هغے سره هغه دین اود هغه دین والا خلق معلومیږی لکه د هندوانو د دین نخه مندار (درمسال) او زِنار په غاړه کول دی اود سیکانو نخه توره کرپان او سرے وغیره ساتل دی اود انګریزانو نخه صلیب ساتل اوکرجا وغیره ده

نودا رنګ د دین اسلام د پاره خاص علامات دی لکه مساجد، مونځونه، مناسك د حج (صفا مروه، منی، مزدلفه، عرفات، بُدن، قربانی، قلائد) قران کریم او نور عبادات شرعیه چه دا ټول سبب د تقرب د الله تعالیٰ دی او مسلمان په دے اعمالو سره معلومیږی. نو د دے شعائرو بے عزتی کول حرام دی او د دے ذکر په سورۃ بقره ۱۵۸ او سورۃ حج ۳۲،۳۶ کښی شوے دے. وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ لا د پاره د تاکید د نهی دے. الشَّهْرَ مفرد په معنی د جمع سره دے او هغه څلور میاشتے دی لکه سورۃ بقره ۱۹۴،۲۱۷ او سورۃ توبه ۳۶ کښی دی. الْحَرَامَ یعنی حرمت والادی چه په هغې کښی قتال کول حرام دی او نور فسادونه پکښی په تاکید سره حرام دی. او د اهلِ علمو اختلاف دے چه قتال په میاشتو د حرمت کښی اوس هم حرام دے او یا منسوخ شوید ے اوبل قول په کښی دا دے چه ابتداء د قتال په کښی اوس هم حرام دہ اګرچه جوابی قتال په کښی جائز دے. وَلَا الْهَدْيَ دا نوم د هغه څاروی دے چه احرام کوونکے د عمرے یا د حج ئے په طریقه د هدیئے سره حرم مکه ته اوړی یائے د چا په لاس باندے لیږی د هغې بے حرمتی کول (په لاره کښی نیول یا ذبح کول مخکښی د رسیدلو نه حرم ته) ناجائز دی. وَلَا الْقَلَائِدَ دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه یعنی هدی عام دہ او قلائد هغه څاروی وی چه د هغې سټ ته ئے څه علامت اویزان کړے وی او حرم ته ئے اوړی یا لیږی نو د هغې بے حرمتی کول هم حرام دی. وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ یعنی څوک چه د عمرے یا د حج قصد کوی نو د هغوی منع کول او د هغوی بے حرمتی کول حرام دی او په دے کښی دوه قوله د اهلِ علمو دی اول دا چه دا لفظ مشرکانو ته هم شامل دے نو بیا په هغې کښی نسخ (تخصیص) کړے شوید ے په سبب د آیت "فلا يقربوا المسجد الحرام" سره دویم قول دا دے چه مراد د دے نه صرف مؤمنان دی په دلیل د دے چه ورضوانا خاص دے په مؤمنانو پورے او د حسن بصری نه خطیب شربینی روایت راوړے دے چه په سورۃ مائده کښی منسوخ نیشته نو بنا په دے باندے دویم قول غوره دے وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا په دے کښی اشاره دہ چه د صید حرمت خاص دے په حرم او احرام پورے د هغې حرمت همیشه نه دے او امر د اصْطَادُوا د پاره د اباحت دے. او ابن کثیر وئیلی دی چه دا امر دے روستو د منع نه نو کله مخکښی د منع نه یو څیز واجب وی نو روستو د نهی نه به امر د پاره د وجوب وی او کله مخکښی د پاره د اباحت وی نو روستو به هم د پاره د اباحت وی نو امر د صید مخکښی هم

د پاره د اباحت وو نو روستو په هم د پاره د اباحت وي يعنې هر امر روستو د نهي نه
د پاره د اباحت نه دے ـ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اه دا تعلق لري د آمين البيت الحرام
سره او عطف دے په لا تحلوا باندے ـ مقصد دا دے چه په واقعه د حديبيه کښې
مشرکانو مؤمنانو لره د مسجد حرام نه منع کړل نو د هغوي په زړونو کښې د کافرانو سره
ډير بغض او دشمني پيدا شوه نو هرکله چه په اتم کال د هجرت باندے مکه مکرمه
فتح شوه او ډيرو مشرکانو ايمان راوړو نو هغوي عمرے او حج له راتلل نو شايد
چه د مؤمنانو په زړونو کښې دا خيال راغلے وي چه هرکله دوي مونږ لره د مسجد
حرام نه په واقعه حديبيه کښې منع کړے وو د دے وجے نه مونږ هم دوي لره
د مسجد حرام نه منع کوو نو الله تعالیٰ مؤمنانو لره د دے اراد ے کولو نه په دے
قول سره وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ منع کړل د دوه وجونه اول وجه دا وه چه دوي ايمان
راوړو او په ايمان راوړلو سره ټول ګناهونه معاف شول نو د هغوي سره بغض
او دشمني کول حرام شول دويمه وجه دا ده که چرے په دوي باندے عدوان او کړے
شي نو په هغے سره به د لا تحلوا شعائر الله اه مخالفت لازم شي يعنې د شعائر الله او
شهر حرام او هدي او قلائد او د قصد کوونکو د بيت الله بے عزتي به او کړے شي ـ
لَا يَجْرِمَنَّكُمْ د اجرام نه ماخوذ دے يعنې په کسب کولو د جرم باندے اماده کول
شَنَاٰنُ سخت بغض ته وئيلے شي ـ اَنْ صَدُّوْكُمْ په تقدير د لام سره دے يعنې
لِاَنْ علت دے د پاره د اجرام ـ يا په محل د صفت کښې دے د پاره د قوم ـ
اَنْ تَعْتَدُوْا دا دويم مفعول دے د پاره لا يجرمنکم او مراد د اعتداء نه هغوي
قتل کول يا هغوي لره د مسجد حرام نه منع کول او د هغوي د هدي او قلائد
بے احترامي کول دي ـ وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى يعنې د بغض په مقابله کښې
محبت کول ضروري دي او د محبت تقاضا تعاون کول دي د يو بل سره په بر
او تقوي باندے ـ بِرّ فعل او عمل کولو ته وائي په ماموراتو باندے او تقوٰى
ځان بچ ساتل دي د منهياتو د الله تعالیٰ نه نو په بِرّ کښې اول ايمان او توحيد
داخل دے او په تقوي کښې د شرک او بدعاتو نه ځان بچ ساتل داخل دي ـ
يا بِرّ په حقوق العباد کښې او تقوي په حقوق الله کښې ده ـ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ
وَالْعُدْوَانِ، اِثم پريخودل د اوامرو د الله تعالیٰ او عدوان ارتکاب د منهياتو دے
يا اثم هغه ګناهونه چه تعلق لري د حقوق الله سره او عدوان هغه ګناهونه چه تعلق لري
د حقوق العباد سره او په اثم کښې اول شرک او کفر او په عدوان کښې بدعت کول

عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنزِيرِ وَمَا أُهِلَّ

په تاسو باندے مرداره او وینه او غوښه د خنزیر او هغه څیز چه آواز اوچت

لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ

د مخلوق د غیر الله په هغے او مرئ (غاړه) خفه کړے شوے او ټکولے شوے او راغورځیدے

وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَ

او په ښکر وهلے شوے او هغه چه خوړلے وی درنده ځناور (ځناور) مګر هغه چه حلال ئے کړئ تاسو، او

مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَن تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ

هغه چه ذبح کړے شوی په درګاهونو د غیر الله، او هغه چه قسمت معلوموئ تاسو په غشو سره

ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ ۗ الْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن

دا (کارونه) نافرمانی ده لویه۔ نن ورځ نا امیده شول کافران د

دِينِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ۚ الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ

دین ستاسو نه پس مه یریږئ د دوی نه او یریږئ زما نه۔ نن پوره کړو ما

لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ

تاسو لره دین ستاسو او پوره کړو ما په تاسو باندے نعمت خپل او غوره کړے دے ما

لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ

تاسو لره اسلام دین۔ نو څوک چه ناچاره (مجبوره) کړے شو په سختۍ لوږه کښی

غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ ۙ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ③

نه وو دے کږیدونکے ګناه ته نو یقیناً الله تعالیٰ بخونکے دے رحم کوونکے دے۔

---

داخل دی. وَاتَّقُوا اللَّهَ تقوی په معنی د اطاعت دے۔

سـ۳ـ په دے آیت کښی تفصیل د محرماتو الهیو دے په ذکر د دولس محرماتو سره چه په هغے کښی مَا أُهِلَّ او ما ذبح علی النصب کښی نذر د غیر الله مراد دے چه هغه عمل د شرک دے. او دا رنګ دا تفصیل د مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ (چه په اول آیت کښی ذکر دی)

دے۔ حُرِّمَتْ په سورة بقره کښې حَرَّمَ معلوم صیغې سره ذکر کړے وو چه فاعل ئے الله تعالی دے نو دلته فاعل ذکر کولو ته حاجت پاتې نه شو. او دا څلور اصول د محرماتو د خوراك دی چه په ټولو ادیانِ سماویو کښې حرام دی او د دے تفصیل په تفسیر د سورة بقره ۱۷۳ کښې تیر شوید ے۔ وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ، په سورة بقره کښې بِهٖ مخکښې کړے وو د لغیرالله نه او دلته برعکس دے وجه دا ده چه هغه سورت پدے مسئله کښې اول سورت وو نو په هغې کښې رعایت د لفظ اوشو یعني تعدیت د اهل په لفظ بِهٖ سره او په دے سورت او سورة انعام او نحل کښې رعایت د معنی اوشو چه سبب د حرمت د ما اهل د وجے د غیرالله نه دے۔ وَالْمُنْخَنِقَةُ دا او د دے څلور ذیزونو تخصیص بعد التعمیم دے د لفظ د میتة نه او میتة عامه ده (هر هغه ښاروے چه نه وی ذبح کړے شوے په ذبح شرعي سره یا حرام وی شرعًا اگرچه ذبح شی په ذبح شرعي لکه سپے وغیره) - او دا پنځه هغه ښاروی دی چه شرعًا حلال دی لیکن ذبح ئے په ذبح شرعي سره نه ده کړے شوے نو مردار دی۔ او منخنقه عام دے که څوک ئے قصدًا پانسی کړی (په مرئ خفه کولو سره) یا پخپله دا سے اوشی۔ وَالْمَوْقُوذَةُ هغه ښاروے چه او وهلے شی په لرګی یا په کاڼه باندے او مړ شی او په دے کښې داخل دے هغه ښکار چه د غشی په پلنو سره اولړی " یعنی د غشی په تیرهٔ طرف نه بلکه په اوږدو سره اولړی " (او دا په حدیث صحیح کښې دی) او شربیني وئیلے دی چه هغه ښکار چه په بندقه سره اولړی هغه هم په دے کښې داخل دے (بندقه ګولئ د ټوپک ته وئیلے شی) ځکه چه هغه د دروند والی د وجے نه قتل کوی د تیرهٔ والی د وجے نه نه کوی. او په ښکار د شيِ ثقیل (دروند څیز) سره ابن کثیر ډیر تفصیل ذکر کړے دے۔ وَالْمُتَرَدِّيَةُ هغه چه د بره ځائے نه ښکته او غورزیږی د غر یا د کمر نه زمکے ته یا د زمکے نه کوهی ته او رغړی۔ وَالنَّطِيحَةُ هغه ده چه د بل ښاروی په ښکر سره او وهلے شی او مړهٔ شي اگرچه وینه د هغې د مرئ نه بهیدلے وی۔ فائده: په مخکښې درے الفاظو کښې تا د تانیث ده بِنا په دے چه اکثر د خوراك د پاره کړے بیزے او ښځے غوا (مؤنثات) استعمالیږی او په النطیحة کښې تا د پاره د تانیث نه ده ځکه چه په دے صیغه کښې تا نه استعمالیږی اگر چه مؤنث وی نو دا تا د پاره د نقل د وصفیت نه اسمیة ته ده۔ وَمَآ أَكَلَ السَّبُعُ سپے شرمښ ګیدړ پړانګ وغیره په دے کښې مراد دی هغوی که یو ښاروے او خوری اگرچه په مرئ کښې زخمی کړی او وینه تر ینه او بهیږی او مړ شی نو هم مردار دے۔

إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ دا استثناء متصل ده دَ المنخنقة اوما بعد نه ځکه چه هغه عام دے
چه روستو دَ دغه عوارضو نه په هغې کښې روح باقي وي اوکه نه وي نوکه روح پکښې
باقي وي او ذبح کړے شي په طريقه شرعيه سره نو حلال به وي يا استثناء منقطع
ده دا خطيب شربيني ليکلے دي. بعضو دا استثناء خاص کړيده ما اکل السبع پورے
ليکن تخصيص ته حاجت نيشته او بعض رَدَ دے وخت تحريف کوونکو "وما
اهل لغير الله به" ته خاص کړيده او وئيلے دي چه هغه په ذبح سره حلال کرزی
ليکن دا قول باطل دے او ابن ابي حاتم دَ علي رضي الله عنه نه نقل کړيدے
چه هر کله يو درنده يو ښکار وے (يا چرګ وغيره) اوخوري يعني زخمي ئے کړي او په هغې کښې ساه
باقي وي او ذبح شي او روستو دَ ذبح نه لګئي يا خپه اوخوزوي نو حلال به وي
دا رنګ ابن جرير هم وئيلے دي. وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ دا قِسم خاص دے دَ ما اهل
نه ځکه چه ما اهل مذبوح او غير مذبوح دوا ړو ته شامل دے او دا په مذبوح
پورے خاص دے دا رنګ دا قسم دَ نصب سره خاص دے او ما اهل لغير الله
ټول غير الله ته شامل دے که نصب وي او که بتان وي او که قبرونه.
پوهه شه: چه اصنام هغه بتان دي چه شکل دَ هغې جوړ کړے شوے وي او نصب
هغه څيزونه دي چه شکل دَ هغې نه وي جوړ کړے شوے ليکن دَ هغې عبادت
کيږي او په هغې باندے نذرانے اوشکرانے اچولے کيږي او په هغې باندے ذبح
کوي. ابن کثير دَ ابن جريج او مجاهد نه نقل کړيدي چه دا درے سوه شپيته ۳۶۰
ګټے وے دَ کعبے شريفے نه چاپيره دَ هغې په خوا کښې به جاهليت والو ذبح کوله او
دَ هغې وينے به ئے په بيت الله پورے مخلے او دَ هغې غوښے به ئے په نصب باندے
غوړولے (دَ پاره دَ تبرك) او بيا ئے وئيلے دي چه په دے ذبائحو باندے اګرچه
نوم دَ الله تعالى په وخت دَ ذبح کښې ذکر شي ليکن دا شرك دے. وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا
بِالْأَزْلَامِ استقسام قِسمت معلومول دي يا برخه معلومول. اَزْلام جمع دَ زلم ده
هغه غشے چه دَ هغې وزر او تيره څوکه نه وي صرف لرګے وي ابن جرير وئيلے دي
چه دا غشي (درے يا اووه) دَ هُبل بت په خوا کښې دَ کعبے په مينځ کښې به پراته وو
چا به چه خپل قسمت معلومول غوښتل مثلاً سفر اوکړم يا نه فلانے کار اوکړم
او که نه نو دَ هبل مجاور ته به لاړو او هغه ته به ئے اول سل درهمه اوبيا اوښه
پيش کړه په نذرانه کښې بيا به هغه مجاور دَ دۀ دَ پاره غشي راويستل په هغې باندے
مختلف ليکل موجود وو او هغه به دے شخص خپل يقيني قسمت ګڼړلو

او وئیل به یې چه دا ډ هبل (شهیں) فیصله ده. امام بخاری هم وئیلے دی چه هغه به دا لره منع کړو نو منع به شو او که امر به یې ورته اوکړو نو په هغې باندې به یې ضرور عمل کوؤ او دوی په هغه غشو باندې لیکلے وو. خطیب شربینی وئیلے دی چه درې غشي وو په یو باندې لیکلے وو اَمَرَنِي رَبِّيْ (زما رب ماته امر کړیدے) او په دویم باندې یې لیکلے وو نَهَانِي رَبِّيْ (زه خپل رب منع کړے یم) او دریم به بغیر د لیکلے نه وو نو دا دریم غشے چه به را اوتلو نو دوباره به یې غشي وهل. او امام بخاري روایت ذکر کړے دے چه په فتح مکه کښې صحابه کرامو بتان د کعبې نه را اوویستل نو په هغې کښې صورتونه د ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام وو او د هغوی په لاسونو کښې غشي ورکړے وو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل الله تعالی دِ دا مشرکان هلاک کړي دوی ته ښه معلومه ده چه ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام چرے استقسام بالازلام نه وو کړے. او د مجاهد نه ابن کثیر روایت را وړے دے چه مراد د دے غشي نه د جوارئ کول دي او دا رنګ سراج المنیر کښې هم ذکر دی نو د هغې یو مثال په دے زمانه کښې لاټری کول دی چه ډیر څیز د پاره د ډیرو خلقو نه روپئ واخلي او غشي یا بل څه په طریقه د قرعه (حسنړی) سره واچوي نو د یو کس را اوځي نو هغه څیز د هغه کس د پاره شي.

ذٰلِكُمْ فِسْقٌ دا اشاره ده ما قبل ذکر کړے شوے ټولو محرماتو ته یعنی استحلال (حلال ګنړل) د دے حرامو وتل دي د طاعت د الله تعالی نه بالکل یعنی کفر او شرک دے یا خوړل د دے محرماتو بغیر حلال ګنړلو نه لوئے ګناه ده او بعضِ مفسرینو ذٰلِكُمْ اشاره خاص کړے ده په استقسام بالازلام پورے لیکن عموم غوره دے. اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ مراد د الیوم نه زمانه حاضر د نزول د دے محرّماتو ده سرۀ د راتلونکو زمانو نه (قرطبی او سراج المنیر).

مِنْ دِيْنِكُمْ قرطبی وئیلے دی چه کافران نا امیده شول د رجوع ستاسو د دین ستاسو نه دین د مشرکانو ته خازن وغیره وئیلے دي چه د ابطال د دین ستاسو نه نا اُمیده شول ځکه د فتح مکه نه روستو قوت د اسلام زیات شو په مقابله د کافرانو کښې. دا رنګ په مخالفت د رسمونو شرکیو سره د مؤمنانو پوره تمیز راغے د مشرکانو نه او د مؤمنانو پوخوالے ثابت شو.

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ، الیوم نه مراد ورځ د جمعې ده چه ورځ د عرفه وه په مقام عرفات کښې روستو د مونځ د ظهر او عصر نه او دا ورځ د حج الوداع وه

اودَ سعید بن جبیر نه روایت دے چه نبی صلی الله علیه وسلم روستو دَ نزول دَ دے جملو نه یو اتیا ورځے ژوندے وؤ بیا وفات شو او دا سے روایت دَ ابن جریج نه ابن کثیر ذکر کړے دے او خطیب شربینی وائیلے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم وفات شویدے په دریمه شپه دَ ربیع الاول باندے. او معنیٰ دَ اکمال دین دا نه ده چه دَ دے نه روستو وحی بنده شوه بلکه مراد دا دے چه تر دے پورے فرائض او احکام تشریعیه او حلال او حرام بیان شول دَ دے نه روستو فرائض حلال حرام حدود نه دی نازل شوی او نوره وحی نازلیدله.

سوال: اکمال خو دلالت کوی چه تر دغه وخت پورے دین ناقص وؤ آیا نبی او صحابه کرامو به تر دغه وخت پورے په ناقص دین باندے عمل کوؤ او دا رنګ دَ دغه ورځ نه وړاندے چه کوم صحابه وفات شویدی نو دَ هغوی دین ناقص وؤ؟.

جواب: دین دَ نبی صلی الله علیه وسلم هره ورځ کامل وی په کمال سره تر خاص وخت پورے لیکن انتظار دَ نسخ یا دَ زیادت پکښی موجود وؤ او په دغه ورځ (دَ عرفے) کمال مطلقه راغے یعنی کامل دے دَ ورځ دَ قیامت پورے نه به منسوخ کیږی او نه به پکښی زیادت دَ احکامو راځی.

وَ اَتۡمَمۡتُ عَلَیۡکُمۡ نِعۡمَتِیۡ خازن وائیلے دی چه دغه اکمال دَ دین سبب دے دَ اتمام دَ نعمت ځکه دَ دینِ کامل (اسلام) نه زیات نعمت بل نیشته. او ابن قیمؒ وائیلے دی چه فرق دَ اکمال او دَ اتمام دا دے چه اکمال په اصولو او ذواتو کښی استعمالیږی او اتمام په فروعو او صفاتو کښی استعمالیږی دا رنګ دین اکثر په اصول کښی مستعملیږی او نعمت په فروعو او اوصافو کښی استعمالیږی نو دَ هر یو سره مناسب لفظ مستعمل شویدے. نو په دے کښی اشاره ده چه دینِ اسلام په اعتبار دَ اصول دَ احکامو سره پوره دے (لکه مونځ، روژه، زکوٰۃ، حج او جهاد وغیره) او په اعتبار دَ فروعو اوصفاتو دَ احکامو (لکه اوقات دَ عباداتو او مقدارونه او کیفیات) سره هم پوره دے. نو دَ دے وجے نه په دین کښی دَ اصولو او دَ عباداتو او دا رنګ دَ هغے دَ اوصافو زیاتے کول بدعت قبیحه دے او دَ غسے استدلال دَ امام مالک رحمة الله نه په واسطه دَ ابن ماجشون سره کتاب الاعتصام کښی علامه شاطبی رحمة الله نقل کړیدے چه هغه وئیلی "چا چه په دینِ اسلام کښی یو نوے عمل او قول پیدا کړو او دعوی کوی چه

يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ أُحِلَّ

تپوس کوی دوی ستا نه چه څه څیز حلال کړے شوے دے دوی لره - ته ورته او وایه، حلال کړے شوي

لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۙ وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ

تاسو لره پاک څیزونه، او هغه څیز چه تعلیم ورکړے وي تاسو دَ ښکار کوونکو ښکارونو نه

مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ ۖ

چه لیږونکي یئ تاسو خودنه ورکوئ تاسو هغوي ته دَ هغه څه نه چه خودنه کړیده تاسو ته الله تعالیٰ،

داخائسته کار دے نو دغه شخص گمان اوکړو چه نبی صلی الله علیه وسلم په رسالت (پیغام رسولو) کښ خیانت کړے دے ځکه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی "الیوم اکملت لکم دینکم الایة". نو په دے ایت کښ رد دے په هر بدعت او په هر مبتدع فی دین الله باندے او ملا علی قاری وئیلے دی په شرح فقه اکبر کښ چه دَ دے ایت دَ نزول نه روستو په تکمیل دَ دین کښ دَ قران او دَ حدیث نه سیوا بل څیز ته محتاج نه یو ځکه چه دین په دے دواړو کښ پوره شو بیا دے هاں په تشریح کښ نورو علمونو ته حاجت ضرورشته دے. وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا، الاسلام کښ الف لام عهدی دی یعنی هغه چه کامل او تام دے او دا سے په سورة العمران ۱۹ ۸۵ کښ تیر شوے دی. فَمَنِ اضْطُرَّ دا متعلق دے دَ تیر شوی محرماتو سره او په مینځ کښ جمله معترضه ده چه په هغے کښ څلور خبرے ذکر شوے (۱) خوراک دَ دغه محرماتو فسق دے (۲) حرمت دَ هغے دَ دین کامل تکړه ده (۳) او نعمت تامه دے (۴) او غوره دین دے. فِي مَخْمَصَةٍ دا سے په سورة بقره ۱۷۳ او سورة انعام ۱۴۵ او سورة نحل ۱۱۵ کښ هم دی. په دغه ایاتونو کښ اضطرار عام ذکر کړے دے اکراه او لوږے ته شامل دے دَ هغه سورتونو نزول مکه کښ دَ غلبے دَ اسلام نه وړونو په هغه وخت کښ دَ اکراه حالات پیش راتلل او په دے سورت کښ صرف مخمصه ذکر کړے ده ځکه دا سورت دَ غلبے دَ اسلام نه روستو نازل شوے دے نو په دغه حالت کښ دَ اکراه خطره نه وه صرف دَ لوږے یره وه نو دَ هغے تخصیص ئے اوکړو.

فَكُلُوا مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا

نو خورئ د هغې نه چه بند ساتلے وی دوی تاسو لره او یا دوئ

اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ

نوم د الله تعالیٰ په هغې باندے او یره کوئ د الله تعالیٰ نه - یقینًا الله تعالیٰ

سَرِيعُ الْحِسَابِ ۝٤ اَلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ

زر حساب کوونکے دے - نن ورځ حلال کړے شویدی تاسو لره

سک هر کله چه تیر شوی آیت کښ محرمات ذکر شول نو ضرور سوال پیدا شو چه د دے په مقابله کښ حلال څه دی او خصوصًا تپوس کړے شوے وُو په باره د ښکار کولو کښ نو په دے آیت او د دے نه په روستو آیت کښ تفصیل د حلالو دے. يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ د عربیت په لحاظ سره لهم او لنا دواړه جائز دی - اَلطَّيِّبٰتُ سمعانی وئیلی دی چه مراد په دے سره هغه دی چه عرب ئې ښه ګڼړی او مزه ورکوی او د هغې په حرمت باندے کتاب او سنت نه وی راغلی - او ابن کثیر مراد کړیدی ذبائح په نوم د الله تعالیٰ سره او هر حلال رزق - او شربینی وئیلی دی چه هر هغه چه په کتاب او سنت او په قیاس د مجتهد کښ د هغې تحریم نه وی ثابت شوے او طبائع سلیمه ئې بد نه ګڼړی نو د الفظ شامل دے ټول مذبوح ته چه ذبح ئې شرعًا جائز وی اګرچه تحریم د غیر الله وی او هغه چه بغیر د ذبح نه په شرع کښ جائز وی لکه ملخ او مهی (کبان) وغیره - وَمَا عَلَّمْتُمْ دا معطوف دے په الطيبات باندے په حذف د مضاف سره یعنی صید ما علمتم - یا دا مستقل کلام دے دا مبتدا دہ او فکلوا ئې خبر دے او د دے د حِلّت د پاره پنځه شرطونه ذکر دی. جوارح، تکلیب، تعلیم، امساك، ذکر اسم الله - اَلْجَوَارِحِ دا جمع د جارحة ده او جرح په معنی د کسب سره دے لکه په سورة انعام ۲ کښ او مراد د دے نه سپی، پړانګ، باز، شاهین او هغه ټول څیزونه چه تعلیم قبلوی - او هر کله چه جرح زخم ته هم وئیلے شی نو امام ابو حنیفه رحمة الله علیه زخم د ښکار هم شرط کړیدے - مُكَلِّبِيْنَ حال دے د ضمیر د علمتم نه او تکلیب لیږل او تیزی ورکول دی په ښکار باندے - د دے نه معلومه شوه چه کوم سپی (مثلًا) بغیر د لیږلو مالک نه

الطَّيِّبٰتُ ۭ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

پاک څیزونه - او خوراکه (ذبح) د هغه کسانو چه ورکړے شویں ے ورته کتاب

حِلٌّ لَّكُمْ ۠ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ز

حلال دہ تاسو لره ، او خوراکه (ذبح) ستاسو حلاله ده هغوی لره

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ

او پاک لمنے مؤمنے ښځے او پاک لمنے د

څه ښکار اونیسی او مړشی نو هغه ښکار حلال نه دے۔

تُعَلِّمُوْنَهُنَّ اه سوال:- دا شرط خو د علمتم نه معلوم شویدے نو بیا ولے ذکر کړے شو؟
جواب:- مقصد په دے کښ تاکید د دے شرط دے او اشاره ده چه تعلیم ورکونکے دے ځناورونه دا سے شخص پکار دے چه عالم فقیه وی چه په شرطونو د صید باندے پوهه لری. عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ هغه شرطونه چه قرآن او سنت کښ خودلے شویدی چه ښکار پسے په لیږلو د مالک سره ځی او هسے نه ځی او چه مالک یئے واپس راغواړی نو واپس راځی او د ښکار نه هیڅ حصه نه نیمګړے کوی او په کوم پسے چه لیږلے شوے وی نو د هغے نه بغیر بل ښکار پسے نه ځی نو د دۂ مثال د وکیل د ذبح کولو دے۔ فَكُلُوْا مِمَّآ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ امساك دا دے چه د ښکار نه هیڅ حصه ځان د پاره نه خوری ځکه چه د وکیل تصرف د مؤکل د پاره وی او اهل علم شرط لګولے دے چه دا کار (امساك) درے کرته اوکړی نو معلَّم به شی. وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ ضمیر دا ده چه دا ضمیر راجع دے ما علمتم ته یعنی په وخت د لیږلو کښ دے بسم الله اووائی دا قائم مقام دہ د هغه بسم الله چه په وخت د ذبح کښ وئیلے کیږی او دارنګ په وخت د خوراک کښ بسم الله وئیل هم په دے کښ داخل دی او سنت سره ثابت دی چه دا سے وخت کښ د بسم الله سره الرحمن الرحیم وئیل صحیح نه دی. وَاتَّقُوا اللّٰهَ اشاره ده رعایت د دے شرطونو ته او د سعید بن جبیر نه نقل دے چه په دے کښ مراد دا دے چه بسم الله وربانده نه وی ذکر شوے نو هغه حلال مه ګنړئ۔

مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ

دَ هغه چا نه چه ورکړے شوے وو ته کتاب مخکښ ستاسو نه

اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ

کله چه ورکوئ تاسو هغوی ته مهرونه دَ هغوی، نکاح کوونکی به یئ

غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ اَخْدَانٍ ط

نه به یئ بیکاره بدکاری کوونکی او نه به یئ پټے اشنایئ نیوونکی۔

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِالْاِيْمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ ز

او چا چه کفر کړو دَ ایمان سره نو یقیناً برباد شو عمل دَ دهٔ

وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝٥ ع

او دے به په آخرت کښ دَ تاوان والو نه وی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ

اے ایمان والو! کله چه پورته کیږئ ما نځه ته

ف دا هم تفصیل دَ حلالو دے هغه حلال چه تعلق لری دَ کتابیانو او دَ مسلمانانو سره۔ اَلْيَوْمَ کَ دے نه مراد وخت حاضره دے۔ الطَّيِّبٰتُ کَ دے نه مراد مخکنی طیبات دی مقصود په تکرار کښ دا دے چه په وخت دَ پوره والی دَ دین کښ دغه حکم باقی دے یا مراد کَ دے نه دویم قسم طیبات دی یعنی کَ انواع دَ ذبائحو نه سیوا نور پاک خوراکونه۔ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ، ابن کثیر وئیلی دی چه اجماع ده دَ مسلمانانو چه مراد کَ طعام نه ذبائح دی یا عام دی چه ذبائح پکښ داخل دی په دے شرط سره چه نوم دَ غیر الله یئ ورباندے نه وی ذکر کړے او دَ مکحول وغیره نه نقل دی که چرے دوی نوم دَ غیر الله یاد کړے وی نو هم جائز دی دا قول ابن کثیر رد کړے دے۔ او دلته مراد دَ طعام نه ذبائح محکه دی چه سیوا دَ مذبوح نه نور خوراکونه دوده، میوے وغیره خو دَ غیر کتابی کافرانو هم جائز دی او دلیل نقلی دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلم په ورځ دَ خیبر

دَ کتابیانو دعوت قبول کړے وو چه خوښه دَ یېږے وه او دوی پکښې زهر اچولی وو او نبي صلی الله علیه وسلم څه حصه دَ هغے نه اوخوړله او بیا دَ الله تعالیٰ دَ وحی په وجه خبر شو چه په دے کښې زهر دی نو خوراک یې بس کړو۔ او تخصیص دَ ذبح دَ کتابیانو دَ حل په دے وجه سره دے چه دَ دوی په دین کښې ذبح په نوم دَ غیر الله باندے حرام ده او دوی هم په خپله منځ بوحه باندے نوم دَ الله تعالیٰ ذکر کوی اګرچه عقیده دَ اتخاذ ولد لری۔ او شربینی وئیلی دی که چرے یهودی نصرانی ذبح په نوم دَ غیرالله اوکړی نو هغه حرامه ده دارنګ که ذبح اونکړی بلکه هسے په مرئ ورله زور کړی او خنا ورمرکړی نو هغه هم حرام دے۔ او مبسوط دَ سرخسی لیکلی دی چه ذبیحه دَ کتابی که کافر حربی وی او که ذمی وی نو حلال ده ځکه چه هغوی توحید له دین وائی اګرچه شرک کوی خو هغه توحید اکنړی۔

فائده:- معارف القرآن کښې لیکلی دی چه دَ کومو یهودو او نصاراؤ په باره کښې یقینًا معلومه شی چه هغوی دَ الله تعالیٰ دَ وجود منکر دی یا موسیٰ او عیسیٰ علیهم السلام انبیاء نه ګڼړی (یا قیامت نه منی) نو هغه دَ اهل کتاب په حکم کښې داخل نه دی لکه چه په دے زمانه کښې اکثر داسے دی۔

وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ سوال:- کتابیان خو په حال دَ کفر کښې زمونږ په دین سره مکلف نه دی لکه چه دا غوږه قبول دے او نه هغوی زمونږ خبره منی نو دَ دے جملے څه فائده ده؟

جواب:- که مؤمنان خپله منځ بوحه په کتابیانو کافرانو باندے خوروی نو دا مؤمن په دیکښې ګناهګار نه دے او هرچه حدیث کښې راغلی چه (لَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ) دا په استحباب باندے حمل دے نو معنیٰ دَ ایت داسے ده چه منځ بوحه ستاسو حلال ده په تاسو باندے چه په هغوی باندے یې اوخوروئ۔ دویمه وجه دَ دے جملے دفع دَ وهم ده هغه داچه حل په باب دَ نکاح کښې دَ یو طرف نه دے لکه چه روستو جمله کښې ذکر دے نو آیا حل دَ طعام دَ یو طرف نه دے؟ نو په دے جملے سره دا وهم یې دفع کړو۔ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ مراد دَ دے نه پاکدامنے دی که حرّه (ازاده) وی او که وینځه وی ځکه حلالوالے دَ وینځو په سورة نساء ۲۵ کښې ذکر دے او دا جمله تمهید دے روستو جملے ته۔ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ دلته محصنات کښې دوه قوله دی۔ اول داچه په معنیٰ دَ پاکدامنو دے که حرّه وی او که وینځه وی، کـه

حربيه اوكه ذميه وي اودا قول د امام ابوحنيفه رحمة الله دے او دويمه دا چه په معنى د حرائرو (ازادو) دے نو نكاح د وينځے كتابيے جائز نه دے او دا قول د امام شافعي رحمة الله دے او په نيز د ابن عباس رضي الله عنهما دا حكم حربيے ته شامل نه دے ځكه چه دغوى سره د قتال كولو امر دے په دے قول سره قاتلوا الذين لا يؤمنون تر دے قوله پورے من الذين اوتوا الكتب او په نيز د جمهورو اهل علمو نكاح د حربيے او ذميے دواړو سره جائز دے سرهٔ د كراهيت نه. اُوتُوا الْكِتٰبَ مراد د دے نه يهود او نصارای دی سرهٔ د دے نه چه شرك او كفر كوى ځكه چه مؤحد دے مؤمنے خو په دے كښ لفظ (المومنت) كښ داخلے دی او دا قول د ټولو اهل سنت والجماعت دے او شيعه ګان وائي چه نكاح د مشركانو جائز نه دے په دليل د ايت د سورة بقرة ۲۲۱ سره. او اهل سنت وائي چه ايت د سورة بقرة عام وو نو تخصيص ئے كړے شويد ے په دے ايت سره او بعضو علماؤ د دوی نه وئيلے دی چه ايت د سورة بقرة كتابيانو ته شامل نه وو ځكه چه په دغوى باندے په عام عرف كښ د مشركانو اطلاق نه كيږی اګرچه شرك كوی ليكن صحيح اول قول دے چه د مشركانو په كتابيانو باندے په نصوصو د قران كښ اشارةً او په احاديثو صحيحو كښ صراحةً دارد دے.

سوال:- د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دے چه نكاح د كتابيا بنو د مشركانو سره جائز نه دے؟

جواب:- منع د دغه په كراهيت باندے حمل ده لكه چه د عمر رضي الله عنه نه هم كراهيت نقل دے سرهٔ د جواز نه دا رنګ سرخسي په مبسوط ص ۲۱۰ او فتح القدير په شرح د هدايه او كتاب الاثار كښ ذكر دی. او حكمت په جواز د نكاح د كتابيانو مشركو كښ دا دے چه هركله دغوى شرك د شرك په حيثيت سره نه كوى بلكه دغه ته توحيد وائي او په خپل كتاب باندے د ايمان دعوى كوى نو روستو د نكاح نه مؤحد خاوند دغوى ته دعوت د توحيد په اسانه طريقه وركولے شى په دے وجه چه د خاوند رعب هم وى په ښځه باندے او نكاح د سړی مشرك كتابي سره جائز نه دے ځكه چه دغوى كښ دا فائده حاصليدل مشكل دی. مُحْصِنِيْنَ هركله چه د زنانه احصان ئے په لفظ د محصنات سره مخكښ ذكر كړے دے نو اوس احصان

فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ
نو او وینځئ مخونه خپل او لاسونه خپل د سنګلو پورې
وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ
او مسح اوکړئ په سرونو خپلو او (وینځئ) خپې خپلې ترګیټو (خېنګرو) پورې
وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا ۭ وَاِنْ كُنْتُمْ
او که تاسو په حالت د جنابت کښ یئ نو ځان خه پاک کړئ (غسل اوکړئ). او که تاسو
مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰي سَفَرٍ اَوْ جَاۗءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ
بیماران (ناجوړه) یئ یا په سفر باندې یئ یا راشي یو تن ستاسو نه
مِّنَ الْغَاۗىِٕطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَاۗءَ فَلَمْ
د اودس ماتې نه یا یو ځائے شوی یئ د زنانو سره او نه
تَجِدُوْا مَاۗءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا
مومئ اوبه نو تیمم اوکړئ په خاوره پاکه

د نارینه ذکرکوی او دا احصان په معنی د نکاح کولو دے.
غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ سفاح ښکاره زنا کول دی او اَخْدَانٍ جمع د خِدان پټ دوست د عشق په طور سره چه د هغے سره پټه بدکاری کوی او خدان مذکر او مؤنث دواړو ته شامل دے.
وَمَنْ يَّكْفُرْ بِالْاِيْمَانِ دا جواب د سوال دے هرکله چه نکاح د کتابیه مشرکه سره جائز کړے شو نو معلومیږی چه د هغوی دین هم صحیح دے جواب او شو چه د هغوی په دین کښ کفر کړ دے د ایمان سره نو هغه دین باطل دے- بِالْاِيْمَانِ مراد د دے نه مؤمَن بِهٖ دے یعنی توحید رسالت قرآن بعث بعد الموت وغیره او کفر په معنی د جحود او انکار سره دے (ابن جریر، نیشاپوری) یا با په معنی د مع سره دے یعنی کفر یئے کړ او د ایمان سره لکه په سورة یوسف ۱۰۶ کښ دی.

فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ مِّنْهُ ؕ

تو مسح اوکړئ په مخونو خپلو او په لاسونو خپلو د هغې نه۔

مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ حَرَجٍ

نه غواړي الله تعالیٰ چه کیږدي په تاسو باندې څه تنګسیا

وَّلٰكِنْ يُّرِيْدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ

لیکن غواړي چه پاک کړي تاسو او دې دپاره چه پوره کړي نعمت خپل

عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝۶ وَاذْكُرُوْا

په تاسو باندې دې دپاره چه شکر اوکړئ۔ او یاد کړئ

نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ

نعمت دَ الله تعالیٰ په تاسو باندې او (پوره کړئ) وعده دَ هغه هغه وعده

سلسلہ ربط دا دے چه هرکله طهارتِ معنوبه دَ خوراک او دَ نکاح دپاره ذکر شو نو اوس طهارتِ ظاهره ذکر کوی دَ حدث (پلیتئ) دَ جنابت نه او دا دَ استعمال دَ خوراک او نکاح نه پیدا کیږی۔ او دا یو عقد دَ عقودو دے دَ ایمان والو نه۔

اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ مراد دَ دے نه اراده دَ قیام ده لیکن په لفظ دَ قیام سره ئې ذکر کړو اشاره ده چه دَ فعل دَ اراده نه جدا والے پکار نه دے۔

سوال:۔ دَ دے نه معلومیږی چه دَ هر مونځ سره اودس کول واجب دی؟

جواب:۔ په دے کښې لفظ دَ محذوف (چه بے اودسه یئې) پټ دے په دلالت دَ حدیث صحیح سره چه نبی صلی الله علیه وسلم په واقعه دَ خندق کښې څلور مونځونه او په واقعه دَ فتح مکه کښې پنځه مونځونه په یو اودس سره کړے دی اول روایت ترمذی او نسائی او احمد نقل کړے دے او دویم روایت مسلم، ابوداؤد، ترمذی او ابن ماجه روایت کړے دے۔ دویم جواب بعض علماؤ وئیلے دی چه مراد دا دے چه کله راپاسئ تاسو دَ خوب نه۔ دریم دا دے چه دا په طریقه دَ استحباب سره دے۔ څلورم جواب دَ نسخ دے لیکن بیضاوی په هغې باندے رد کړے دے۔ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ او قرآن کریم کښې دا څلور اعضاء خاص ذکر کړے دی دلیل دے چه په اعتبار دَ غسل او دَ مسح (پاکوالی) سره

داخلو رفرض دی نو که په بل څه حیثیت سره د یوڅیز فرضیت یعنی په حدیث
سره معلوم شی نو هغه د دے سره منافات نه لری لکه نیت کول یا ترتیب او ولاء وغیره
فائده[۱] د دے اعضاؤ تخصیص په دے وجه سره دے چه د انسان د پاره پاکوالے
خو د ټول بدن ضروری دے لیکن ټول بدن وینځل هر وخت تکلیف دے
نو د هغه اندامونو ذکر اوشو چه د انسان د بدن نه هر وخت ښکاره وی یا
ښکاره کول ئے اسان وی او هغه داڅلور دی او هر کله چه سر وینځل تکلیف دے
ځکه چه باقی بدن ورسره لوند یږی او په وخت د سرزئ (یخنئ) کښ ټول
سر وینځل هم تکلیف دے او هر وخت پټکے لرے کول او په سر کول هم تکلیف دے
د دے وجے د هغے د پاره په مسح باندے اکتفا اوکړے شوه۔
فائده[۲] د دے نه علاوه چه په احادیثو سره د کوم اعضاؤ وینځل یا مسح ثابت
ده نو هغه د دے څلور اندامونو نه بهر نه دی لکه خله او پوزه او سترګے
ګیره په مخ کښ داخل دی نو مضمضه او استنشاق او استنثار او خلال
د ګیرے ته شامل شو او خلال د ګوتو په لاس او خپو کښ داخل دی او غوږونه
په سر کښ داخل دی نو ټولو سنتونو ته شمول راغے۔
اِلَى الْمَرَافِقِ، اِلیٰ په معنی د مع سره په ډیرو ایاتو کښ شته لکه سورة
نساء ۲ او هود ۵۲ یا داچه یَدْ په اصل کښ تر اوګے پورے دے نو اِلیٰ د پاره
د غایئے د اسقاط دے یعنی د مرافقو نه بره حصه ساقطه ده یا عبارت کښ
تقدیر دے یعنی "ایدیکم واترکوها الی المرافق" او څنګل ته مرفق په دے
وجه سره وئیلے شی چه انسان په هغے سره ارتفاق (فائده) اخلی په وخت د تکیه
وهلو کښ۔ وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ با د پاره د الصاق ده یا زایده ده یا په معنی د
تبعیض ده بنا په اول دوه توجیه باندے مسح د ټول سر مراد ده لکه چه دا قول
د امام مالک او امام احمد دے او بنا په دریم قول باندے مسح د بعض حصے
د سر فرض ده چه هغه په مقدار د ناصیه (تندی) د یا یو ویښته درے ویښته چه
په هغے باندے اطلاق د مسح کیدے شی اول قول د امام ابوحنیفه او دویم
قول د امام شافعی رحمة الله علیهم دے لیکن اکتفاء په ناصیه یا په بعض
حصه د سر بغیر د مسح د عمامه نه نقل نه دے راغلے۔ وَاَرْجُلَكُمْ په دے کښ
دوه قراءت دی اول په زور د لام سره نو عطف دے په وجوهکم او ایدیکم
باندے نو دا دلیل دے چه غسل (وینځل) د خپو فرض دی۔ او بل قراءت

په زیر دَ لام سره دے نو دا دَ وجے دَ جوار نه دے یعنی دَ وجے دَ کاونړی کیږی دَ بږوسکم نه زیر دے او په معنی کښې عطف دے په ایدیکم باندے یا عطف دے په ارجلکم باندے لیکن مراد دَ دے نه مسح ده په حال دَ موزو اغوستلو کښې. او شیعه کان وائی چه دَ قراءت دَ زیر نه معلومه شوه چه مسح په بربنړو خپو باندے فرض ده او دَ دے وجے نه هغوی انکار کوی دَ مسح دَ موزو او دَ جوړ ابونه او دا قول دَ دوی دَ اول قراءت نه خلاف دے او دا رنګ دَ احادیث متواتره نه چه راغلے دی په باره دَ وینځلو دَ خپو او په باره دَ مسح دَ موزو کښې دا قول مخالف دے.

سوال: دَ ابن جریر نه هم مسح دَ خپو نقل ده او هغه په دے باره کښې روایات نقل کړے دی؟

جواب:- ابن کثیر او قرطبی دَ هغے تاویل کړے دے په غسل خفیف (معمولی وینځلو) سره. اِلَى الْكَعْبَيْنِ قرطبی وئیلے دی چه په لغت او په سنت سره ثابت ده چه دَ کعب نه مراد هغه دوه ګیټے دی چه دَ پنړئ دَ لاندے او دَ خپے دَ پاسه دی او په هره خپه کښې دوه دی او چا چه وئیلے دی چه هغه ګیټے مراد ده چه دَ خپے په شا کښې ده دَ سنت نه بالکل خلاف ده او اصمعی وئیلے دی چه دَ لغت نه هم خلاف ده. فَاطَّهَّرُوْا په شد سره دلالت کوی په کامل طهارت باندے او مراد دَ هغے وینځل دَ ټول بدن دی یعنی غسل کول. وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى او مراد دَ مرض نه هغه مرض دے چه په هغے سره عاجز وی دَ استعمال دَ اوبو نه یا مرض زیاتیږی یا سبب دَ هلاکت ګرځی. مِنَ الْغَآئِطِ په لغت کښې کوزځائے ته وئیلے شی او انسان عادتًا په صحراء کښې اودس ماتے په ښکته زمکه کنده وغیره کښې کوی دَ وجے دَ پردے او دَ حیا نه نو ذکر دَ محل او مراد تری نه حال دے یعنی اودس ماتے کول که لوئے وی او که وړوکے وی او شریعی وئیلے دی چه دا سے حالت په انسان باندے الله تعالٰی مقرر کړے دے دَ پاره دَ دفع دَ تکبر کولو. اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ په لمس کښې اختلاف دے دَ صحابه کرامو دَ ابن مسعود رضی الله عنه په نیز باندے لمس په لاس سره دے او ښکلول هم په دے کښې داخل دی چه په هغے سره اودس ماتیږی او په نیز دَ ابن عباس رضی الله عنهما لمس په معنی دَ جماع کولو دے چه په دے سره جنابت حاصلیږی. فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً وجدان لفظ دلالت کوی په طلب دَ اوبو باندے تر استطاعت پورے او عدم وجدان عام دے

ته موندل په ظاهر کښې یا نه موندل په اعتبار د عدم قدرت بدنی یعنی د بیمارئ د وجے نه۔ صَعِیْدًا الخ د زمکے ته وئیلے شی لیکن د صحیح روایاتو په بناسره ضروری ده چه په هغې کښې د خاورے اثر وی خالص په صفا کتِه باندے تیمم کول پکار نه دی۔ مِنْهُ ضمیر صعید ته راجع دے نو دا دلیل دے چه څه حصه د زمکے یعنی خاوره یا دوړه په لاسونو پورے اونخلی۔

فائده ۱: د حدیث صحیح د امام بخاری نه ثابت ده چه دا ایت د تیمم د جواز د پاره نازل شوید ے او دا سفر وڅ او وخت د صبا د مونځ وڅ او دیته برکت الٰهیه وئیلے شوید ے۔ او دا ایت په سورة نساء ۴۳ کښې هم دے معلومیږی چه هغه ایت د دے ایت نه روستو نازل شوید ے هغه مقید دے په قربان د صلوٰة او د موضع د صلوٰة پورے چه سکر او حدث او جنابت په باره د منع د قربان صلوٰة کښې یو شان دی او په دے ایت کښې مطلب دا دے چه د مونځ د پاره طهارت شرط دے په اودس یا غسل سره د جنابت نه یا تیمم سره۔

فائده ۲: په دے ایت کښې دوه اسباب د عدم وجدان د اوبو ذکر کړیدی په طریقه د مانعة الخلو سره یعنی مرض چه په هغې کښې عدم وجدان معنوی دے او سفر چه په هغې کښې اکثر عدم وجدان د اوبو حقیقی وی او کله دواړه اسباب جمع شی چه هم مریض وی او هم مسافر وی او اوبو باندے قادر نه وی بیا دوه اسباب موجب د نقض طهارت ذکر کړے دی چه اودس ماتول په بول یا غائط سره او لمس چه په یو معنی سره سبب د حدث دے او په بله معنی سره سبب د جنابت دے او په دے کښې هم مانعة الخلو ده جمع هم جائز ده چه اودس ماتے ئے کړے وی او لمس ئے هم کړے وی په دویمه معنی یعنی حدث او جنابت دواړه موجود شی بیا د اول دواړو سببونو جمع ضروری ده د روستنو دواړو اسبابو سره یا د هر واحد سره یا د دواړو سره۔ مَا یُرِیْدُ اللّٰهُ اه او دا ایت په سورة حج ۷۸ کښې هم شته په دے او روستنو جملو کښې حکمتونه د جواز د اودس او غسل او تیمم ذکر کوی په اوله جمله کښې سلبی فائده ده یعنی حرج دفع کول۔ او په دویمه جمله کښې طهارت ظاهری د حدث او جنابت نه او طهارت معنویه یعنی د ګناهونو مغفرت کیدل او په دے کښې اشاره ده چه تیمم په وخت د ضرورت د هغې کښې طهارت کامله دے په شان د اودس او غسل کولو او په دریمه جمله کښې اتمام نعمت د

وَاثَقَكُم بِهٖٓ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ز

چه پخه کړې ده تاسو سره هغه، کله چه اُوئیل تاسو اوریدلے دے مونږ او تابعدارئ کړیده مونږه.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ⑦

او اویریږئ د الله تعالیٰ نه. یقینًا الله تعالیٰ پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو کښ دی.

اشاره ده چه په مخکنو امتونو کښ تیمم نه وو دا د دے امت فضیلت دے چه تیمم د دوی د پاره مشروع اوګرځولے شو. تَشْکُرُوْنَ شکر کښ مراد عمل کول دی په دے امورو باندے.

ربط دا هم تعلق لری د اوفوا بالعقود سره. ترغیب دے ایفاء د عقودو ته په درې طریقو سره اول ذکر د نعمت د الله تعالیٰ او ذکر د نعمت په طریقه د شکر سره دے او دلته مراد د نعمت نه جنسی نعمتونه دی چه بے شماره دی هدایت کول دین اسلام ته ژوند، صحت، عقل، هدایت د احکامو شرعیو، بچ کول د آفاتونه او خیر رسول په دنیا او اخرت کښ او هغه نعمتونه چه په مخکښ ایت کښ ذکر شول وغیره. سوال:- نعم الله ئے په صیغه د جمع سره ولے اونه وئیلو؟ جواب:- د الله تعالیٰ د نعمتونو خو شمار نیشته نوکه جمع ئے ذکر کړے وے نو کیدا ئے شی چه انسان په خطره کښ وے چه د ټولو نعمتونو د شکر نه خو ځه عاجزیم دا زما د طاقت نه بهر ده نو دا تکلیف مالایطاق دے.

وَمِيْثَاقَهُ دا دویمه طریقه د ترغیب ده چه دا عقود خو ستاسو په میثاق کښ داخل دی نو د دے ایفاء واجب ده اکثر مفسرینو وئیلی دی چه صحابه کرامو په وخت د بیعت د نبی صلی الله علیه وسلم کښ عقد کړے وو په سمع او طاعت سره په تنګسیا او اسانتیا او خوشحالئ او تکلیف کښ او بیعت کړے نبی سره بیعت دے د الله تعالیٰ سره د دے وجے نه اضافت د میثاق الله تعالیٰ ته اوشو. او بعض مفسرینو وئیلی دی چه مراد د دے نه میثاق د یوم الذر دے. اَلَّذِىْ وَاثَقَكُمْ بِهٖٓ توثیق د الله تعالیٰ د طرف نه په هر وخت کښ یادا شت ورکول دی په قران کښ او په ژبه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وَاتَّقُوا اللّٰهَ دا دریمه طریقه د ترغیب ده او مراد د تقوی نه ځان ساتل دی د بے لوظئ نه اګرچه په زړه کښ وی او پټ وی ځکه ورپسے ئے اوفرمائیل اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ هغه خبرے چه صرف په زړه کښ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ

اے ایمان والو! شئ تاسو ټینګ د پاره د الله تعالیٰ

شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ ز وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ

بیان کوونکی شئ په انصاف سره ، او تیزدے نه کړی تاسو لره بُغض

قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا ط اِعْدِلُوْا قف هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ز

د یو قوم په دے چه انصاف اونکړئ . انصاف کوئ ، دا ډیر نیزدے دے تقوی ته

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ط اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ⑧

او اوبریږئ د الله تعالیٰ نه . یقیناً الله تعالیٰ خبردار دے په هغه عملونو چه تاسو یئے کوئ .

دی او ژبه پاندے نه وی راغلے.

ربط: داهم متعلق دے په اوفوا بالعقود پورے او ترغیب دے ایفاء عقود ته په درے طریقو سره (قوام، عدل، تقوی) او نهی د سبب د نقض عهد نه چه تعصب د دُشمنئ دے. یٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا دا اوامر د ایمان د مقتضیا تو نه دی کوم وجے په دے خطاب سره مصدر کړو او هرچه ځکنی دی نو هغه د عامو خلقو نه تقاضا ده. كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ پوره استقامت کوونکی او پوره کوشش صَرف کوونکی په حقوق الله کښ. لِلّٰهِ یعنی نه د خلقو د رضا او د ریا او سمعت د پاره بلکه فقط د الله تعالیٰ د پاره. او په دے استقامت کښ داخل دے ایفاء په عقودو باندے.

شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ دا حقوق العباد ته اشاره ده شهادت عام دے ګواهی کول او دا رنګ بیان او دعوت د حق خلقو ته په عدل او رشتیا سره چه د خپلوئ لحاظ نه وی او د دُشمنئ تعصب نه وی، دا سے په سورة نساء ۱۳۵ کښ هم دی لیکن هلته قسط یئے د قوامین سره او لِلّٰهِ یئے د شهداء سره لګولے دے یو وجه دا ده چه ایت د سورة نساء په باره کښ د اقرار کښ دے په ځان او مور او پلار او خپلوانو او په هغے کښ قسط (عدل او هرچا له د هغه برخه ورکول) اول شرط دے او دلته یئے د پاره د ترک د دُشمنئ را وړے دے او د دے د پاره قیام بالقسط ضروری دے دویمه وجه دا ده چه هغه نازل شوے دے په رد د مشرکانو کښ او دا نازل شوے دے په رد د یهودیانو کښ او په یهودیانو کښ

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

وعده کړيده الله تعالىٰ هغه چا سره چه ايمان يې راوړې دے او عمل يې کړيدې په طريقه دَ پيغمبر

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ⑨ وَالَّذِيْنَ

دوی لره بخنه ده او ثواب لوئ دے. او هغه کسان

كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ

چه کفر يې کړيدې او دروغ ژن کړيدی اٰياتونه زمونږ دغه کسان

لِلّٰهِ نه وړُ دَ دے وجے نه کدوی په خطاب کښ يې لِلّٰه مخکښ ذکر کړو.
وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ اِه اجرام باعث جوړيدل دی په جرم کولو باندے. شَنَاٰنُ دشمنی
او بغض دَ باطن نه ويلے شی. قَوْمٍ مراد دَ دے نه عام دے کافران مشرکان
يا هغه خلق چه روستو دَ کفر نه يې ايمان راوړے دے دارنګ هغه څوک
چه دَ هغوی سره دنيوی عداوت وی نو دغه دُشمنی او بغض دَ ترک عدل دَ
پاره سبب نشی کيدلے دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ اخلاقو نه ثابت ده چه
دَ دشمنانو سره يې دَ عدل نه کار اخستلے دے. اِعْدِلُوْا عام دے عدل په
حقوق الله او حقوق العباد کښ لکه په سورة نحل تفـ کښ دی. اَقْرَبُ
لِلتَّقْوٰى اسم تفضيل په معنی دَ نفس فعل دے يا اشاره ده چه دَ تقویٰ
نور اسباب هم شته ليکن عدل پکښ ډير اقرب سبب دے. لِلتَّقْوٰى تقوی
من الله يا تقویٰ (بچ کيدل) دَ اُور دَ جهنم نه. اشاره ده چه ظلم او جور کول
انسان لره دَ تقویٰ نه لرے کوی.
ف په دے ايت کښ بشارت دے په ايمان او په عمل صالح سره اګرچه
درجه دَ قوامين ته رسيدلے نه وی.
لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ داجمله په محل دَ مفعول کښ ده دَ پاره دَ وعد يا مستقله جمله
ده او مفعول دَ وعد محذوف دے.
اَجْرٌ عَظِيْمٌ لفظ دَ عظمت او تنکير دَ هغې سره دَ تنکير دَ اجر نه دلالت
کوی چه کد دے اجر غايه منتهیٰ دَ الله تعالیٰ نه سيوا بل چا ته معلوم
نه ده.

الْجَحِيْمِ ⑩ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا

دوزخ والا دي. اے ايمان والو! ياد دوئ

نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ هَمَّ قَوْمٌ اَنْ

نعمت دَ الله تعالىٰ په تاسو باندے كلہ چه قصد اوكړو يو قوم چه

يَّبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ اَيْدِيَهُمْ

اوږدۀ كړي تاسو ته لاسونه خپل نو بند يې كړل لاسونه دَ هغوي

عَنْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ⑪

ستاسو نه او اويرېږئ دَ الله تعالىٰ نه . او خاص په الله تعالىٰ دِ كړي سپارى مؤمنان -

نك په دے كښ تخويف اخروى دے. اُولٰٓئِكَ اه دا دلالت كوى په حصر باندے او اصحاب لفظ دلالت كوى په ملازمت باندے او ملازمه دلالت كوى په هميش والى يعنى هميشه عذاب حصر دے په كافرانو كښ.

لل دا هم ترغيب دے ايفاءِ بالعقود ته په ذكر دَ نعمت دَ حفاظت سره دَ دشمنانو نه او بشارتِ دنيويه دے روستو دَ اخروى بشارت نه. اِذْ هَمَّ قَوْمٌ اه دا شامل دے واقعه دَ غزوه عسفان ته چه مشركينو اراده كړے وه چه په دے مؤمنانو باندے حمله كوؤ په وخت دَ مونځ دَ دوى كښ نو صلوٰة خوف نازل شو او واقعه دَ اعرابى چه په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندے يې توره راويستلے وه او بيا يې ايمان راوړلو او واقعه دَ بنى نضير دچه نبى صلى الله عليه وسلم هغوى ته په باره دَ صلح كښ ورغلے وؤ او دوى اراده دَ قتل دَ هغه اوكړله ليكن الله تعالىٰ بچ كړو او دَ عموم دَ وجے نه په دے كښ مراد مغلوبيت دَ كافرانو او محفوظيت او امن دَ مؤمنانو په هر دو ركښ دے او دا لوئے نعمت دَ الله تعالىٰ دے.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ اه اشاره ده چه دا سے نعمت حاصليږى په تقوىٰ او توكل على الله سره.

وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ۚ

او يقيناً اخستے دے الله تعالیٰ پوخ لوظ دَ بنی اسرائیلو نه

وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا ۖ وَقَالَ

او لیږلي دي مونږ دَ دوی نه دولس مشران۔ او وئیلے وو

اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ ۖ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَوٰةَ وَ

الله تعالیٰ چه یقیناً زه ستاسو ملګرے یم که تاسو پابندي کوئ دَ مانځه او

ءَاتَيْتُمُ الزَّكَوٰةَ وَءَامَنتُم بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ

ورکوئ زکوٰة او ایمان مو اولرلو په رسولانو ځما او کړه امداد مو اوکړه دَ دوی

وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّأُكَفِّرَنَّ

او قرض مو ورکړو الله تعالیٰ ته قرض په اخلاص، خامخا لرے به کړم

عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّـٰتٍ

ستاسو نه بدئ ستاسو او خامخا داخل به کړم تاسو جنتونو ته

تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَـٰرُ ۚ فَمَن كَفَرَ

چه بهیږي لاندے دَ هغے نه ولے (نهرونه)، نو چا چه کفر اوکړو

بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ

روستو دَ دینه ستاسو نه نو یقیناً ګمراه شو دَ برابر

السَّبِيلِ ﴿١٢﴾ فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَـٰقَهُمْ

لارے نه۔ پس په وجه دَ ماتولو دَ دوی لوظ خپل لره

سلا دا متعلق دے دَ اوفوا بالعقود سره یعنی ذکر کوی حال دَ وفا نه کوونکو (ناقضین دَ عهد) چه هغه یهودیان دی نو دا اوله نمونه ده کوم چه به لوظ کوونکی په طریقه دَ تخویف دلیوی سره. په ذکر دَ پخله لوظونو او بیا پخه عذابونه دلیوی په سبب کښے لوظ سره. نقیباً، نقیب تفتیش کوونکے

د حالاتو د بنی اسرائیلو او هغه ته کفیل او امین او ضامن هم وئیلے شی.
دولس خاندانونه وو د بنی اسرائیلو نو د هر یو خاندان د اصلاح او نظم ونسق
جوړولو د پاره یو یو نقیب مقرر وو او دا به په دوی کښ هر وخت موجود وو
او د دوی نومونه قرطبی او ابن کثیر لیکلی دی. اِنِّیْ مَعَکُمْ د سلف صالحینو اجماع
ده چه مراد د دے نه معیت خاصه دے په نصرت او معونت سره.
لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ دا تفصیل د میثاق دے په ذکر د پنځه امورو سره.
وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِیْ ټول رسولان بغیر د تفریق نه منل او د هغوی تصدیق کول
سوال:- ایمان خو مخکښ دے په صلوٰة او زکوٰة باندے نو دلته ئے ولے
ترتیب بدل کړو؟
جواب:- بنی اسرائیل خو د صلوٰة او زکوٰة قائل وو لیکن هغه ئے په طریقه
د رسولانو باندے نه کول د خپل رائے او خواهش مطابق ئے کول نو الله
تعالیٰ دا قید ورباندے اولګولو چه تصدیق د ټولو رسولانو په کوئ.
سوال:- ایمان بالله ئے ولے نه دے ذکر کړے؟
جواب:- په وخت د دے میثاق کښ دوی ایمان بالله لرلو لیکن په دے
نورو امورو کښ ئے سستی کوله.
وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ دا لفظ چه د نصرت سره یوځائے ذکر شی لکه سورة اعراف
۱۵۷ کښ نو هلته د دواړو فرق ملحوظ وی او کله چه جدا ذکر شی نو دیوبل
په معنی سره وی یعنی نصرت او مدافعت کول د دین د هغه نه د شبهاتو
د خلقو او د دشمنانو او دا اشاره ده دعوت او جهاد کولو ته.
وَاَقْرَضْتُمُ اللهَ اه د زکوٰة نه روستو د قرض نه مراد انفاق فی سبیل الله
دے ځکه چه د دعوت او جهاد سره د انفاق ډیر ضرورت دے. لَاُكَفِّرَنَّ
عَنْكُمْ اه یعنی د وفا د دے لوظ دوه وعدے دی د طرف د الله تعالیٰ نه.
بَعْدَ ذٰلِكَ اه سوال:- چا چه د دے نه مخکښ کفر کړے وی نو هغه هم ګمراه
دے نو د دے قید لګولو څه فائده ده؟
جواب:- اشاره ده چه مخکښ د میثاق نه خو انسان عذر کولے شی چه ماته
علم نه وو او پوره تاکید د دے امورو ماته معلوم نه وو ځکه ما خلاف کړے
لیکن روستو د عهد او میثاق نه دا عذر نشی کولے.

لَعَنّٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً يُحَرِّفُوْنَ

لعنت اوکړو موږ په دوی او اوګرځول موږ زړونه د دوی سخت، دوی بدلوی

الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا

کلمې د الله تعالٰی د خپلو ځایونو نه او هیره کړه دوی یو حصّه د هغې نه

ذُكِّرُوْا بِهٖ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ

چه بیان شوې وه هغه په دوی، او همیشه به خبریږې ته په خیانت (نقصان)

مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ

د دوی مګر لږ د دوی نه، نو معافی کوه د دوینه

وَاصْفَحْ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳﴾

او مخ اړوه (د ملامتی کولو د دوینه). یقینًا الله تعالٰی خوښوی احسان کوونکی.

۱۳ په دې کښې ذکر د پنځه عذابونو دنیویه دې په سبب د لوظ ماتولو سره. فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ دا نقض د دوی نه ډیر کرته صادر شوې دې لکه چه د هغې ذکر په سورة بقره کښې تیر شوې دې. لَعَنّٰهُمْ لعنت خو وئیلې شی ابعاد (لرې والې) ته د رحمت خاصه د الله تعالٰی نه او دا په طریقه د مسخ او د نورو عذابونو سره وو. قٰسِيَةً چه په هغوی کښې هیڅ وعظ او تخویف او بشارت اثر نه کوی او حسنه ته سیئه او سیئه ته حسنه وائی دا سې په سورة بقره ۷۴ او سورة حدید ۱۶ کښې هم دی. يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ دا اثر د قسوة قلب دې د دې وجې نه په غیر د عطف نه ئې ذکر کړو او مراد د دینه تحریف معنوی دې یعنی دا سې تاویلونه کوی چه په هغې سره شرک، کفر او بدعات او ګناهونه ثابتوی دا سې په سورة بقره ۷۵ او سورة نساء ۴۶ او د دې سورت ۴۱ کښې هم راغلې دی. عَنْ مَّوَاضِعِهٖ مراد د دې نه معانی مناسبه (حقیقیه) دی نو تحریف معنوی او تفسیر په رائې مذموم سره مراد دې. وَنَسُوْا حَظًّا اه د تورات او انجیل هغه حصه چه په هغې کښې توحید او ذکر د رسالت د اخری رسول وو هغه دوی دا سې پریخودل لکه چه نسیًا منسیا وی اګرچه بعضې حصه منی نو مصداق دی د دې

وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا

او دَ هغه کسانو نه چه دوی وائی بیشکه مونږ نصاری یو واخسته مونږ

مِيْثَاقَهُمْ فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ

پخه وعده دَ هغوی نو هیره کړه دوی یوه برخه دَ هغې نه چه بیان کړے شوې وه دوی ته

فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ

نو راپورته کړه مونږه په مینځ دَ دوی کښ دشمنی (په ظاهرکښ) او کینه (په زړه کښ)

قول" افتؤمنون ببعض الكتاب وتكفرون ببعض" یا داچه دَ تحریف دَوجے نه دَ دوی قوت حافظه خرابه شوه نو دَ کتاب الله او دَ دین الٰهی ډیره حصه ترینه هیره شوه۔ شربینی دَ ابن مسعود رضی الله عنهما نه روایت راوړے دے چه انسان بعض علم دَ گناه دَوجے نه هیرکړی او دا آیت یے اولوستلو۔

خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ دا په معنی دَ مصدر دے یعنی خیانت. یا موصوف پټ دے (فِرْقَةٌ خَآئِنَةٌ) او مراد دَ خیانت نه دهوکے کول او په نبی صلی الله علیه وسلم باندے دَ حملے کولو اراده کول او دروغ وئیل او دَ مشرکانو سره ملګرتیا کول وغیره دی او دا امور پیدا کیږی دَ نسیان دَ کتاب الله نه. اِلَّا قَلِيْلًا دا استثناء دَ نقضهم میثاقهم سره متعلق ده یا دَ لَعَنّٰهُمْ او دَ هغې نه دَ روستو عبارت سره تعلق لری. فَاعْفُ عَنْهُمْ دا ضمیر راجع دے قلیلًا (مؤمنانو) ته یا راجع دے ناقضینو دَ عهد ته او مراد دَ عفو نه عفو ده دَ هغه جرم نه چه ستا په حق کښ یے کړے وی یعنی دَ هغې بدله ترینه مه اخله لکه چه نبی صلی الله علیه وسلم سحر کوونکی په هغه باندے او زهر ورکوونکے ښځه معاف کړے وو وَاصْفَحْ مراد دَ دے نه سره دَ عفو نه مخ گرځول دی دَ هغوی دَ ملامته کولو نه یا مراد داچه روستو دَ عفو نه مخ ترینه اړوه یعنی دوستانه ورسره مه کوه او دیته اخلاق حسنه وئیلے کیږی دا منسوخ نه دی په آیاتونو دَ قتال سره ځکه دَ اخلاقو دَ استعمال ځائے جدا وی او دَ قتال جدا وی۔ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ په دے کښ روستو دَ عفو او صفح نه دریم خوئی ته اشاره ده (احسان او انعام کول) یعنی څه انعام ورکړه او احسان اوکړه دَ پاره دَ تالیف دَ زړونو دَ هغوی۔

إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ۚ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ

| تر | ورځ | دَ قيامت پورې. | او زر دے | خبر به ورکړي دوئته | الله تعالىٰ |
|---|---|---|---|---|---|

بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴿١٤﴾ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ

| په هغه کارونو | چه دوی يې کوی. | اے | کتاب | والو ! |
|---|---|---|---|---|

سلا په دے کښ ذکر د دويمے نمونے د بے لوظئ دے د هغوی بے لوظی يې ذکر کړه او يو عذاب دنيوی يې ذکر کړے دے او دا ذکر دے د حال د نصاراؤ روستو د حال د يهوديانو نه. قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ په قالوا کښ اشاره ده چه نصارىٰ نوم دِے حلقو ځان د پاره پخپله ايخودلے وؤ په دے دعوىٰ سره چه مونږ د عيسىٰ عليه السلام نصرت کوؤنکی يو. دا نوم د دوی د طرف د الله تعالىٰ نه نه دے خو مراد په دے سره هغه نصارىٰ دی چه بے لوظی يې کړے ده. مِيثَاقَهُمْ دلته تفصيل د ميثاق نه دے ذکر کړے ځکه چه مراد هغه ميثاق دے چه په سلا کښ ذکر شو يعنی پشان د ميثاق د يهوديانو. فَنَسُوا حَظًّا اه دلته نقضِ عهد يې په طريقه د نسيان ذکر کړو ځکه چه د دوی بے لوظی د اول وخت نه د يهوديانو په شان ښکاره نه وه بلکه د جهل د وجے نه وه او بے لوظی د يهودو خو سره د علم نه وه بله وجه دا چه نصاراؤ کښ شرک د نورو ګناهونو نه زيات وؤ په نسبت د يهوديانو او حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا کښ مراد مسئله د توحيد ده. فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ، اغراء ماخوذ ده د غِراء نه سريښ او جوړلے ته وئيلے شی يعنی دشمنی په دوی کښ داسے پيدا شوه چه په يو بل پورے د بغض و حسد د وجے او نختل يا هغه دشمنی په دوی پورے او نختله. اشاره ده چه په دوی کښ فرقه بازی د يهوديانو نه ډيره پيدا شوه اول په دوی کښ يعقوبيه نسطوريه او ملکانيه پيدا شول په باره د عيسىٰ عليه السلام کښ او بيا نورے ډلے د دوی نه پيدا شوے او ډير اختلاف او جنګ جګړے په دوی کښ پيدا شوے د هغے تاريخ ابن قيم رحمة الله په اغاثة اللهفان صـ کښ په تفصيل سره ليکلے دے. إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مراد د دے نه وخت د نزول د عيسىٰ عليه السلام دے او هغه زمانه قريب ده ورځ د قيامت ته. وَسَوْفَ اه په دے کښ تخويف اخروی ته اشاره ده.

قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيْرًا

يقينًا راغلے دے تاسو ته رسول زمونږ واضحه بيانوی تاسو ته ډيرے (مسئلے)

مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَعْفُوْا

د هغې نه چه تاسو پټولے د كتاب د الله تعالیٰ نه او مخ اړوی

عَنْ كَثِيْرٍ ۟ؕ قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ

د ډيرو نه - يقينًا راغلے دے تاسو ته د طرف د الله تعالیٰ نه رڼا

وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ يَّهْدِيْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ

او كتاب واضح بيان والا - خود نه كوی په دے سره الله تعالیٰ هغه چا ته چه تابعداری كوی

يَصْنَعُوْنَ، صنع په هغه عمل كښې استعماليږی چه هميشه كيږی يعنی دوی (نصارٰی) په باطل دين اختلافات او جګړے هميشه كوی ځكه وجے نه چه دين يې ګڼړی.

۱۵ د دے آيت نه د دے حصے دويم باب دے تر ۱۷ پورے په دے كښې ذكر د احوالِ تفصيليه د كتابيانو دے چه نقض د عهد يې كړے وو په ديكښې دوه خطابات د اهل كتابو او يو خطاب د ايمان والو ذكر دے په ۱۵، ۱۶ كښې او دعوت دے اهل كتابو ته طرف د اطاعت د رسول او قرآن ته د پاره د نجات د اثار قبيحه د نقضِ عهد نه. بيا ذكر د نقضِ عهد د هغوی دے په شرك فی الالوهيت د عيسٰی عليه السلام او په ذكر د تزكيه د دوی مچپل ځان لره ۱۷، ۱۸ كښې او بيا دعوت دے اطاعت د رسول ته په ۱۹ كښې. بيا ذكر د نقضِ عهد د دوی دے په بزدلئ ښكاره كولو او په ترك د جهاد او په عذاب د حيرانتيا سره تر ۲۶ پورے بيا ذكر د قباحتونو د قابيل دے او د هغه قباحتونه چه نقل شويدی بنی اسرائيلو ته چه هغه اسباب د ذلت او د ندامت دی تر ۳۱ پورے بيا ذكر د قباحاتو د بنی اسرائيلو كے افساد، قتل بغير حق، محاربه د الله او د رسول سره او سرقے (غلا كانے) كول سره د سزاګانو ذكر كولو نه په ۳۲ ۳۳ ۳۴ ۳۸ كښې او خطاب د مؤمنانو دے په ترغيب د تقوی (بچ كيدنال د قباحاتو د بنی اسرائيلو نه) او طلب د تقرب الی الله به نيك عملونو سره په ۳۵ كښې سره د ذكر

رِضْوَانَهٗ سُبُلَ السَّلٰمِ وَيُخْرِجُهُمْ
د رضا د الله تعالیٰ د لارو د سلامتیا او اوباسی دوی لره

مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ بِاِذْنِهٖ وَيَهْدِيْهِمْ
د تیارو نه رڼا ته په حکم خپل سره او رسوی دوی لره

د تخویف اخروی نه په ۳۶ ۳۷ کښ او په اخرکښ ترغیب دے سرہ د رد د شرك فی التصرف نه په ۳۸.

تفسیر: په دے ۱۵ کښ خطاب دے اهل کتابو ته د پاره د اطاعت د اخری رسول اود قرآن - په ذکر د عظمتِ شان د رسول اود قرآن - يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ کتاب په معنی د جنس کتاب دے که تورات وي اوکه انجیل وی نو شامل دے یهود او نصاریٰ دواړو ته - يُبَيِّنُ لَكُمْ دا صفت د رسول صلی الله علیه وسلم دے او اشاره ده چه د حق والو نښه دا ده چه هغه مسائیل په ښکاره کوی کوم چه باطل پرستو ملا یانو پټ کړے دی - مِّنَ الْكِتٰبِ یعنی مسائیل په کتاب د الله تعالیٰ کښ شته او تاسو پټ کړے دی - وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ د عفو نه مراد پریخودل او اعراض دے د بیان د هغے نه او مراد د دے نه هغه مسائیل دی چه د دے اخری دین سره یے تعلق نیشته بلکه په د دے دین کښ هغه منسوخ دی او دواړه طرف ته خو کثرت نشی کیدلے نو مراد د دے نه کثرت فی نفسه دے - قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ دا ترغیب دے قرآن ته په ذکر د دوه صفتونو د هغه اول نُوْرٌ یعنی قرآن نور دے چه په سبب د دهٔ سره حق واضح کیږی او تیارے د جهل زائیله کیږی او دا سے په سورة نساء ۱۷۴ اوسورة تغابن ۸ کښ شته دے - وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ دا عطف د صفت دے په صفت باندے او موصوف یو دے - مُبِيْنٌ لازمی او متعدی دواړه معنے لری یعنی په کښ احکام ښکاره دی یا ښکاره کوونکے دے - دویم قول دا دے چه مراد د نُوْرٌ نه اسلام دے - دریم قول دا چه محمد صلی الله علیه وسلم دے دا قول د زجاج نه نقل دے -

فائده: بعض زائغینو د دے لفظ نه استدلال کړے دے چه نبی صلی الله علیه وسلم بشر نه دے بلکه نور دے ؟ جواب دا دے چه وصف د نُور تعارض نه لری د بشریت او د رجولیت د هغه سره محکه د نُور مراد

دادے چه د هغه په سبب الله تعالیٰ حق لره بنکاره کړے دے او شرک یے محوه کړے دے او د هغه د اثارت (نور کیدلو) فائده دا ده چه پټے مسئلے د اهل کتابو بنکاره کړے دا ابن جریر ذکر کړے ده او دا معنیٰ په دے وجه ده چه په ډیرو ایاتونو کښی بشریت او رجولیت د انبیاؤ ذکر دے ایاتونه د اثبات د بشریت سورة العمران ۷۹، سورة انعام ۹۱، سورة ابراهیم ۱۱، سورة کهف ۱۱۰ سورة انبیاء ۳، سورة مؤمنون ۲۴ ۳۳ ۳۴ ۴۷، سورة شعراء ۱۵۴، سورة یٰس ۱۵ سورة فصلت ۶، سورة تغابن ۶، سورة هود ۲۷، سورة اسراء ۹۳ ۹۴ او سورة قمر ۲۴. ایاتونه د اثبات د رجولیت سورة اعراف ۶۳ ۶۹، سورة یونس ۲، سورة مؤمنون ۲۵ ۳۸، سورة سبا ۷ ۴۳، سورة فرقان ۸ سورة غافر ۲۸، سورة یوسف ۱۰۹، سورة نحل ۴۳ او سورة انبیاء ۷ نو څوک چه د نُور د صفت د وجے نه بشریت او رجولیت نه منی نو هغوی د دے ټولو ایاتونو نه منکر دی۔

سوال: دوی وائی چه نور په حقیقت کښی دے او په شکل د سړی او بشر سره متمثل شوے دے؟

جواب: نورانی مخلوق (ملائک) چه کله په شکل د بشر راغلے شویدی نو په هغه ځایونو کښی د الله تعالیٰ او د رسول د طرف نه تصریح موجود وی چه دا تمثل دے لکه سورة مریم ۱۷ او دارنګ په ډیرو احادیثو کښی راغلے دی. او د هیڅ نبی په باره کښی په هیڅ نص کښی دا نه دی راغلی چه متمثل

سوال: د نبی صلی الله علیه وسلم سورے به نه وو نو دلیل دے چه جسم یے نه وو بلکه نُور محضه وو؟

جواب: الزامی دا دے کړیدے یے جسم نه وو لیکن جامے یے اغوستلے وے نو د هغے ولے سورے نه بنکاره کیدلو. او تحقیقی جواب دا دے چه دا حدیث حکیم ترمذی نقل کړے دے او هغه حدیث ضعیف دے د هغے یو راوی دے عبدالرحمٰن بن قیس هغه ته اٰئمو د جرح ضعیف متروک الحدیث ویلے دے (تاریخ بغداد ۲۵۱/۱۰ تهذیب التهذیب ۲۵۸/۶) او دا حدیث په نوادر الاصول کښی ذکر دے او بیا سیوطی په خصائص الکبریٰ کښی نقل کړے دے شاه عبدالعزیز په بستان المحدثین کښی ویلے دی چه نوادر الاصول کښی اکثر احادیث غیر معتبر دی۔ معلومه شوه چه صحیح عقیده

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ⑯ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ
لارے نیغے ته - یقینًا کفر کړیں شے هغه کسانو

قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ط
چه وائی ، یقینًا الله تعالیٰ (واکدار) هغه خو مسیح ځوئے د مریم دے۔

قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا
ته ورته اووایه ! نوڅوک اختیار لری په مقابله د الله تعالیٰ کښی د څه څیز

داده چه نبی صلی الله علیه وسلم نور هم وو او بشر حقیقةً هم وو.
علا په دے کښی درے فائدے د اخری رسول د رالیږلو یا د قرآن د پاره یئے
ذکر کړے دی. اوله فائده يَهْدِىْ بِهِ ضمیر د بِهِ قرآن یا رسول ته راجع دے
هر یو سبب د هدایت الهیه دے. مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ دا قید یئے د دے وجے نه
ذکر کړے دے چه مراد د یهدی نه ایصال الی المطلوب او توفیق دے۔
سُبُلَ السَّلٰمِ سلام نوم د الله تعالیٰ دے یا مراد د دے نه سلامتیا د عذاب
د جهنم نه ده او سلامتیا ده د ټولو آفاتو نه او هغه جنت دے۔ سوال: قرآن
کښی چه د صراط مستقیم د پاره تعبیر کیږی په مفرد سره یعنی "صراط" او
"سبیل الله" نو دلته ولے جمع ذکر شوه؟ جواب د مفرد په ځایونو کښی
عقیده او ایمان مراد دے او هغه یو دے د دے وجے نه مفرد یئے ذکر کړے
او دلته مراد د سبل نه احکام او اعمال قرانیه دی او هغه ډیر دی ځکه جمع
ذکر کړے شوه. دویمه فائده يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اه مراد د دے نه
ظلمات او نور ګنا هونه معنویه دی یعنی تیارے د شرك او كفر او د بدعاتو
رسوماتو او نور ګنا هونو نه د قرآن او رسول په وجے سره نجات حاصلیږی
بِاِذْنِهٖ اشاره ده چه اخراج د ظلماتو نه په معنی د توفیق سره دے او د هغه
د پاره اذن د الله تعالیٰ شرط دے. یهدی سره یئے دا ذکر نه کړو ځکه چه
هلته یئے بِهٖ د سببیت ذکر کړے دے او دا سے په سورة ابراهیم ــــ کښی هم
شته. او دریمه فائده ویهدیهم الی صراط مستقیم اول هدایت د احکامو
او اعمالو وو او دلته هدایت د عقیدے مراد دے یا هلته هدایت د مقاصدو
او دلته مراد هدایت دے د دلیلونو سره۔

إِنْ أَرَادَ أَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ

که اوغواړی الله تعالیٰ چه مړ کړی مسیح ځوئے د مریم

وَأُمَّهٗ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيْعًا ۗ وَلِلّٰهِ

او مور د هغه او هغه څوک چه په زمکه کښ دی ټول۔ او خاص الله تعالیٰ لره

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۗ

بادشاهی د آسمانونو او د زمکے ده او د مینځ د دے دواړو۔

يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٧﴾

پیدا کوی څه چه اوغواړی۔ او الله تعالیٰ په هر څیز باندے قدرت لری۔

تکل دا متعلق دے د يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيْرًا اه او ورد دے په یوه ډله د اهل کتابو چه نصارٰی دی چه هغوی ته په انجیل کښ عبدیت د عیسٰی علیه السلام بیان شوے وؤ او هغه دوی پټ کړو او الوهیت د عیسٰی علیه السلام یئے خپل دین اوګرځوؤ نو قرآن هغه خبره ښکاره کړه او حکم یئے اوکړو چه دا قول او عقیدهٔ خو کفر دے چه څوک عیسٰی علیه السلام ته اِلٰه وائی دا قول د یعقوبیه ډلے وؤ د نصارٰی نه د دوی مقصد دا وؤ چه الله تعالیٰ په عیسٰی علیه السلام کښ حلول کړے دے نو الوهیت د ناسوتیت سره یو شوے دے۔ سوال په نصاراؤ کښ داسے څوک نیشته چه هغوی داسے وائی چه ان الله هو المسیح بلکه برعکس وائی؟ جواب دا رد دے په طریقه د الزام سره چه د دوی په قول سره هرکله چه الله تعالیٰ حلول په عیسٰی علیه السلام کښ اوکړو او عیسٰی علیه السلام اِلٰه شو نو لازمًا وئیلے کیږی چه الله تعالیٰ مسیح دے قصر د مسند الیه او شو په مسند کښ۔ او شربینی بله توجیه دا ذکر کړے ده (بغیر د حلول نه) چه دوی وئیل چه عیسٰی علیه السلام مرغئ پیدا کوی او مړی ژوندی کوی او تدبیر د ټول عالم کوی نو بنا په دے د (الله) نه مراد وصفِ مشهوره دے چه متصرف او مدبر د ټول عالم عیسٰی علیه السلام دے۔ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ اه نو په څلورو طریقو سره د دغه عقیدے تردید کوی اوله طریقه دا ده چه دا عالم سره د عیسٰی علیه السلام نه فنا کیدونکے دے او څوک د فنا کیدلو نه بچ کوؤنکے

وَقَالَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ

او وائي يهوديان او نصارٰى موږ نازولي (ځامن) د الله تعالٰى يُو

وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ؕ

او دوستان د هغه يُو. ته ورته او وايه، نو ولې عذاب در كوي تاسو ته په ګناهونو ستاسو.

بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ؕ يَغْفِرُ

بلكه تاسو بندګان يئ د هغه ځانه چه پيدا كړي الله تعالٰى. بخنه كوي

نيشته نو عيسٰى عليه السلام هم فنا كيدونكے دے او د فنا نه ځان او نور مخلوق هم نشي بچ كولے نو څنګه مدبر او اِله كيدے شي. يَمْلِكُ په معنى د يقدر او يستطيع يا يمنع سره دے. مِنَ اللّٰهِ نه مراد من عذاب الله يا من مرادات الله او من امر الله دے. سوال، وَاُمَّهٗ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ئے ورسره ولے ذكر كړو؟ جواب ١: په دے كښ اشاره ده چه په اعتبار د مرګ او فنا سره عيسٰى عليه السلام او دا نور مخلوق برابر دي. جواب ٢: مراد دا چه مور او ټول زمكے والا اګرچه د هغه په امداد كښ وي هم يئے نشي بچ كولے. وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ اٰه دا دويمه طريقه ده چه نظام چلوونكے د ټول عالم الله تعالٰى دے او عيسٰى عليه السلام خو په ما بينهما كښ داخل دے نو هغه رعيت او مملوك دے اِله نه دے او وَمَا بَيْنَهُمَا دلالت كوي چه عيسٰى عليه السلام او مور يئے مخلوق او محدود او محصور دي نو اِله نشي كيدلے. سوال: دلته ما بينهن پكار وو؟ جواب: دا ضمير راجع دے اسمانونو او زمكے ته په اعتبار د طرفينو يا په اعتبار د دوه نوعو سره. يَخْلُقُ اٰه دا دريمه طريقه ده يعنى عيسٰى عليه السلام خَلْق په معنى د ايجاد سره نشي كولے هغه صرف صورت جوړوو او صرف مرغئ يئے جوړولے هر څيز (ما يشاء) يئے نشو جوړولے. وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ دا څلورمه طريقه ده چه الله تعالٰى خو قدرتِ مطلقه لري چه بغير د اصل نه خلق كولے شي لكه اسمانونه او زمكه شوه او د اصل نه خلق كولے شي لكه ما بينهما شو او د غير جنس نه خلق كوي لكه ادم عليه السلام شو او د يو جنس نه كولے شي لكه حواء شوه او عيسٰى ع شو او د دوه جنسو نه خلق كولے شي لكه عام انسانان دي.

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَلِلّٰهِ

هغه چاته چه اوغواړي او عذاب ورکوي چاته چه اوغواړي۔ او خاص الله تعالیٰ لره

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ؗ

بادشاهي د آسمانونو او د زمکے ده او د هغه څه چه په مینځ د دواړو کښ دي

وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ⑱ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ

او خاص هغه ته ورګرځیدل دي۔ اے کتاب والو! یقیناً راغلے دے تاسو ته

۵۸ دا بل رد دے په عقیده د اهل کتابو (چه یهود او نصارٰی دي) او اشاره ده لکه چه دوی افراط کړے وو په باره د عیسیٰ او عزیر علیهما السلام کښ نو دا سے دوی افراط کوو د خپل ځانونو په باره کښ د پاره د تزکیے او غوره والی ښکاره کولو په نورو خلقو او د پاره د دے چه څوک په دوی باندے هیڅ قسم طعن او اعتراض اونکړي۔ نو دوی وئیل نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ په دے سره دوی خپل عصمت ثابتولو۔ په دے قول کښ ډیر توجیهات دي اول دا چه دا دعوٰی په تشبیه باندے بنا ده یعنی الله تعالیٰ په مونږ باندے پشان د پلار شفقت کوونکے دے او مونږ د هغه خواص او مقربین یو پشان د ځامنو پلار ته، او اَحِبَّآؤُهٗ د هغے تفسیر دے۔ دویمه توجیه سمعانی د ابراهیم نخعی نه نقل کړے ده چه یهودو په تورات کښ موندلے وو "یا ابناءِ اَحْبَارِي" (اے ځامن د علماؤ ځما) نو دوی په کښ تحریف اوکړو او اولوستلو چه "یا انباء ابکاري" (اے ځامنو د جینکو ځما) او نصارٰی د عیسیٰ علیه السلام نه نقل کړے دے چه هغه یو ځلے اوئیل چه اَذْهَبُ اِلٰی اَبِي وَاَبِيكُمْ چه ورځم خپل پلار او ستاسو پلار ته نو دوی وئیل د دے نه معلومه شوه چه مونږ د الله ځامن یو۔ دریمه توجیه، قرطبی شربینی وغیره وئیلے دي چه په دے کښ حذف د مضاف دے یعنی "ابناءُ الرسل والانبیاءِ" او مقصد په کښ فخر کول او خپل تقرب ثابتول وو په وسیله د انبیاؤ او رسولانو سره۔ څلورمه توجیه آلوسی وئیلے دي چه د تورات او انجیل په اصطلاح کښ ابن تابعدار او مقرب او دوست ته وئیلے کیدلو او آلوسی په روح المعانی کښ د هغوی نه ډیر عبارتونه په دے طریقے سره نقل کړیدي

قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ په دے قول سره د دوی ردکوی په شلورو طريقو سره اوله داده چه پلار خپل خوږ ځوی ته او دوست خپل محبوب دوست ته خوعذاب نه ورکوی او تاسو له خو الله تعالیٰ ډیر عذابونه درکړی دی په مسخ سره په غروبو پورته کولو سره په تذليل او پریشان کولو سره او په مقتضیٰ د قول د دوی سره چه (لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً) سره.
او يعذب مضارع په معنی د ماضی سره ده سوال: که مراد د دے نه عذاب د دُنیا شی نو معارضه کیدلے شی په واقعه د اُحد سره چه اولیا اصحاب کرام قتل کړے شول او واقعه د قتل د حسین رضی الله عنه ځکه چه دوی اولیاء الله وو؟
جواب: مراد د دے نه هغه مخصوص عذابونه دی چه په يهودو او نصاراؤ راغلی وو مسخ په شکل د قِردة (شادوګان) او خنزیرانو سره یا مراد د دے نه عذاب النار دے په سبب د قول د دوی لن تمسنا النار الّا ايامًا معدودة - یا داچه دا ملازمه بنادہ په دعوی د ابنیت او محبوبیت باندے او صحابه کرامو خو دا دعوی نه ده کړے. دا سوال او جواب نيشا پوری ذکر کړے دے.
او تحقیقی جواب دادے چه قتل په طریقه د شهادت یا نور مصيبتونه په دنیا کښی په حق پرستو باندے دا خو عذابونه نه دی بلکه په دے سره رفع د درجاتو راځی.
بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ اه دا دویمه طریقه ده د رد د قول د هغوی. یعنی ابنیت د الله تعالیٰ خو وتل دی د بشریت نه او تاسو خو بشریئ بیا وهم پیدا کیدلو چه کیدلے شی چه د محبوبیت د وجے د بشریت نه منتقل شوی یئ نو او ئیلی شو چه مِمَّنْ خَلَقَ یعنی د مخلوقیت نه نشی وتلے او د مشیئت لاندے داخل یئ په قرینه د دے چه يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ اه.
وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ دا دریمه طریقه د رد ده یعنی مملوک یئ د الله تعالیٰ او راګیر یئ په اسمانونو او زمکو کښی.
وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ دا څلورمه طریقه ده یعنی په اخرت کښی د هغه د مِلك او مشیت نه نشی بهر کیدلے بلکه د جزا او سزا د پاره هغه ته ورګرځیدلی دی.

رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ

رسول زموږ بیان کوی تاسو ته (د مسائلو) په وخت د بندیدلو د رسولانو کښ

اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَآءَنَا مِنْ بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ

چه او نه وایئ چه نه وو راغلی موږ ته څوک زیرے راکوونکے او نه یرهٔ راکوونکے

فَقَدْ جَآءَكُمْ بَشِيْرٌ وَّنَذِيْرٌ ؕ وَاللّٰهُ

نو یقیناً راغئ تاسو ته زیرے درکوونکے او یرهٔ درکوونکے ۔ او اللہ تعالیٰ

عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۹﴾ وَاِذْ قَالَ

په هر څیز باندے قدرت لروونکے دے۔ او کله چه اُوئیل

۱۹ دا تکرار د خطاب دے چه ارسال د دے رسول د پاره د دفع کولو د عذر د خلقو دے او په دے سره دفع کول د یو وهم دی هغه دا دے چه دوی وئیل چه زموږ په کتابونو کښ متشابهات دی د هغې د وجے نه عیسیٰ علیه السلام ته اِلٰه وایو او ځان ته ابناءُ اللہ وایو۔ حاصل د جواب دا دے چه رسول تاسو ته رالیږلے شوے دے او هغه محکمات پیش کړے دی تاسو ته او بیان کړے دی او طریقه د عمل په متشابهاتو باندے ئے درخولے ده نو اوس هیڅ عذر مکوئ ۔ يُبَيِّنُ لَكُمْ مفعول د دے حذف دے د دے د وجے نه چه مخکښ تیر شوید ے كثيراً مما كنتم تخفونهٗ یا الشرائع والاحکام، یا الکیفیة ردّ المتشابهاتِ الی المحکماتِ۔ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ، د فتور نه ماخوذ دے سست کیدل او سکون او انقطاع ته وئیلے شی یعنی په داسے زمانه کښ چه شرائع د مخکنو انبیاؤ باندے عمل کول سست شوے وو او منقطع شوے وو د هغې آثار هم ختم شوے وو ځکه چه د انبیاؤ سلسله قطع شوے وه او ټول عالم په هدایت کښ آخری رسول ته محتاج وو تو داسے وخت کښ اللہ تعالیٰ دے را اولیږلو او د عیسیٰ علیه السلام او د محمد صلی اللہ علیه وسلم په مینځ کښ د مدات فترة اختلاف دے یو قول دا چه شپږ سوه کلونه دی دویم پنځه سوه او شپیته کاله دریم دا چه شپږ سوه او څلویښت کاله. او امام بخاری حدیث ذکر کړے دے

مُوسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ

موسٰی (علیه السلام) قوم خپل ته اے قومه څما، یاد کړئ نعمت دَ الله تعالٰی

عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ

په تاسو باندے کله چه پیدا ئے کړل په تاسو کښ رسولان او جوړ ئے کړئ تاسو

مُّلُوْكًا ۖۗ وَّاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا

بادشاهان او درکړی ئی تاسو ته هغه نعمتونه چه نه ئے دی ورکړی هیچا ته

مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۝ يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ

دَ خلقو نه ۔ اے قومه څما، داخل شئ زمکے

چه (لیس بینی وبینه نبی) دَ دوی په مینځ کښ هیڅ نبی (رسول) نَه دے راغلے او دا صحیح رد دے په هغه چاچه وائی چه دَ دوی په مینځ کښ څلور یا درے رسولان راغلی وو دا صحیح خبره نه ده ۔ اَنْ تَقُوْلُوْا کراهیة ان تقولوا یا لئلا تقولوا اول قول دَ بصریانو او دویم دَ کوفیانو دے ۔ فَقَدْ جَآءَكُمْ دَ دے نه مخکښ عبارت پټ دے یعنی (فَلَا تَعْتَذِرُوْا بِهٰذَا الْعُذْرِ) دغه بهانه مه کوئ ۔ قَدِيْرٌ قدرت لری نو کله رسولان پرله پسے رالیږی او کله په طریقه دَ فترت سره رالیږی ۔ په دیکښ لطیفه اشاره ده چه کوم خلق په زمانه دَ فترت کښ مړه شویدی نو هغوی دا سے عذر پیش کولے شی ۔

ف۳ ربط دَ دے دَ مخکښ مضمون سره په دیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا چه متعلق دے دَ كَثِيْرًا مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ سره یعنی جهاد پریخودل دَ قوم دَ موسٰی دا خبره دوی پټه وله نو قرآن په دے دَ کرسره ښکاره کړه ۔ دویمه دا چه مخکښ دَ دوی بعضے خبائث ذکر کړل چه هغه دَ افراط سره تعلق لری نو اوس دَ دوی تفریط ذکر کوی چه هغه په ف۲۲ ۲۴ کښ ذکر دے ۔ دریمه وجه دا ده چه دا نمونه دَ یے لوظئ دَ بنی اسرائیلو ده سره دَ سزا نه یعنی سرګردان کیدل په سبب دَ ترک دَ جهاد سره ۔ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى دا عطف دَ یو مضمون دے په بل مضمون باندے یعنی مخکښ چه تا دَ دوی افراط ذکر کړو نو دا رنګ ذکر کړه دوی ته دا قصه ۔

الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا

پاکے ته هغه چه فرض کړی دے الله تعالی په تاسو باندے جهاد د هغے او مه واپس کیږئ

عَلٰی اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۲۱﴾

په شاګانو خپلو پس شئ به تاوان والا۔

نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ نعمت په معنیٰ د انعام دے او علیکم د هغے سره متعلق دے یا صفت دے په تقدیر د کائنة علیکم باندے او مراد د ذکر نه شکر کول په متلو د امر د جهاد سره دی۔ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ دا تفصیل د نعمت دے په ذکر د دریے امورو سره اول په کثرت سره انبیاء رالیږل په بنی اسرائیلو کښ د یعقوب علیه السلام نه تر عیسیٰ علیه السلام پورے او جعل فعل ماضی په معنیٰ د استمرار سره دے چه ماضی او استقبال دواړو ته شامل دے نو د موسیٰ علیه السلام نه مخکښ او روستو ته عام دہ۔ او دا نعمت دینیه اعلیٰ نعمت دے۔ او دویم وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا د دے نه عامه معنیٰ مراد دہ یعنی آزادی د غلامئ د فرعونیانو نه او خاوندان د خادمانو او کورونو او ښځو او سمعانی لیکلی دی چه څوک په تاسو نه بے اجازته نه داخلیږی۔ او دا نعمت په ټولو کښ موجود وو ځکه ئے فیکم نه دے وئیلے بلکه جعلکم ئے وئیل او دا نعمت دنیویه ظاهریه دے۔ او دریم وَاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اه، دا نعمتونه معجزات نه ظاهری او باطنی دواړه دی او مراد هغه دی چه په سورة بقرة کښ ذکر دی یعنی اهلاک د دشمن او شلول د بحر، او انزال د من وسلوی او اوبه راویستل د کڼے نه او سورے کول په وریځ سره۔ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ مراد د دے نه هغه خلق دی چه د بنی اسرائیلو په وخت کښ یا د هغوی نه مخکښ وو معنی فعل ماضی په دے باندے دلالت کوی۔ او شربینی وئیلی دی چه دغه زمانه کښ دوی علماء بالله او احباب الله او انصار د دین الٰهی وو ځکه هغوی ته دا کرامات د وجے د توحید او د اتباع د موسیٰ علیه السلام نه ورکړے شوے وو۔

۲۱ مخکښ ایت کښ تمهید وو او په دے ایت کښ د شکر نعمت طریقه ذکر کړی۔ ادْخُلُوْا دا دخول په طریقه د جهاد سره دے۔ الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ په معنیٰ د مبارکه او پاکه یعنی برکات دنیویه او اخرویه پکښ ډیر دی او قتاده وئیلی دی چه دا د شام زمکه دہ او په هغے کښ بیت المقدس او

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ

دوی اوئیل اے موسٰی (علیه السلام) یقیناً په دیکښ قوم زوراور دی

وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا

او یقیناً مونږ چرے نه داخلیږو هغے ته تر دے چه اووځی دوی د هغے نه

فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ ﴿۲۲﴾

نو که اووتل دوی د هغے نه نو یقیناً مونږ به داخل شو۔

دمشق، فلسطین او بعضے حِصّه د اردن داخله ده۔ اَلَّتِیْ کَتَبَ اللّٰهُ لَکُمْ په معنیٰ د تقدیر سره په لوح محفوظ کښ یا په معنیٰ د وعدے د الله تعالیٰ په ژبه د یعقوب علیه السلام۔ یا په معنیٰ د فرض یعنی فرض کړے دے الله تعالیٰ په تاسو جهاد د هغے۔ ابن کثیر لیکلے دی چه دا زمکه مقدسه مسکن وؤ د یعقوب علیه السلام او د اولاد د هغه بیا په امر د یوسف علیه السلام دوی ټول مصر ته نقل شول نو بیا د موسٰی علیه السلام زمانه کښ چه د مصر نه هجرت اوکړو نو دوی ته دے زمکے ته د داخلیدلو حکم اوشو او د حالات معلومولو د پاره ئے دولس نقیبان اولیږل نو هغه زمکه باندے عمالقه جبابره قوم اباد شوے وؤ نو دوی ته حکم اوشو چه د هغوی نه دا زمکه مقدسه په ذریعه د قتال سره آزاده کړئ۔ وَلَا تَرْتَدُّوْا اه د قتال نه انکار کول ارتداد دے یا دا معنیٰ چه واپس مه راګرځئ د وجے د بزدلئ نه۔ فَتَنْقَلِبُوْا خَاسِرِیْنَ اشاره ده چه ترک د جهاد روستو د فرض کیدلو نه سبب د خسران د دنیا او د آخرت دے۔ ۲۲ په دیکښ د هغوی بے لوظی او خیانت او بزدلی ذکر کوی۔ قَالُوْا د نقباؤ نه لس کسانو دا سے اوئیل او نورو بنی اسرائیلو د هغوی په تقلید کښ دا سے اوئیل نو دوی د نبی د قول په مقابله کښ قول د یل چا واغستلو۔ جَبَّارِیْنَ جبار هغه چا ته وئیلے شی چه خلق په زور سره خپل مقصد ته راړوی نو دا د اجبار نه ماخوذ دے په معنیٰ د اکراه (زور) سره یا د جبر نه ماخوذ دے په معنیٰ د اصلاح سره۔ لیکن استعمالیږی په باره د هغه چا کښ چه ځان ته نفع راکاږی که په حقه سره وی یا په باطله

قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ

اوئیل دوہ سړو (نارینو) دَ هغه کسانو نه چه یرهٔ ئې کوله

اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ

انعام کړیوو الله تعالیٰ په هغې دواړو باندے داخل شئ په دوی باندے دروازے ته

فَاِذَا دَخَلْتُمُوْهُ فَاِنَّكُمْ غٰلِبُوْنَ ۚ وَعَلَى

نو کله چه داخل شوئ هغې ته نو یقینًا تاسو به غالب یئ او خاص په

اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۳﴾

الله تعالیٰ باندے توکل کوئ که تاسو مؤمنان (ایمان والا) یئ۔

سره۔ زجاج وئیلی دی چه جبار دَ انسانانو په بارهٔ کښې سرکش ته وئیلے شی او هغه روایات چه بعض مفسرینو نقل کړے دی دَ هغوی دَ قد په اوږد والی کښې سرهٔ دَ قصے دَ عوج بن عنق نه نو ابن کثیر وئیلی دی چه دَ دے دَ ذکر کولو نه حیاء پکار ده او دا رنګ دا خلاف دے دَ حدیث دَ بخاری نه چه په هغې کښې راځی چه دَ آدم علیه السلام قد شپیته ذراعه ووٌ او اولاد ئې په دمه دمه دَ هغه نه په قد کښې کمیږی۔ نو عوج او نور جبارین څه رنګ دَ هغه نه په قد کښې اوچت شول نو معلومه شوه چه دا دروغ قصے دی۔ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا اه اول ئې سبب ذکر کړو او دا ئې مسبب دے یعنی عدم دَ خول ئې بنا کړو په عذر باندے معلومه شوه چه دَ قتال نه ئې صریح انکار نه دے کړے۔

۲۳ رَجُلٰنِ دوی مشهور دی په یوشع او په کالب سره۔ يَخَافُوْنَ دَ هغه کسانو دَ جماعت نه ووٌ چه دَ جبابرة نه ئې یرة کوله۔ یا هغه کسان چه ویرة کوی دَ مخالفت کولو دَ امر دَ الله تعالیٰ نه۔ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا یعنی دوی دَ نورو ملګرو نه په دے وصف سرة جدا ووٌ چه الله تعالیٰ په دوی باندے خاص انعام کړے ووٌ هغه توفیق او صبر او یقین ووٌ بعضو وئیلی دی چه مراد دَ دے نه نبوت دے چه دوی ته روستو دَ موسیٰ علیه السلام نه ورکړے شوے ووٌ۔ الْبَابَ یعنی دَ دوی دَ ښار یوه دروازه وه نو هغې ته په داخلیدلو

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا
دوی اوئیل اے موسیٰ (علیه السلام) مونږ چرے نه داخلیږو دے (زمکے) ته هرګز
مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ
څو پورے چه دوی په هغے کښں وی پس لاړ شه ته او رب ستا
فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿٢٤﴾ قَالَ رَبِّ
نو جنګ اوکړئ دواړه (هغوی سره) یقینًا مونږ به دلته کښں ناست یو۔ اوئیل (موسیٰ علیه السّلام) اے ربه زما

سره په دوی باندے رعب راځی۔ فَاِنَّكُمْ غَالِبُوْنَ دا دَ وجے دَ عدم ایمان دَ مخالفینو نه او په اعتماد دَ نصرت دَ الله تعالیٰ سره وه۔ وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اه دا ذکر دے دَ سبب دَ حصول دَ غلبے یعنی ایمان سره دَ توکل کولو نه خاص په الله تعالیٰ باندے۔ اِنْ په معنیٰ دَ اِذْ دے دَ تاکید دَ پاره یئے ان ذکر کړے دے دَ شک دَ پاره نه دے۔

سکا۲ دا ذکر دَ خیانت دَ بنی اسرائیلو دے چه په هغے کښں دَ انکار سره بے عزتی دَ الله تعالیٰ او دَ موسیٰ علیه السلام هم دوی اوکړله۔ او بنی اسرائیلو دلته دَ هغه دوه صالحینو قول باندے عمل پرے نخودلو او په کثرت دَ بل طرف باندے یئے اعتبار اوکړلو۔ فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ، دا قول دَ دوی په طریقه دَ بے پرواهئ او دَ توهین دَ رب دے یا دا قول دے پښان دَ مشبّهو (قرطبی) نو دوی په سبب دَ دے کافر شول۔ یا په دیکښں تقدیر دَ عبارت دے وَلْيُعِنْكَ رَبُّكَ یا وَرَبُّكَ مَعَكَ (یعنی تا سره به ستا رب امداد کوی) یا دَ رب نه مشر رور مراد دے هارون علیه السّلام بنا په دے روستنی توجیهاتو باندے بنی اسرائیل فاسقان شول لکه چه روستو الله تعالیٰ دوی ته فاسقان وئیلے دی۔ امام بخاری او امام مسلم حدیث دَ مقداد بن عمرو رضی الله عنه راوړے دے چه نبی صلی الله علیه وسلّم هر کله دَ بدر په ورځ صحابو ته ترغیب دَ قتال فی سبیل الله ورکړو نو مقداد اوئیل چه مونږ تا ته هغه خبره نه کوؤ کومه چه بنی اسرائیلو موسیٰ علیه السلام ته کړے وه "اذهب انت وربك فقاتلا انا هٰهنا قاعدون" لیکن مونږ وایو چه ځه لاړ شه چه کوم خوا ځے او مونږ در سره ملګری یو۔ او

إِنِّي لَآ أَمۡلِكُ إِلَّا نَفۡسِي وَأَخِي فَافۡرُقۡ

یقینًا څه وس نه لرم مګر د ځان خپل او د رور خپل پس فیصله اوکه

بَيۡنَنَا وَبَيۡنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡفَٰسِقِينَ ۝٢٥ قَالَ

په مینځ زمونږ او په مینځ د قوم نافرمان کښ ۔ او فرمائیل اللہ تعالیٰ

فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيۡهِمۡۛ أَرۡبَعِينَ سَنَةٗۛ

پس یقینًا دا زمکه بنده دہ په دوی باندے څلویښت کاله

يَتِيهُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِۚ فَلَا تَأۡسَ عَلَى ٱلۡقَوۡمِ

حیران به ګرځی په زمکه کښ ۔ پس مه خفه کیږه په قوم

بل روایت کښ دی که ته مونږه د برك الغماد مقام ته په سخت سفر سره یوځے نو هم مونږ درسره یو (رضی اللہ عن جمیع اصحابه صلی اللہ علیه وسلّم)۔

۲۵ دا دعاء شر د موسیٰ علیه السّلام ده په دغه قوم باندے او دا بد اثر دے د ترك د فرض شوی جهاد ۔ إِنِّي لَآ أَمۡلِكُ إِلَّا نَفۡسِي (سوال) ملکیت رقبی خو د انسان په خپل ځان باندے هم نیشته۔ ځان خرڅولے نشی، ځان قتل کولے نشی؟ (جواب) مراد د دے نه تصرف ظاهری دے۔ وَأَخِي (سوال) انسان خو په رور کښ تصرف نشی کولے؟ (جواب ع۱) مراد د دے نه مِلك د اطاعت کولو دے یعنی څما اطاعت نه کوی مګر څما نفس او رور څما۔ (جواب ع۲) دا جمله مستقله ده په تقدیر د عبارت سره یعنی وَأَخِي لَا يَمۡلِكُ إِلَّا نَفۡسَهُ۔ اطاعت خو د دهٔ هغه دوه ملګرو هم کړے وو یعنی یوشع او کالب؟ (جواب ع۱) په هغوی باندے هم د دهٔ مکمل اعتماد نه وو پشان د اعتماد کولو په هارون علیه السلام باندے۔ (جواب ع۲) شر بینی وئیلے دی چه مراد د اخ نه معنی عامه ده یعنی مَنۡ يُوَاخِيۡنِيۡ فِي الدِّيۡنِ۔ (څوك چه په دین کښ څما رور والی او موافقت کوی)۔ فَافۡرُقۡ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡفَٰسِقِينَ فرق په معنی د فیصلے کولو او حکم کولو دے مناسب د هر یو سره ۔ یا مراد د دے نه جدائی ده د جماعت

الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲٦﴾ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ ابْنَيْ اٰدَمَ

نافرمان بانده ـ او بيان كړه په دوى باندے خبر دَ دوو ځامنو دَ آدم (عليه السلام)

دَ هغوى نه اولړے والے دَ هغوى دَ ګناه او دَ عذاب دَ شرکت نه. يا مراد دَ دے نه جدا والے دے په آخرت کښ.

۲٦ دا اجابت دَ دُعا دَ موسىٰ عليه السلام دے او ذکر دَ عذابِ دنيوى دے په هغه قوم باندے. مُحَرَّمَةٌ اکثر مفسرينو وئيلے دى چه دا تحريم منعى وو (يعنى په معنىٰ لغوى سره) الله تعالىٰ دوى لره منع کړل دوى قدرت نه لرلو دَ هغے ته دَ وتلو الله تعالىٰ داسے نا آشنا اسباب پيدا کړل چه دوى دَ هغے نه بهرنشو وتلے. او ابوعلى وئيلے دى چه تحريم تعبدى شرعى وو يعنى دوى شرعًا منع کړے شول زمکے مقدسے ته دَ داخليدلو نه. ليکن اول قول غوره دے. اَرْبَعِيْنَ سَنَةً په عامل دَ اربعين کښ دوه قوله دى اول دا متعلق دے په محرّمة پورے يعنى تحريم موقّت وو تو دَ څلويښت نه روستو دوى په هغه ملك باندے په زمانه دَ يوشع عليه السلام کښ الله تعالىٰ غالب کړل. يا متعلق دے په يتيهون (مؤخر) پورے بيا تحريم ابدى مراد شو خو دَ دوى عمرونه الله تعالىٰ څلويښت کالونه سرګردانه دَ پريشانتيا نه اوګرځول او دَ څلويښت کالو نه روستو دغه بنى اسرائيل ختم شول او دَ دوى اولاد باقى پاتے شول او هغوى جهاد اوکړو دَ جبارو سره په ملکرتيا دَ يوشع عليه السلام کښ او غالب شول.

(فائده) موسىٰ او هارون عليهما السّلام په دغه زمکه کښ دَ دوى سره اوسيدل يعنى دَ هغوى اوسيدل په طريقه دَ عذاب سره نه وو لکه ملائک دَ نارِ جهنم چه دى دَ جهنم نه او حال دا چه دَ جهنم څوکيداردى. بيا دواړه (موسىٰ او هارون عليهما السّلام) په دغه ملک کښ وفات شو او دَ هغوى نه روستو الله تعالىٰ نبوت ورکړو يوشع عليه السلام لره. يَتِيْهُوْنَ دَ تيه نه ماخوذ دے حيرانتيا او پريشانتيا ته وئيلے شى او دا عذاب وو په سبب دَ ترک دَ جهاد سره نو اوس هم ترک دَ جهاد دَ ذِلت دَ پريشانئ سبب دے او دَ دے وجے نه هغه ملک مشهور شويے په ميدان تيه سره. فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ دا تسلّى ده دَ

بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ

په رښتیا - کله چه قرباني اوکړه دواړو قرباني جدا جدا نو قبوله کړے شوه دَ

اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ ؕ

یو کس دَ دے دواړو نه (چه هابیل وو) او قبوله نه شوه دَ بل کس نه (قابیل نه) -

قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ؕ قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ

اوئیل (قابیل) خامخا قتل کووم به تا لره - اوئیل (هابیل) یقینًا قبلوی الله تعالیٰ (عملونه)

مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۷﴾ لَئِنْۢ بَسَطْتَّ اِلَيَّ يَدَكَ

دَ اخلاص کوونکو نه - که ته اوږده کړے ماته لاسونه خپل

الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته: اَلَتی وئیلے شی غم او افسوس دَ همدردئ دَ وجے نه نو دَ فاسقانو او دَ کافرانو په عذابونو او مصیبتونو باندے دَ هغوی سره غم خوري او همدردی کول حرام دی او دا سے په دے سورة سـ۶۸ اوسورة اعراف سـ۹۳ کښ هم دی.

سـ۲۷ دَ دے قصے ربط دَ مخکښ سره په څو وجوهو سره دے اول دا چه مخکښ ترک دَ قتال دَ کافرانو سبب دَ پریشانئ وؤ نو په دے واقعه کښ ناحق قتل کول دَ رور مؤمن سبب دَ بےعقلئ او دَ پریشانئ گرځولے شوید ے- دویم دا چه مخکښ هم خیانات دَ بنی اسرائیلو ذکر شول نو پدے قصه کښ ذکرکوی چه په دوی کښ حسد او قتل وقتال دے په کورنئ کښ او دا میراث دَ قابیل دے نو دَ دوی نور خیانتونه ذکر کړیدی قتل ناحق، اسراف، محاربه دَ الله او رسول سره، اوسعی (کوشش) دَ فساد فی الارض سره او دا ټول دَ حسد نه پیدا شویدی- دریم دا چه مخکښ دَ دوی بے لوظی په ترک دَ جهاد سره ذکر کړه او ورسره دَ هغے عذاب ذکر شو چه ذلت دے نو په دے قصه کښ بے لوظی دَ قابیل ذکو کوی په سبب دَ حسد کولو او تقویٰ پریخودلو او قتل کول دَ رور په ناحقه سره چه دا سبب شو دَ یارة دَ عقل دَ زوال پښان دَ عذاب او دَ یارة دَ ندامت (حیرانتیا پریشانی)

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ ضمیر بنی اسرائیلو ته راجع دے یا موجوده امت ته راجع کړے

ابْنَیْ اٰدَمَ صحیح قول دا دے چه دا دَ آدم علیه السلام او حواء علیهما السّلام صلبی ځامن ووُ اوخوک وائیٔ چه دوی په بنی اسرائیلو کښ ووُ۔ ابن کثیر او قرطبی او آلوسی دوېم قول ضعیف گنړلے دے۔ او دَ دوی نومونه ووُ هابیل او قابیل۔ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا ابن کثیر وئیلے دی ظاهر دَ قرآن دا دے چه سبب دَ قربانیٔ کولو امر دَ الله تعالیٰ ووُ بل هیڅ سبب نه ووُ او اشاره ده چه قربانی کول زوړ سنت دے او چاچه وئیلے دی چه سبب دَ دے واقعے دَ نکاح کولو وو چه قابیل خپله خور هابیل له نه ورکوله اوحال دا دے چه په هغه وخت کښ دا سے نکاح کول جائز ووُ نو دوی ته امر اوشو دَ قربانیٔ کولو نو دا اسرائیلی روایت دے نه یٔے تصدیق کوؤ اونه تکذیب۔
قُرْبَان هر هغه څیز چه په هغے سره تقرب الی الله حاصلیږی او اکثر استعمال یٔے په صدقه مالی کښ کیږی که ذبح کول وی په نوم دَ الله تعالیٰ یا یوجنس (غنم وریشے وغیره) په صدقه کښ ورکول وی او قربانی دَ هابیل گډ ذبح کول ووُ او دَ قابیل څه ردی (ریے کاره) دانے صدقه کښ ورکول ووُ۔ فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا طریقه دَ قبولیت په هغه وخت کښ دا سے وه چه اور به دَ آسمان نه نازل شو نو چه کوم په یٔے اوسیزلو هغه به قبول ووُ او دیته اشاره شویده په سورة آل عمران ۱۸۳ کښ۔ نو قبولیت اوشو دَ قربانیٔ دَ هابیل او دَ قابیل قبوله نه شوه او روستو لفظ دَ متقین دلالت کوی چه دَ عدم تقوٰی (اخلاص) دَ وجے نه دَ قابیل قربانی قبوله نه شوه او دا شرط دَ قبولیت په سورة حج ۳۷ کښ ذکر دے۔ قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ دا قول دَ حسد دَ وجے نه دے یعنی قبولیت دَ قربانیٔ دلیل شو په فضلیت دَ هابیل باندے نو دَ دے وجے نه قابیل حسد شورو کړو۔ دَ بعض اهلِ علم نه نقل دے چه اول گناه دَ حسد په آسمانو نو کښ ابلیس کړے دے دَ آدم علیه السلام سره او اول گناه دَ حسد په زمکه کښ قابیل کړے دے دَ خپل رور سره۔ بیا مرض دَ حسد ډیر پیدا شویدے په بنی اسرائیلو کښ او دَے امت ته په دمه دمه منتقل شویدے دا سے په حدیث کښ راغلے دی۔
قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ دا مختصر جواب دے تفصیل یٔے دا سے دے چه قبولیت خو په تقوٰی باندے پتا دے او په تاکښ تقوٰی نه وه نو دا نقصان ستا دَ نفس دَ طرف نه دے څما خو په دے کښ

لِتَقْتُلَنِىْ مَآ اَنَا بِبَاسِطٍ يَّدِىَ اِلَيْكَ

دے ډپاره چه ما وژنے، خو زه يم څه اوږدونکے لاس خپل تا ته

لِاَقْتُلَكَ اِنِّىْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٨﴾

دے ډپاره چه قتل کړم تا، يقيناً زه يريږم د الله تعالىٰ نه چه پالونکے د خلقو دے۔

هيڅ دخل نيشته۔ اَلْمُتَّقِيْنَ نه مراد مؤحدين او متبعين سنت دى سرهٔ د اخلاص نه او اِنَّمَا په حصر باندے دلالت کوى يعنى عدم تقوىٰ مستلزم دے عدم قبوليت لره او ملا على قارى په شرح د مشکوٰة کښ وئيلے دى چه دا يوه جمله (قضيه) ده او بله جمله په حديث کښ ده چه "لا يقبل الله لِصَاحِبِ بِدْعَةٍ صَوْمًا وَلَا صَلٰوةً" الحديث (ابن ماجه) نو د دواړو جملو د پيوستوالى نه معلومه شوه چه بدعتى متقى نه دے۔

٢٨ دا قول د هابيل د طرف نه دے۔ بَسْطُ يد (اوږدول د لاس) کنايه ده د اراده نه کولو د قتل نه۔ لِاَقْتُلَكَ اشاره ده چه زه اراده ستا د قتل نه کوؤم دا ئے نه دى وئيلے چه مدافعت به نه کوؤم مدافعت کول خو واجب دى او زمونږ په اُمت کښ دغسے حکم دے په وخت د فتنه کښ او د جنګونو د مسلمانانو کښ چه خپل مدافعت به کوئ او قرطبى حديث د ابو داؤد ذکر کړيدے د سعد رضى الله عنه چه په وخت د فتنه د مسلمانانو کښ څوک زما کور ته داخل شى او لاس اوږد کړى زما د قتل د پاره (نو څه به کوؤم) رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب ورکړو "کُنْ کَخَيْرِ ابْنَىْ اٰدَمَ" او دا آيت ئے اولوستلو۔ اِنِّىْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعَالَمِيْنَ يعنى اراده د قتل د يو مسلمان مخالفت دے د حکم د الله تعالىٰ نه چه د الله نه خوف ضرورى دے چه داسے کار اونشى۔ نو لفظ د لاقتلك او حديث د ابو داؤد او لفظ د اِنِّىْٓ اَخَافُ اه دليلونه دى چه هابيل بزدلى نه ده کړے او خاموش هم ناست نه دے بلکه خازن او نسفى وغيره نه لو ليکلى دى چه هابيل په طاقت کښ د قابيل نه زيات وو ليکن ځان ئے د ګناه نه بچ کوؤ نو هغه خبره چه بعضے استاذانو په دے مقام کښ ليکلے ده چه په دے قصه کښ اشاره ده چه د هابيل پشان کار مه کوئ خاموش مه کينئ دا قول د مخکنو دليلونو په وجه سره باطل دے (عفا الله تعالىٰ عنه)۔

إِنِّيٓ أُرِيدُ أَن تَبُوٓأَ بِإِثۡمِي وَإِثۡمِكَ فَتَكُونَ

| یقیناً زه اراده لرم (چه ګناه نه ځان بچ کړم) تو ته به اخته شے په ګناه (د قتل) زما او په (زړه) ګناه ستا نو شے به ته |
|---|

مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلنَّارِۚ وَذَٰلِكَ جَزَٰٓؤُاْ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٢٩﴾

| د اور والو نه او دا (اور) سزا د ظالمانو ده۔ |
|---|

فَطَوَّعَتۡ لَهُۥ نَفۡسُهُۥ قَتۡلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُۥ

| نو خائسته کړو هغه ته نفس د هغه وژل د رور خپل نو قتل ئے کړو هغه |
|---|

۲۹ دا قول د هابیل تخویف ورکول دی قابیل ته د قتلِ ناحق نه. إِنِّيٓ أُرِيدُ أَن تَبُوٓأَ اه (سوال) دا اراده کول چه فلانے شخص دِ ګناهګار شی او جهنم ته دے لاړ شی جائز نه ده دے ته غش وئیلے شی او غش خو حرام دے؟

(جواب ۱) یعنی زه خو ستا مدافعت حتی الوسع کووم او ستا د قتل اراده خو نه لرم نو په دا سے حال کښ چه ته ما له قتل کړے نو ګناه به تا یا ندے انبار شی نو تقدیر د عبارت دادے إِنِّيٓ أُرِيدُ مُدَافَعَتَكَ لَا قَتۡلَكَ فَإِذَا قَتَلۡتَنِيۡ فَتَبُوءَ بِإِثۡمِي اه زه خو ستا د دفع کولو اراده لرم نه د قتل کولو نو ته که ما له قتل کړے نو اخته به شے په ګناه د قتل زما، او خازن وئیلے دی انسان چه تمنیٰ اوکړی چه زما د وینے ګناه دے په قاتل باندے راشی نو دے په دے کښ ملامته نه دے۔ (جواب ۲) زمخشری وئیلے دی چه دیته ئے اراده مجازاً وئیلے ده۔ (جواب ۳) سمعانی وئیلے دی مراد د دے نه عِقَابِ إِثۡمِيۡ اه دے۔ بِإِثۡمِي وَإِثۡمِكَ رسوال د اول لفظ نه ظاهراً معلومیږی چه ګناه د هابیل به په قابیل باندے راځی او دا خو د دے ایت نه خلاف ده چه لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزۡرَ أُخۡرَىٰ ؟ (جواب) د اثمی نه مراد ګناه د قتل کولو د قابیل دے هابیل لره او دا عمل خو د قابیل دے وَإِثۡمِكَ د دے نه مراد د قابیل نور ګناهونه دی تقوىٰ نه کول، حسد کول د رور سره، د پلار نه خلاف کول وغیره۔ ابن جریر وئیلے دی چه د مجاهد نه دا روایت چه نقل دے چه د اثمی نه ګناهونه د هابیل مراد دی نو دا غلط معلومیږی۔ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلنَّارِ دا لفظ اکثر د کافرانو باره کښ استعمالیږی د دے وجے نه بعض مفسرینو تصریح کړے ده چه

فَأَصْبَحَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۳۰﴾ فَبَعَثَ اللّٰهُ

تو شو دے دَ تاوان والو نه - نو را اولیږلو الله تعالیٰ

غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْاَرْضِ لِيُرِيَهٗ كَيْفَ

یو کارغه کنستل یې کول په زمکه کښې دے دپاره چه اوښائي ده ته چه څه رنګه

يُوَارِيْ سَوْءَةَ اَخِيْهِ ؕ قَالَ يٰوَيْلَتٰۤى اَعَجَزْتُ

پټ کړي وجود (لاش) دَ رور خپل - اوئیل ده! هئے ارمان دے آیا عاجز شوم څه د دیته

اَنْ اَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَاُوَارِيَ

چه شم دے پشان دَ دے کارغه چه پټ کړم

سَوْءَةَ اَخِيْ ۚ فَاَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ ۚ لا

وجود (لاش) دَ رور خپل نو شو دے دَ حیرانو (پښیمانو) نه -

قابيل كافر وؤ ليكن قرطبي دَ هغې رد كړے دے او اصحاب النار دَ قاتل په باره كښې استعماليږي اشاره ده چه په جهنم كښې به دے ډيره موده پوره اوسيږي.
سـ۳ اشاره ده چه دَ هابيل وعظ قابيل ته فائده ورنكړله. فَطَوَّعَتْ لَهٗ په معنیٰ دَ تشجيع او خائسته كول او اسانولو سره دے. نَفْسُهٗ اشاره ده چه دا سے نفس امّا ره بالسوء وی. اَلْخٰسِرِيْنَ خسران په دنيا كښې دا دے چه مور او پلار ترينه خفه شول او بے روره پاتے شو او خسران اخروی دا دے چه الله تعالیٰ يې ناراض كړو او ظالم شو او اور ورله واجب شو او دا رنګ دَ صريح او صحيح حديث په بنا هر قتل ناحق چه په دُنيا كښې واقع كيږي نو دَ هغې نه دَ ګناه څه حصّه په قابيل باندے باركيږي ځكه چه دهٔ اول دَ قتلِ ناحق بنياد كيخودلے دے نو دا هم لوئے خسران دے. (او دا روايت بخاری مسلم او نورو محدثينو ذكر كړے دے.)
سـ۳۱ دا ذكر دَ يو اثر دے دَ اثارو دَ خسران نه يعنی پوهه دَ قابيل دومره كمه شوه چه تعليم كښې غراب ته محتاج شو. ظاهر دَ ايت دا دے چه يو كارغه وؤ او زمكه يې اوكنستله او خپل څه خوراک يې پكښې پټ كړو نو قابيل هغه اوليدلو هغه نه يې عبرت واخستلو نو دهٔ هم هابيل دپاره قبر اوكنستلو او هغه يې

وقف النبي صلى الله عليه وسلم

مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

دَ وجې دَ دے واقعې نه ، فرض کړو مونږ په بنی اسرائیلو

اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًۢا بِغَيْرِ نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ

چه یقینًا چا چه قتل کړو یو تن بغیر دَ بدل دَ یل تن نه یا بغیر دَ څه ورانۍ نه

فِى الْاَرْضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ

په زمکه کښ نو ګویا که قتل کړل دهٔ خلق ټول۔

وَمَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ

او چا چه ژوندے اوساتو یو تن لره نو ګویا که چه ژوندی اوساتل خلق ټول۔

وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ز ثُمَّ

او یقینًا راغلی وو دوی ته رسولان زمونږ په ښکاره حکمونو سره بیا

پکښ فخ کړو او دا یو سنتِ مستمره دے په انسانانو کښ او دا اول مړے وو په انسانانو کښ دَ دے وجې قابیل ته علم نه وو چه دهٔ سره څه چل اوکړی. لِيُرِيَهٗ كَيْفَ اه لام متعلق دے په فَبَعَثَ پورے. سَوْءَةَ اَخِيْهِ دَ بدن هغه حصه چه دَ هغې په ښکاره کیدلو بدا ګڼړلے کیږي یعنی نوک ژوندۍ عورت ته سوءت او دَ مړی ټول بدن ته سوءت یعنی لاش وئیلے کیږي. يٰوَيْلَتٰٓى په اصل کښ یاویلتِي په زیر دَ تاء سره دے نو په حال دَ نِدا کښ په تاء باندے زور راغی او دا کلمه عرب په وخت دَ دُعا دَ هلاکت کښ ذکر کوی او دَ افسوس دَ پاره هم استعمالیږی. اَعَجَزْتُ اه استفهام تقریری دے او تمنٰی یئے اوکړله دَ مشابهت دَ کارغه سره دا هم ډیره بے وقوفئ باندے دلیل دے.

فَاَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ سوال: ندامت خو توبه ده لکه چه په حدیث کښ وارد دی "اَلنَّدَامَةُ تَوْبَةٌ"؟ جواب: دا ندامت په ګرځولو دَ هابیل دَ لاش سره دے په خپله غاړه باندے مخکښ دَ دفن نه. یا ندامت ځکه په کموالی دَ فائدے دَ قتل او زیات والی دَ نقصان دَ هغې، صرف په قتل کولو یئے ندامت نه دے کړے. داسے هم وئیلے شوے دی چه ندامت په هغه زمانه کښ توبه نه وه. او مدارک وئیلے دی چه نادمین په معنی دَ متحیرین دے. بعضِ

إِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم بَعْدَ ذَٰلِكَ فِي الْأَرْضِ لَمُسْرِفُونَ ﴿۳۲﴾

یقیناً ډیر ډېر دوی نه روستو دَ دے نه په زمکه کښ زیاتے کوونکی (دَ حد نه تیروتونکی) دی۔

مفسرینو دلته دَ آدم علیه السلام شعرونه په مرثیه دَ هابیل کښ ذکر کړیدی لیکن زمخشری وئیلے دی چه هغه خالص دروغ دی او امام رازی هم دَ زمخشری تصدیق کړے دے۔

۳۲ په دے کښ انتقال دَ بحث دے دَ واقعے دَ قابیل نه ذکر دَ خبائثو دَ بنی اسرائیلو ته۔ مِنْ أَجْلِ ذَٰلِكَ قرطبی وئیلی دی چه اجل په معنی دَ جنایت او دَ جرم سره دے او ذٰلك اشاره ده قابیل ته یا اجل په معنی مشهوره سره دے او ذٰلك اشاره ده هغه مفاسدو ته چه پیدا شویدی دَ قتلِ عمد نه یعنی دغه جرم چه مستلزم دے ډیرو مفاسدو لره سبب دے دَ پاره دَ مشروعیت دَ قصاص او دَ تشدید په باره دَ قتلِ عمد کښ په ټولو روستنو دینونو کښ او بالخصوص په بنی اسرائیلو کښ۔

كَتَبْنَا عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ تخصیص دَ دوی دَ دے وجے نه دے چه اول غټ آسمانی کتاب (تورات) په دوی باندے نازل شوے وو دَ دوی نه وړاندے خو دا مسئله په طریقه دَ وحی سره وه لیکن کتابی صورت ئے نه وو۔ او بله وجه دا چه بنی اسرائیلو کښ قسوة قلب (سختوالے دَ زړونو) ډیر وو دَ حسد دَ وجے نه په هغوی کښ قتل وقتال او نور مفاسد ډیر پیدا وو۔ أَنَّهُ مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ اه په طریقه دَ اشارة النص سره معلومه ده چه قتل دَ نفس په قصاص سره او په زنا کولو روستو دَ وادهٔ نه او ارتداد او قطع الطریق سره ضروری دے او دَ دے نه چه علاوه وی نو هغے ته قتل ظلمًا او بغیر حق وئیلے شی نو دَ هغے خبائث او شدت ذکر کیږی په عبارة النص کښ۔ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ مراد دَ دے نه هغه معاصی دی چه شرعًا سبب دے دَ پاره دَ قتل کولو چه په حدیث دَ بخاری او مسلم کښ راغلے دی "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِإِحْدَىٰ ثَلَاثٍ كُفْرٍ بَعْدَ إِيمَانٍ أَوْ زِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ أَوْ قَتْلِ نَفْسٍ بِغَيْرِ نَفْسٍ" (حلال نه دے وینه دَ مسلمان شخص مګر په یو دَ درے خصلتونو سره، کفر کول روستو دَ ایمان نه یا زنا کول روستو دَ واده کولو نه یا وژل دَ یو نفس په غیر دَ بدال نه)۔

إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا۟ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ

یقینًا سزا دَ هغه کسانو چه جنګ کوی دَ الله تعالٰی سره او دَ رسول دَ هغه سره

وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓا۟

او کوشش کوی په زمکه (مُلک) کښ دَ ورانی کولو دا دَه چه قتل دِے کړیشی دوی

فَكَأَنَّمَآ أَحْيَا ٱلنَّاسَ سوال: عقوبت دَ هغه چا چه ډیر قتلونه اوکړی زیات دَ
دَ قتل دَ یو نفس نه نو دا تشبیه څنګه صحیح کیږی؟
جواب (۱) دا تشبیه په عقوبت کښ نه ده هتکِ حرمت کښ ده او په فساد
پیدا کیدلو کښ ده دَ دے مثال دا دے چه دوه کسان قسم اوکړی چه دَ دے
اونې نه به میوه نه خورم نو یو تن ترینه یوه دانه اوخوړله او بل ترینه
ټولے اوخوړلے نو په ماتولو دَ قسم کښ دواړه برابر دی. دا سے ابن عطیه
او قرطبی وئیلے دی۔
جواب (۲) دلته خاص نفس مراد دے لکه نبی دَ الله تعالٰی یا امام عادل
دَ هغه قتل یا بچ کول مشابه دے دَ قتل او بچ کولو دَ ټولو انسانانو سره
په عقوبت او ګناه کښ (ابن جریر۔ قرطبی)۔
وَمَنْ أَحْيَاهَا مراد دَ احیاء مقابل دَ قتل دے مقابل دَ موت نه دَ اومقابل
دَ قتل دا دے چه یو نفس لره دَ هلاکت دَ ځاے نه او دَ غرق یا سوزیدلو
یا دَ قاتل دَ لاس نه بچ کړی او دیته معنوی حیات وئیلے شی لکه په سورة
انفال ۲۴ نو اشارةً معلومه شوه چه په قتل کښ مرتد کول انسان
او په ژوندی کولو کښ مسلمان کول هم داخل دی۔
وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ اشاره ده چه دَ دغه حکم دَ جاری ساتلو دَ پاره په بنی اسرائیلو
کښ ډیر رسولان الله تعالٰی رالیږلے دی دَ پاره دَ دے چه دَ دوی بهانه
پاتے نشی۔
لَمُسْرِفُونَ اسراف تجاوز کول دی دَ حد نه په حقوق الله کښ لکه شرک
او کفر او بدعات کول او په حقوق دَ بندګانو کښ ظلم او قتل په ناحق
وغیره او دا ټول اسباب دَ عذاب دی۔

اَوْ يُصَلَّبُوْٓا اَوْ تُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ

يا په سولئ كړيشي يا پرې كړيشي لاسونه د دوى او خپې د دوى

مِّنْ خِلَافٍ اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ ؕ ذٰلِكَ

ادل بدل يا دې اوشړلےشي د ملک نه - دا (سزاګانې)

لَهُمْ خِزْيٌ فِى الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ

دوى لره شرمندګى ده په دنيا كښ او دوى لره په اٰخرت كښ

عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝٣٣ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ

عذاب لوئے دے، مګر هغه كسان چه توبه يے وېستله مخكښ

۳۳ دا ذكر د بعض قسمونو د اسراف دے چه هغه سبب د سزا دے په دنيا او اٰخرت كښ - او دا خبا ثات په بنى اسرائيلو كښ روستو د تورات نه موجود شوے وو د دے ايت په باره كښ اختلاف دے د مفسرينو چا وئيلے دى چه دا نازل شوے دے په باره د عكل او عرينيو كښ چه هغوى مرتد شوے وو او اوښان يے تختولے وو او څوكيدار د اوښانو يے په ناكاره قتل سره وژلے وو او هغه بخارى مسلم روايت كړے دے او چا وئيلے دى چه نازل شوے دے په باره د اهل كتابو كښ دا ابن جرير قرطبى د ابن عباس او ضحاك نه نقل كړے دے او ابو داؤد او نسائي روايت كړے دے چه دا د مشركينو په باره كښ نازل شوے دے ليكن صحيح دا ده (ابن كثير وئيلے دى) چه دا ايت عام دے مشركانو وغيره ټولو ته چه په چا كښ دا صفتونه پيدا شى اګرچه مسلمان وى ځكه چه علماؤ د دے ايت نه د لاره شوكولو (د اكرتى) د سزا د پاره استدلال نيولے دے اګرچه مرتد شوے نه وى.

يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ مخالفت كوى د الله تعالىٰ او د رسول د هغه نه برابره خبره ده كه په طريقه د كفر او ارتداد سره وى يا نه وى. بعضو مفسرينو وئيلے دى چه دلته مضاف پټ مراد دے يعنى اولياء الله و رسوله مقصد يے يو شان دے. وَيَسْعَوْنَ فِى الْاَرْضِ فَسَادًا په لارے شوكولو سره د خلقو په قتل كولو يا په يره ولو سره او په مالونو اخستلو سره -

اَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ ۚ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

دَ دیته چه وس برشي ستاسو په هغوی باندې نو پوهه شئ یقیناً الله تعالیٰ بخونکے دے

رَّحِيْمٌ ﴿٣٤﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ

رحم کوونکے دے۔ اے ایمان والو! یرهٔ کوئ دَ الله تعالیٰ نه

٥ ع ٨ ٩

اَنْ يُّقَتَّلُوْٓا اه په دے کښ اختلاف دَ اقوالو دَ سلفو دے یو قول دا چه او دَ پاره دَ تخییر (اختیار) دے دَ قاضي یا امیرالمؤمنین خوښه ده که په سزاګانو کښ هر یوه سزا ورکوی۔ دویم قول دا دے چه او دَ پاره دَ تنویع (قسم) دے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه که دوی صرف قتل دَ مسلمان کړے وی نو سزا یې صرف قتل دے او که قتل یې کړے وی او ورسره یې مال ترینه اخستلے وی نو سزا یې قتل او پهانسی کول دواړه دی او که صرف مال یې اخستلے وی او قتل یې نه وی کړے نو سزا یې دا ده چه ښے لاس او ګسه خپه دَ ترینه پریکړے شي او که مسلمانان یې صرف یره ولے وی وړے یې وربانده کړے وی یا یې وهلے وی نو سزا یې جیل ته اچول یا دَ ملک نه جلاوطن کول دی۔ اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ سمعانی دَ عمر بن عبدالعزیز نه نقل کړے دے چه دَ ټولو اسلامی بلادونو نه به اوشړلے شي او دَ اهل کوفه نه نقل دے چه جیل کښ دے بند کړیشي او ابن جریر داغوره کړے ده په دے شرط چه په بل کلی کښ به جیل ته اچولے شي۔ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ اه هر کله چه په قطع الطریق سره تجارتو نه بند شي سفر کول طاعتونو او عباداتو دَ پاره هم بند شي دَ دے وجے نه الله تعالیٰ دَ دے دَ پاره سخته سزا مقرر کړه او په تیر شوے سزاګانو کښ به هر یو کښ تذلیل او توهین او شرمندګی ده په دنیا کښ۔ وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ دَ دے نه استدلال دے دَ هغه چاچه وائي چه په عقوبتِ دنیویه سره سزا دَ اخرت نه معاف کیږی۔ او مقابل قول والا وائي چه دا په باره دَ کافرانو کښ دے لیکن صحیح دا ده چه ایت عام دے۔

سلا که ایت په باره دَ کافرانو کښ وی نو دا حکم خو ظاهر دے چه په توبه کولو سره دَ شرک او کفر نه ټول ګناهونه معاف کیږی او چه ایت په باره دَ مسلمانانو کښ شي نو دَ اکثر اهلِ علم مسلک دا دے چه په دے

وَابْتَغُوْٓا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ وَجَاهِدُوْا فِىْ سَبِيْلِهٖ

او لټوئ خاص الله تعالیٰ ته نیږدې والے اوکوشش (جهاد) کوئ په لاره د الله تعالیٰ کښې

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۵﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

دې د پاره چه تاسو کامیاب شئ. یقیناً هغه کسان چه کفر ئې کړې دے

توبه سره حقوق الله معاف شول او قصاص او حقوق العباد نه معاف کیږی کله چه مخکښې د قدرت مونډلو نه په دۀ باندې توبه اوباسی. او روستو د قدرت مونډلو نه (یعنی رانیولو نه) توبه اوباسی نو حدود الهیه ورته هم نه معاف کیږی لکه چه حقوق العباد هم ورته معاف نه دی او دا قول راجح دے.

۳۵ ربط د دې ایت د مخکښې سره دا دے چه مخکښې ایاتونوکښې خبائث د بنی اسرائیلو قولی او عملی ذکر شول نو اوس مؤمنانو ته په تقوٰی سره خطاب کوی مراد د تقوٰی نه دا دے چه دغه خبائث چه ذکر شول د هغې نه ځان بچ ساتئ. دویم ربط دا دے (نیشاپوری وئیلې دی) چه دا متعلق دے د ثلث سره یعنی یهود او نصارٰی د تقرب الی الله او د نجات د پاره فخر کوی په اباؤ خپلو او کهغوی په عملونو باندې نو الله تعالیٰ مؤمنانو ته فرمائي چه تاسو په خپلو عملونو صالحو سره الله تعالیٰ ته تقرب حاصل کړئ په ذواتو د مشرانو او په عملونو د هغوی باندې توسل او تقرب نه حاصلیږی. اتَّقُوا اللّٰهَ احکام شرعیه دوه قسمه دی یو منهیات د هغې نه ځان بچ کول پکار دی دویم مامورات چه د هغې امتثال او عمل کول پکار دی دا رنګ د احکام شرعیه دوه حالته دی یو ځپله عمل کول دویم نورو خلقو ته دعوت کول. نو ترک د منهیات ته اشاره ده په اتقوا الله کښې او دا معنی ابن کثیر او خازن وغیره ذکر کړې ده او عمل په ماموراتو ته اشاره ده په وابتغوا الیه الوسیلة سره او دعوت او جهاد ته اشاره ده په جاهدوا فی سبیله سره او دا ارکان د فلاح په سورة العصر کښې په بل تعبیر سره ذکر دی.

**د وسیلې د مسئلې تفصیل:-** دا مشتمل دے په شپږ بحثونو باندې (اول بحث په معنی لغوی او معنی اصطلاحی کښې) صاحب قاموس او د هغې په

شرح کښ لیکلی دی چه وسیله او داسے منزله په نیز د بادشاه درجے، قربة، وصلة ته وئیلے شی. جوهری په صحاح کښ وئیلی دی وسیله ما یتقرب به الی الغیر (هغه څیز چه په هغے سره بل څیز ته نزدیکت کیږی). او ابن کثیر وئیلی دی چه "ما یُتَوَصَّلُ بِهٖ اِلٰی تَحْصِیْلِ الْمَقْصُوْدِ" (چه په هغے سره مقصد ته رسیدل کیږی) تفسیر خازن کښ وئیلی دی چه وسیلةٌ وزن د فعیلةٌ دے د وَسَلَ نه په معنیٰ د تقرب الیه دے او داسے شاعر وئیلی دی اِنَّ الرِّجَالَ لَهُمْ اِلَیْكَ وَسِیْلَةٌ یعنی قربةٌ او آلوسی وئیلی دی چه وسیلةٌ وزن د فعیلةٌ دے په معنیٰ د "ما یتوسل به ویتقرب به الی الله من فعل الطاعات وترك المعاصی" (هغه شے چه په هغے سره نزدیکت حاصلیږی الله ته یعنی کول د نیکو کارونو او غلط کارونه پریخودل) او ابن کثیر د ابن عباس رض او مجاهد او ابو وائل او حسن بصری او قتاده او عبدالله بن کثیر او سدّی او ابن زید نه نقل کړیدی چه وسیله په معنیٰ د قربت سره دے او بیا ئے وئیلی دی چه په دے معنیٰ کښ د مفسرینو خلاف نیشته دے. او ابن جریر د دغه ټولو سند ونه ذکر کړیدی او د ابن زید نه ئے معنیٰ د وسیله محبت نقل کړیدے. او امام راغب په مفردات القران کښ وئیلی دی چه وسیله وئیلے کیږی "التوصل الی الشّیٔ برغبته" (رسیدل یو څیز ته په مینه سره) او ابن منظور په لسان العرب کښ وئیلی دی وسیلة منزله، درجه، قربت، وصلة، واسل (رغبت کوونکے) په یو شعر کښ دی اَلَا کُلُّ ذِیْ رَایٍٔ اِلَی اللّٰهِ وَاسِلٌ۔

**او وسیله** په اصطلاح د شریعت کښ امام راغب وئیلی دی چه مُرَاعَاةُ سَبِیْلِهٖ بالعلم والعبادة وتحرّی مکارم الشّریعة (مفردات) (لحاظ کول د لارے د الله تعالیٰ په علم او عبادت سره او کوشش کول په ښه کارونو د شریعت کښ) او رفاعی وئیلی دی وسیله په شرع کښ الله تعالیٰ ته نزدیکت دے په طاعت او عبادت د هغهٔ او په اتباع د رسولانو د هغهٔ او په هر عمل چه محبوب وی الله تعالیٰ ته (التوصل ص۱۲)

**دویم بحث:** توسل او د هغے سره متقارب (نزدے) الفاظ. ۱ استغاثه طلب د غوث ته وئیلے شی او غوث ازاله د سختئ ته وائی. ۲ استنصار:- طلب د نصرت ته وئیلے شی. نو استغاثه او استنصار د مخلوق نه په هغه څیزونو کښ چه په قدرت د مخلوق کښ وی هغه بغیر د خلاف نه جائز دے یعنی اختلاف

پښتو نښتو لکه په دے ایت کښ "فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِیْ مِنْ شِیْعَتِهٖ" او دا ایت "وَاِنِ اسْتَنْصَرُوْکُمْ فِی الدِّیْنِ فَعَلَیْکُمُ النَّصْرُ" (انفال)۔ "او مَنْ اَنْصَارِیْۤ اِلَی اللّٰهِ" او د کوم کار چه مخلوق قدرت نه لری په هغے کښ استغاثه او استنصار په الله تعالیٰ پورے خاص دے لکه "اِذْ تَسْتَغِیْثُوْنَ رَبَّکُمْ" (انفال) او "مَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ" (انفال) او د طبرانی نه په معجم کبیر کښ روایت دے چه صحابه کرام د یو منافق نه ډیر تنګ وو تو ابوبکر رضی الله عنه اووئیل "قُوْمُوْا بِنَا نَسْتَغِیْثُ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم مِنْ هٰذَا الْمُنَافِقِ فَقَالَ صلی الله علیه وسلم اِنَّهٗ لَا یُسْتَغَاثُ بِیْ وَاِنَّمَا یُسْتَغَاثُ بِاللّٰهِ" (راځئ چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه فریاد رسی اوکړو د دے منافق نه نو اووئیل رسول الله صلی الله علیه وسلم یقینًا په ما سره فریاد رسی نه شی کیدے بلکه فریاد رسی په الله تعالیٰ سره کیږی)۔ نو دلته مراد استغاثه ده په هغه کار کښ چه په قدرت د نبی صلی الله علیه وسلم کښ نیشته دے۔ ۳ **استعانت**:- او استعانت طلب د عون (مدد) دے په دے کښ هم دغه تفصیل دے چه کوم په قدرت د بنده کښ داخل وی نو استعانت د بنده استعمالیږی لکه "اَعِیْنُوْنِیْ بِقُوَّةٍ (کهف) او کوم چه په قدرت د بنده کښ داخل نه وی نو هغه خاص دے په الله تعالیٰ پورے لکه "ایاك نعبد و ایاك نستعین" او "والله المستعان علی ما تصفون" (یوسف) ۴ او استمداد:- کوم چه قدرت د بنده کښ وی نو هغه نه مدد طلب کیدے شی لکه "اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ" (نمل) او چه په قدرت د بنده کښ نه وی نو هغه استمداد په الله تعالیٰ پورے خاص دے لکه "کُلًّا نُّمِدُّ هٰۤؤُلَآءِ وَهٰۤؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ" (اسراء) ۵ او استشفاع (شفاعت) کوم چه په قدرت د بنده کښ داخل وی لکه د بل چا د پاره دعا غوختل یا په اخرت کښ په اذن د الله تعالیٰ سره د چا شفاعت کول، په دے وجے سره د نبی صلی الله علیه وسلم صفت شافع شفیع او المشفع راغلے دے او دا مراد دے په هغه حدیث کښ چه ابو داؤد روایت کړے دے یو سړی اووئیل نبی صلی الله علیه وسلم ته "اِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِاللّٰهِ عَلَیْكَ وَنَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَی اللّٰهِ فَقَالَ شَاْنُ اللّٰهِ اَعْظَمُ مِنْ ذٰلِكَ اِنَّهٗ لَا یُسْتَشْفَعُ بِهٖ عَلٰۤی اَحَدٍ مِّنْ خَلْقِهٖ" (چه شفاعت طلب کوو په الله تعالیٰ په تا باندے او شفاعت طلب کوو په تا سره په الله تعالیٰ باندے نو هغه اوفرمائیل شان د الله تعالیٰ ډیر لوئے دے د دے نه یقینًا په هغه سره شفاعت نشی

طلب کیدے په هیڅ بانده دے د مخلوق نه)۔ نو دلته شفاعت بالاذن مراد دے۔
او کوم چه شفاعت (سفارش) د مخلوق دے پشان د هغه خلقو چه وئیل ئے
"هٰٓؤُلَاۤءِ شُفَعَاۤؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ" نو هغه شفاعتِ شرکیه دے۔ او توسل کښې هم ډیر
قسمونه دی لکه روستو بیانیږی۔
**تنبیه:**- د دے بیان نه معلومه شوه چه دغه الفاظ او خصوصًا توسل مجمل
یا مشترک الفاظ دی۔ شیخ الاسلام کتاب الوسیله کښې لیکلی دی چه دا مشترک
لفظ دے۔ او شرح عقیدة الطحاویه ص۲۶۳ طبع مکتبه سلفیه لاهور کښې دی
فَلَفْظُ التوسلُ بِالشَّخْصِ وَالتَّوَجُّهُ بِهٖ فِيْهِ اِجْمَالٌ غَلَطَ بِسَبَبِهٖ مَنْ لَّمْ يَفْهَمْ
مَعْنَاهُ (لفظ د توسل په شخص سره په دے کښې اجمال دے چه په سبب
د هغے سره غلط شوے وی هغه څوک چه د دے په معنٰی باندے نه پوهیږی)
دا رنګ لفظ د وسیله په فلانی سره او وسیله بالذوات او وسیله په دُعا
سره دا ټول مجمل الفاظ دی په وخت د بحث او مناظره کښې تعین د یو قسم
مراد دے چه شرعی دے یا غیر شرعی دے۔ مطلقًا که یو انسان اُوائی چه
زهٔ هر قسم وسیله منم نو په شرک یا بدعت کښې به پریوځی او که وائی
چه زهٔ هیڅ قسم وسیله نه منم نو دا به دهری کافر وی۔
**دریم بحث** په اقسامو د وسیله کښې دے۔ پوهه شه چه وسیله کښې
بعضِ اقسام شرعی دی او بعضِ اقسام شرکیه دی او بعضِ قسمونه بدعیه
دی۔ دا رنګ توسل دوه قسمه دے یو دا چه طلب د قربت د الله تعالٰی په
ایمان او نیک عملونو سره بغیر د طلب د حاجت نه او د دُعا نه وی یعنی یو
شخص ایمان راوړی او نیک عملونه په دے نیت سره کوی چه الله تعالٰی
ته نزدے شی او دا (وسیله) مصداق د دے قول د الله تعالٰی دے چه
"قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ" العمران
(ته اُوایه که چرے محبت (نزدیکت) د الله تعالٰی غواړئ نو زما تابعداری
اوکړئ نو الله تعالٰی به درسره محبت اوکړی او ګناهونه به تاسو ته اوبښی)
یعنی قربت او محبت د الله تعالٰی د نبی صلی الله علیه وسلم په تابعداریٔ
سره صِرف حاصلیږی نو اتباع د نبی صلی الله علیه وسلم وسیله ده الله
تعالٰی ته د قربت او محبت د پاره دا وسیله عین ایمان او توحید دے۔ او
څوک چه نزدیکت د الله تعالٰی په عبادت د غیر الله سره طلب کوی نو

هغه عين شرک دے لکه چه الله تعالىٰ فرمائيلى دى "وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى" (زمر ۳) نو دا وسيله شركيه ده. ابن قيم رحمة الله قصيده نونيه كښ وائى ؎

فَالشِّرْكُ هُوَ تَوَسُّلٌ مَقْصُوْدُهُ الزُّلْفٰى ✧ مِنَ الرَّبِّ الْعَظِيْمِ الشَّانِ
بِعِبَادَةِ الْمَخْلُوْقِ مِنْ شَجَرٍ ✧ وَمِنْ قَبْرٍ وَمِنْ اَوْثَانٍ

(معنى) "شرک چه دے هغه وسيله نيول دى الله تعالىٰ ته په مقصد د نزدے كيدلو الله تعالىٰ ته په عبادت د مخلوق سره كه ونه وى، كه قبر وى، او كه بت وى"- دويم قسم توسل په طلب د حاجت او د دعا كښ دے او په هغے كښ ډير اقسام دى چه روستو ذكر كيدلے شى-

**تنبيه:** په دے ايت كريمه كښ مقصود اول قسم وسيله ده لكه چه روستو په معنىٰ د دے ايت سره په معلومه شى او د وسيلے د دعا سره د دے تعلق نيشته مولانا اشرف على تهانوى رح په مسائيل السلوك د بيان القرآن كښ ذكر كړے دى (كه اِس ايت كا توسل بالذوات كيساتھ كوئى تعلق نهيں) ليكن هر كله چه باطل پرست خلق د دے ايت نه د خپل غلط مقصد د پاره استدلال كوى د دے وجے نه بعض علماؤ لكه مفسر آلوسى او موږ د دے ايت سره دغه تحقيق ليكلے دے-

**څلورم بحث** اقسام شرعيه د وسيلے او د هغے دليلونه: مراد د وسيلے نه دويم قسم دے يعنى په دعاء او طلب الحاجات كښ وسيله نيول نو شرعى اقسام په دے كښ شپږ دى اول قسم- وسيله نيول په نومونو او صفتونو د الله تعالىٰ سره لكه چه ووئيلے كيږى يا الله، اللهم، ربنا، يا رحمٰن، يا رحيم، يا حىّ، يا قيوم، يا ذالجلال والاكرام او دغسے نور، او دليل د دے د پاره قول د الله تعالىٰ دے- "وَلِلّٰهِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا" (اعراف ۱۸۰) او د دے تفسير په سورة اعراف كښ راتلونكے دے نو معنىٰ دا ده چه خاص الله تعالىٰ لره خائسته نومونه دى نو دعا د الله تعالىٰ نه غواړئ د هغه په نومونو سره يعنى د هغے په وسيلے سره- او د دے مثالونه په قرآن كښ هغه ايا تونه د دعاګانو دى چه د هغے په سر كښ اللهم او ربّنا راغلے دى او دا رنګ سورة يوسف ۱۰۱ سورة ابراهيم ۳۸، ۳۹ كښ دى او هغه احاديث چه په هغے كښ دعاګانے په وسيله د نومونو د الله تعالىٰ راغلے دى هغه خو ډير دى يو د هغے نه حديث عائشه رضى الله عنها دے چه ابن ماجه ذكر كړے دے په هغے كښ دى

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُكَ بِاِسْمِكَ الطَّاهِرِ الطَّيِّبِ الْمُبَارَكِ الْاَحَبِّ اِلَيْكَ (الحدیث)
بل حدیث د انس رضی الله عنه دے چه اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُكَ بِاَنَّ لَكَ الْحَمْدُ
لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ يَا مَنَّانُ يَا بَدِيْعُ السَّمٰوَاتِ وَالْاَرْضِ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ (الحدیث)
دا ابو داؤد، نسائی، ابن ماجه روایت کړیدے. بل حدیث اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُكَ
بِكُلِّ اِسْمٍ هُوَ لَكَ سَمَّيْتَ بِهٖ نَفْسَكَ اَوْ اَنْزَلْتَهٗ فِیْ كِتَابِكَ اَوْ عَلَّمْتَهٗ اَحَدًا مِّنْ
خَلْقِكَ اَوِ اسْتَاْثَرْتَ بِهٖ فِیْ مَكْنُوْنِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ (الحدیث) او بنا دے په دې
قول باندے قول د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه چه فرمائیلي یې دی لَا يَنْبَغِیْ
لِاَحَدٍ اَنْ يَّدْعُوَ اللّٰهَ اِلَّا بِهٖ (او شامی وئیلی دی) اَیْ بِذَاتِهٖ وَاَسْمَائِهٖ او درِ مختار
ورسره وئیلی دی لِاَنَّ الدعاء الماذون فیها ما استفید من قوله تعالٰی
وَلِلّٰهِ الاسماء الحسنٰی فادعوه بها (جائز نه دی هیچا لره چه دُعا غواړی مګر
په الله تعالٰی سره یعنی په ذات د هغه او نومونو او صفتونو د هغه سره ځکه چه
هغه دُعا چه د هغې اِذن دے په شریعت کښ هغهٔ ده چه معلومه ده د دے ایت
نه ولله الاسماء الحسنٰی فادعوه بها) دا قول درمختار او شامی او عالمګیری
او صیانة الانسان په ص۲۱ او ص۲۰۵ او ص۲۶۵ او ص۲۹ کښ د شرح مختصر الکرخی
او شرح التنویر تتارخانیه او ابن بلدجی او شیخ الاسلام په کتاب الوسیله
او کتاب الصراط المستقیم او ابن قیم په اغاثة اللهفان کښ نقل کړیدے او سند
د دے یې د بشر بن الولید عن ابی یوسف عن ابی حنیفه سره نقل کړیدے.
**تنبیه** احنافو لره ضروری دی چه په دے قول د امام ابوحنیفه رحمه الله
چه د قرآن سره موافق دے او په سند سره نقل دے عمل اوکړی او د هیچا
نوم دِ په وسیله کښ نه ذکر کوی (نه په حق او نه په جاه او نه په حرمت طفیل
وغیره سره) بغیر د نوم د الله تعالٰی نه. د هغه د مقلدینو د پاره دا قول پوره دے.
۲
دویم قسم وسیله ده په ایمان او اعمالِ صالحو سره په دُعا کښ. دا هم په قرآن
کریم او احادیث صحیحه او اجماع د امت سره ثابت ده په قرآن کریم کښ مخکښ
راغلی د ایاك نعبد په ایاك نستعین باندے او هم دا سے وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ
وَالصَّلٰوةِ (ربنا په یو تفسیر باندے) دا رنګ په سورة العمران ۱۶ ۵۳ ۱۹۳
کښ وسیله د ایمان او اتباع رسول ذکر ده او سورة ابراهیم ۲۷ یونس ۸۵ او
نور هم دا سے ډیرے دی. او حدیثِ غار خو په دے باب کښ صحیح او ډیر مشهور
دے بخاری وغیره دا حدیث راوړے دے. ۳ دریم قسم وسیله په خپل عجز

لکه په دُعا دَ ادم وحواء علیهما السّلام سره سورة اعراف ۲۳ کښ دُعا دَ زکریا ؑ په سورة مریم ۳ کښ او دُعا دَ ابوبکر رضی الله عنه چه دَ مانځه په اخره قاعده کښ هغه ته نبی صلی الله علیه وسلم خودلے وه اِنِّیْ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ ظُلْمًا کَثِیْرًا وَّلَا یَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ فَاغْفِرْلِیْ مَغْفِرَةً مِّنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِیْ اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ. (الحدیث بخاری) ـ څلورم قسم وسیله په دُعا غوختلو سره دَ ژوندی نه چه حاضر وی یا ورته په اسبابو ظاهریو سره علم وی یعنی په ډاك ټیلفون تار وغیره سره دا هم په قرآن او سنت سره ثابت ده آیاتونه دادی بقره ۲۸۶ ۲۸۵ نساء ۶۴ یوسف ۹۷ فتح ۱۱ مؤمن ۷ حشر ۱۰ نوح ۲۸ ـ احادیث په دے کښ ډیر دی، اول حدیث ترمذی کښ دے چه عمر رضی الله عنه دَ نبی صلّی الله علیه وسلم نه دَ عمرے کولو اذن غوختلو نو هغه ورته اوفرمائیل لَا تَنْسَانَا یَا اُخَیَّ فِیْ دُعَائِكَ او بل روایت کښ اَشْرِکْنَا یَا اُخَیَّ فِیْ دُعَائِكَ بلکه دا حدیث دلالت کوی چه اعلیٰ او افضل شخص دَ ځان نه ادنیٰ مسلمان نه هم دَ دُعا غوښتلو دَ پاره وئیلے شی ـ دویم حدیث دَ عکاشه رضی الله عنه (اُوږد حدیث بخاری مسلم وغیره روایت کړے دے) عکاشه ؓ نبی صلی الله علیه وسلم ته اوئیل اُدْعُ الله تعالیٰ اَنْ یَّجْعَلَنِیْ مِنْهُمْ ـ او حدیث دَ عمر رضی الله عنه چه روستو دَ وفات دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه عباس رضی الله عنه ته اُوئیلے شو چه ته مونږ دَ پاره دَ باران دُعا اُوغواړه نو هغه دُعا اوغوختله دا حدیث بخاری روایت کړیدے روستو به انشاء الله تعالیٰ تفصیلاً ذکر شی ـ پنځم قسم وسیله په اضافت دَ رب سره عبادِ صالحینو ته لکه چه په حدیث عائشه رضؓ کښ دی دُعا دَ نبی صلی الله علیه وسلّم کښ اللهم رب جبرئیل ومیکائیل واسرافیل (حدیث مسلم) دا هم په اصل کښ راجع دے توسل کولو ته په نوموتو او صفتونو دَ الله تعالیٰ سره او تخصیص دَ مضاف الیه دلالت کوی په ډیر عظمت دَ مضاف باندے ـ دے ته توسل بذوات الصالحین وئیل جهل دے ځکه چه مضاف غیر وی دَ مضاف الیه نه ـ

شپږم قسم وسیله نیول په صلوٰة وئیلو سره په نبی صلی الله علیه وسلّم باندے چه اول درود شرعی اُوائی او بیا دُعا غواړی لکه دَ ترمذی او ابوداؤد روایت کښ دَ فضالة بن عبیدة ؓ نه نقل دی چه یو سړی مونځ کوؤ نو صرف اللهم اغفرلی وارحمنی ئے اوئیل نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته

اوفرمائیل اه تا دی دِ اوکړه کله چه د مانځه په قاعده کښ کیني نو د الله تعالیٰ ثنا اُوايه (لکه التحيات لوستل شول) بيا درود اُوايه بيا دُعا اُوغواړه بيا بل صحابی راغے په قعده د مانځه کښ يې درود اُوئيلو نو نبی صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل اُوس دُعا غواړه نو قبليږی به او نور احاديث هم شته دے او دا قسم د وسيلے هم راجع دے توسل کولو ته په عملِ صالح سره ځکه چه درود وئيل په نبی صلی الله عليه وسلم عمل صالح دے دا قِسمونه د وسيلے شرعی قسمونه دی د دے نه انکار کول د قرآن کريم او د احاديثو نه انکار کول دی۔

**پنځم بحث** په ذکر د اقسامِ غير شرعيه د وسيلے کښ۔ اول قِسم دا دے لکه چه په دُعا کښ وائي په حق د فلانی او جاه د هغه او حرمت د هغه او برکت او طفيل د هغه۔ په دے کښ فيصله دا ده که په دے طريقے سره دُعا چرته په حديث صحيح يا حسن سره ثابت شی نو جائز ده ليکن په دے کښ په بعضِ الفاظو کښ د سره حديث نيشته او د حق وجاه په باره کښ چه کوم احاديث دی موضوعی يا ضعيف دی نو معلومه شوه چه دا الفاظ لوستل بدعت دے او آلوسی په روح المعانی کښ وئيلے دی ص۱۲۶ کښ چه نه پوهيږے چه هغه دُعاګانے چه منقول دی د اهل بيت او نورو ائمه نه نيشته په هغے کښ توسل بالذات د نبی صلی الله عليه وسلّم او که چرته فرض شی وجود ظاهرًا نو هغه په تقدير د مضاف سره دے او که څوک دعوٰی کوی د صريح نص نو هغه دِ اُوښائي: او شرح عقيده طحاويه ص۲۲۶ کښ ليکلے دی چه دُعا کوونکے وائي بحق انبيائِک او بحق فلان نو دا ممنوع دے د دوه وجونه اول دا چه دا قسم دے په غير الله سره او هغه په صريح حديث کښ منع دے او دويم دا چه نيشته هيڅ لره حق واجبه په الله تعالیٰ سِوا د هغے نه چه الله تعالیٰ پخپل ځان باندے حق ذکر کړيدے لکه "وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ" (روم ۴۷) او دا سے نو لو فقهاءِ احناف ليکلے دی په کتاب الکراهية کښ چه لَا حَقَّ لِلْمَخْلُوقِ عَلَى الْخَالِقِ په هدايه، کنز اخير، فتاوٰی، شامی، عالمګيری، فتح القدير وغيره کښ۔ سوال:- که يو سړے په حق سره اراده اوکړی د هغه حق چه الله تعالیٰ په ځان باندے ايخے دے لکه حقًا علينا نصر المؤمنين يا په حديث معاذ کښ حق العباد علی الله او وسيله په دغه حق سره اونيسی؟ جواب:- د حق واجبه قول معتزله کوی نو که بحق فلان اُوئيلے شی اګر چه دويمه معنٰی

مرادکوی لیکن دا موهم لفظ دے او بل دا چه په دُعاګانو منقولو کښ دا سے لفظ نه دے راغلے۔ دا رنګ شرح عقیده طحاویه ص۲۶۲ کښ وئیلے دی چه دا الفاظ (حق، جاه، حرمت وغیره) اعتداء ده په دُعا کښ او الله تعالیٰ فرمائیلی دی "إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ" (اعراف ۵۵) ځکه چه دُعا افضل عبادت دے او د عبادتونو بِنا په سنت او اتباع باندے ده نه په خواهش او ابتداع۔ او د لفظ جاه په باره کښ آلوسی وئیلے دی چه دا هم اقسام غیر مشروع دے ځکه چه د هیچا د سلفو نه نقل د دے لفظ نیشته او یو صفحه روستو ئے فرمائیلی دی چه لفظ حرمت کښ هم کلام په شان د لفظ د جاه دے او وئیلے دی چه د هیچا د صحابه کرامو نه توسل په جاه او حرمت سره نقل نیشته۔ سوال:- آلوسی په دغه ځائے کښ په لفظ د جاه او حرمت کښ تاویل کړے دے د پاره د جواز او راجع کړے دے توسل نه په صفت د الله تعالیٰ سره؟۔ جواب:- سهسوانی پدے تاویل رد کړیدے په صیانة الانسان ص۲۳ کښ او آلوسی په خپله هم وړسے وئیلے دی چه زما د تاویل مطلب دا نه دے چه په دے الفاظو سره دُعا غوښتل ده غوره خو هغه دی چه الله تعالیٰ او د هغه رسول مونږ ته تعلیم راکړے دے او هر کله چه نقل ئے نیشته لکه چه آلوسی پخپله وئیلے دی نو جواز بغیر د دلیل نه باطله خبره ده۔ او لفظ د برکت او لفظ طفیل هم نقل د صحابه کرامو نه نیشته او تاویلونو سره جواز نه ثابتیږی او څوک چه په دے کښ اقوال د علماء دیوبند وغیره پیش کوی نو د هغوی اقوال بغیر د دلیل شرعی نه په شرع کښ هیڅ اعتبار نه لری۔ او دا رنګ د دے ټولو الفاظو په تردید کښ قول د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه (چه مخکښ ذکر شویدی) کافی دے چه په هغے کښ د الله تعالیٰ د نومونو او صفتونو نه علاوه د بل چا نوم ذکر کول منع کړیدی۔ دویم قسم د توسل غیر شرعی، دُعا غوښتل د یو خاص قبر په خوا کښ پدے عقیدے سره چه دُعا د قبر په خوا کښ نیمه قبلیږی، دا هم بدعت دے او د اسبابو د شرک نه دے ځکه چه د قبر په خوا کښ د دُعا د قبلیدلو د پاره هیڅ دلیل شرعی نیشته احادیثو کښ چه کوم مقامات د اجابت ذکر دی هغه دا دی مسجد، ملتزم د کعبے، حجر اسود، طواف، صفا، مروه، مزدلفه، عرفات او منی په هغے کښ ذکر د قبر نیشته دے بلکه آلوسی په ص۱۲۵ کښ لیکلی دی چه د صحابه کرامو نه

دا نقل نيشته چه د دُعا په وخت کښې به قبر ته مخ کوی بلکه قبلې ته به مخ کوی او د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه قول يئ هم دا سې ذکر کړے دے.

دريم قسم د توسل غير شرعي. چه د قبر په خوا کښې قبر والا ته خطاب اوکړی چه اے فلانيه ځما د پاره د الله تعالىٰ نه دُعا اُوغواړه او عقيده لری چه دا مړے اوری نو دا هم په اتفاق د علمائو سره ناجائز ده. آلوسی په ص ۱۲۵/۶ کښې وئيلې دی أَمَّا إِذَا كَانَ الْمَطْلُوبُ مِنْهُ مَيِّتًا أَوْ غَائِبًا فَلَا يَسْتَرِيبُ عَالِمٌ أَنَّهُ غَيْرُ جَائِزٍ وَأَنَّهُ مِنَ الْبِدَعِ الَّتِي لَمْ يَفْعَلْهَا أَحَدٌ مِنَ السَّلَفِ (هر کله چه هغه څوک چه د هغه نه دُعا طلب کيدے شی مړوی يا غائب وی نو شک نه کوی هيڅ عالم چه دا هم جائز دے او د هغه بدعاتو نه دے چه د سلف نه هيچا نه دے کړے) او دا سې د ابن الهادی په الصارم المنکی ص ــ او په مجموعة الفتاوی د مولانا عبد الحئ ص ۲۳۸/۱ کښې او جلاء العينين ص ۴۹۵ او فتاوىٰ رشيديه ص ۹۵ کښې شته. بله وجه دا ده چه عقيده د مړو اوريدلو د پاره د طلب د دُعاگانو د اسبابو د شرک نه ده. او دا رنګ دا طلب د شفاعت دے په غير د اذن نه ځکه چه په دليل شرعي سره ثابت نه دی چه مړی د ژوندو د پاره دُعاء يا شفاعت غواړی. او دا شفاعت قهريه بلا اذنه دے او دا مصداق د عبارت د امام رازی نه په تفسير کبير ص ۶۰/۱۷ کښې او نظير د دے په دے زمانه کښې اشتغال د ډيرو خلقو دے په تعظيم د قبرونو د مشرانو پيدا دے عقيده سره چه مونږ که دے قبرونو تعظيم اوکړو نو دوی به زمونږ د پاره سفارش کوی الله تعالىٰ ته دا رنګ عبارت د شاه ولی الله په تفهيمات کښې چه "مَنْ ذَهَبَ إِلَى بَلْدَةِ أَجْمِيرَ أَوْ إِلَى قَبْرِ سَالَارِ مَسْعُودٍ أَوْ مَا ضَاهَاهَا لِأَجْلِ حَاجَةٍ يَطْلُبُهَا فَإِنَّهُ إِثْمٌ إِثْمًا أَكْبَرَ مِنَ الْقَتْلِ وَالزِّنَا لَيْسَ مِثْلُهُ إِلَّا مِثْلَ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ الْمَصْنُوعَاتِ أَوْ مِثْلَ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ لِلَّاتِ وَالْعُزَّىٰ". (تفهيمات الهيه ص ۴۹/۲ تفهيم ۱۱۱). څلورم قسم د وسيلې غير مشروع دا دے چه د قبر په خوا کښې قبر والا ته خطاب کوی چه ځما فلانے حاجت پوره کړه ځما نه فلانے مصيبت لرے کړه وغيره نو دا خو ښکاره شرک حقيقی دے صيانة الانسان ص ۳۰۳ اغاثة اللهفان د ابن قيم ص ۲۱۷/۱. او آلوسی هم په ص ۱۲۸/۶ کښې وائی چه دا علمائو شرک ګڼړلے دے او که شرک نه شی نو قريب د شرک خو ضروری دے ځکه چه دا سې انسان عقيده لری چه د غه مدعو مړے

یا غائب ته دے علم د غیب لری او اوازونه اوری او قدرت لری د نفع او ضرر (او دا عقیده د شرک ده). پنځم قسم د توسل غیر مشروع دا دے، چه اواز کوی یو غائب ته (په غیر د اسبابو نه) یا مړی ته لرے د قبر نه چه یا فلانی ولی یا پیره ځما د پاره د الله تعالیٰ نه دُعا اُوغواړه په دے عقیدے سره چه هغه په غیبو باندے علم لری او د هر ځائے نه خبرے اوری او دُعا غوښتلے شی نو دا هم شرک صریح دے ځکه چه علم د غیب او د هر ځائے نه بے د اسبابو نه اوریدل دا صفت خاصه د الله تعالیٰ دے چه په قرآن کریم کښ په ډیرو ایاتونو او ډیرو صحیح او صریح احادیثو کښ دا مسئله موجود ده او په کتابونو شرعیو او خاص د فقه حنفیه په کتابونو کښ ده او دے عقیدے ته کفر او شرک وئیلے شویدے لکه په سورة نمل ۶۵ کښ او سورة انعام ۵۰ او سورة اعراف ۱۸۸ کښ. او واقعه د افک د عائشه رضی الله عنها او تولہ قصه د یوسف علیه السلام او حدیث د ام العلاء الانصاریه، "والله لا ادری وانا رسول الله ما یفعل به" (بخاری) او حدیث د حوضِ کوثر "انك لا تدری ما احدثوا بعدك" (بخاری، مسلم) او فتاویٰ هندیه ص۲۸۳/۳ ص۲۴۲/۳ بحرالرائق ص۸۸/۳ او شرح فقه اکبر ص۱۳۱ او فتاویٰ قاضیخان ص۲۶۹/۴ ص۵۷۶/۴. شپږم قسم توسل غیر شرعی، چه اواز کوی مړی ته د قبر نه لرے یا یو غائب ته بے اسبابو چه فلانی بزرګه او یا پیره زما مریض جوړ کړے زما فلانے حاجت پوره کړه دا خو صریح شرک دے په ډیرو وجوسره اول دا چه عقیده د علم غیب د پاره د غیر الله لری دویم دا چه هغه غیر له قدرتِ مستقله په نفع ورکولو یا په ضرر دفع کولو باندے ګڼړی. دریم دا چه دُعا پدے عقیدے سره عبادت دے او عبادت د غیر الله شرک دے او په دے باب کښ ډیر ایاتونه او احادیث او اقوال د فقهاؤ شته موږ په التبیان ص۱۱ او تنشیط الاذهان ص۳۴-۳۵ کښ ذکر کړے دی حاصل دا دے چه د توسل فی الدعا شپږ اقسام شرعیه دی او شپږ اقسام غیر شرعی دی.

شپږم بحث په باره د شبهاتو د توسل کولو په غیر شرعی طریقو سره او د هغے جوابات اوله شُبهه استدلال کوی دے ایت نه "وابتغوا الیه الوسیلة" وائی چه مراد دینه وسیله بالذوات ده او طریقه د استدلال ئے دا سے ده چه دا معطوف دے په اتقوا الله باندے او تقویٰ په معنیٰ د طاعت کول او د منهیاتو او ګناهونو نه ځان بچ کول دی او معطوف خو غیر وی د معطوف علیه نه نو معلومه شوه

چه وابتغوا اليه الوسيلة نه مراد ذواتِ فاضله دی۔
جواب دَ دے په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه عطف مغائرت په هر وجے سره نه غواړی بلکه کله خاص عطف شی په عام باندے لکه پدے قول دَ الله تعالیٰ کښ "مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ" (بقره ۹۸) نو دلته وسیله په معنیٰ دَ طاعات کولو خاص ده دَ معنیٰ دَ تقویٰ نه۔ دویمه وجه مخکښ دَ بحث په سر کښ نقل کړے شوے وو دَ ابن کثیر وغیره نه چه دلته مراد دَ تقویٰ نه خاص معنیٰ ده یعنی دَ گناهونو نه ځان بچ کول او پدے معنیٰ سره تقویٰ په قرآن کښ ډیر کرته ذکر ده لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ "وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ" (بقره ۱۰۳) او په تفسیر دَ بقره کښ دَ المتقین دَ لاندے موږ لیکلی دی چه په قرآنِ کریم کښ تقویٰ په اتو معانو سره وارد ده۔
دریمه وجه دا ده چه دَ وسیلے دا تفسیر (په ذواتِ فاضله سره) هیڅ یو مفسر نه دے ذکر کړے او په تفسیر کښ سلف صالحین نه خلاف قول کول جائز نه دی لکه چه الصارم المنکی ص۲۷ کښ لیکلی دی۔ او مفسرینو دَ دے تفسیر په اعمال صالحه او طاعات سره او عمل په هغه چه الله تعالیٰ پرے رضا وی، قربت په طاعاتو او نیک عملونه، او فعل دَ طاعاتو او ترک دَ سیئاتو وغیره عباراتو سره کړیدے او تفسیر ابن عباس، ابن کثیر، ابن جریر، معالم التنزیل بیضاوی، مدارک، روح المعانی، قرطبی، سمعانی وغیره په تفسیرونو کښ دا شته دے، څلورمه وجه دا ده چه دَ بحث په اول کښ دَ نیشاپوری نه نقل شویدے چه دا ایت دَ پاره دَ رد دے په هغه یهودو او نصاریٰ چه تقرب ئے په خپل مشرانو او دَ هغوی په عملونو سره کوؤ او تهانوی رحمة الله علیه وئیلی دی چه دَ دے ایت دَ وسیلے بالذوات سره هیڅ تعلق نیشته دے او شاه انور شاه رحمة الله علیه وئیلی دی چه پدے ایت کښ دلیل نیشته په توسل معروف په نوموتو سره فقط۔ او ابن تیمیهؒ دَ هغے دَ تحریم قائل دے او صاحب دَ درمختار جائز وئیلی دے لیکن دَ سلفو نه ئے هیڅ نقل نه دے راوړے (فیض الباری ص۴۳۵/۳)۔
دویمه شبهه۔ حدیث دَ توسل دَ ادم علیه السلام دے په محمد صلی الله علیه وسلم سره دا بیهقی په دلائل النبوة او حاکم په مستدرک کښ

راوړے دے اوهغه ورته صحيح وئيلے دی؟-(جواب) پدے حديث باندې کلام په درے وجوسره دے اوله وجه دا ده چه دا حديث ضعيف دے بلکه موضوعی دے (التوصل ص۲۱۷) پدے کښ ضعيف راوی دے چه هغه عبد الرحمٰن بن زيد بن اسلم دے (کنز العمال ص۴۵۵ ج۱۱) او په دے کښ حماد بن عمر النصيبي دَ سری نه اوهغه روايت کوی دَ خالد نه او دوی دواړه واهيان دی (کنز العمال ص۳۵۹ ج۲) او په دے کښ رافضی راوی دے (صيانة الانسان ص۱۲۴ ص۱۲۹ ص۱۳۶) تعليق دَ ذهبی دَ مستدرك په حاشيه باندې په ص۴۱۵ ج۲ او صيانة الانسان په ص۱۲۷ کښ ليکلے دی چه دا روايت موضوع دے او عبد الرحمٰن واهی دے-سوال:-حاکم خو دے حديث ته صحيح وئيلے دی؟ جواب:-حاکم دَ محدثينو په نيز په تصحيح کښ ډير تساهل کوؤنکے دے دَ دے وجے نه دَ هغه تصحيح ته اعتبار نيشته (صيانة الانسان ص۱۲۳) بل دا چه حاکم په کتاب الضعفاء کښ په عبد الرحمٰن بن زيد باندے طعن کړے دے او شيخ الاسلام ابن تيميه رح فرمائيلے دی چه حاکم په مدخل الی معرفة الصحيح من السقيم کتاب کښ وئيلے دی چه عبد الرحمٰن بن زيد دَ خپل پلار نه احاديث موضوعه روايت کول او امام احمد، ابوزرعه، ابوحاتم، نسائی او دارقطنی وغيره دهٔ ته ضعيف وئيلے دی.

دويمه وجه دا ده چه دا حديث دَ قرآن کريم دَ مضمون نه صريح خلاف دے ځکه چه سورة ذاريات ۵۶ کښ علت دَ خلق عبادت دَ الله تعالیٰ دے او سورة طلاق ۱۲ کښ علت دَ خلق علم دَ دوه صفتونو دَ الله تعالیٰ دے او سورة يونس ۵ کښ او نورو داسے آياتونو کښ علت دَ خلق اظهار او اثبات دَ حق (چه توحيد دے) ګرځولے شوے دے او په دے حديث کښ الفاظ دی چه لَوْلَا محمد مَا خَلَقْتُكَ دا پشان دَ لَوْلَاكَ لَوْلَاكَ لَمَا خَلَقْتَ الْاَفْلَاكَ دے چه هغه هم موضوعی حديث دَ نورو وجے دَ مخالفت دَ دے آياتونو نه دا حديث موضوعی دے.

دريمه وجه دا ده چه دُعا دَ دے حديث دَ قرآنی دُعا نه خلاف ده قرآن کښ تصريح ده چه آدم او حواء عليهما السلام دا دُعا لوستله رَبَّنَا ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا (الآية) اعراف ۲۳ ـ

تنبيه تعجب دے دَ شيخ الحديث مولوی محمد زکريا رئيس دَ جماعت

تبليغيه چه دا حديث ئې په فضائل الذكر كښې راوړے دے او تصريح ئې دَ هغه په تضعيف يا موضوعيت باندے نه ده كړے ليكن دَ يو حديث دَ صحت دليل دا نشي كيدے چه يو محدث ئې صرف پخپل كتاب وغيره كښې ذكر كړى بلكه دَ هغې په پوره تحقيق كيدے شي۔
دريمه شبهه ، حديث دَ استسقاء دَ عمر دے په عباس رضى الله عنه چه بخارى هم روايت كړے دے ؟ (جواب) په دے حديث كښې توسل دے په دُعا دَ عباس رضى الله عنه سره او توسل په دُعا دَ ژوندى قريب سره جائز دے او هر كله چه صحابه خو ډير وو ليكن عمر رضى الله عنه دُعا په ذريعه دَ عباس رضى الله عنه سره غوره كړيده نو دَ ترجيح وجه ئې ذكر كړيده عم النبى صلى الله عليه وسلم (چه تره وو دَ نبى صلى الله عليه وسلم) او قول دَ عباس رضی الله عنه په دُعا كښې لِمَكَانِى مِنْ نَبِيِّكَ ذكر كړيدے۔
او دَ دے تقدير (بِدُعَاءِ عَبَّاس) دَ پاره قرينے او تائيدات دا دى اول چه پدے كښې "كُنَّا نتوسل إِلَيْكَ بتبينا فتسقينا" ذكر دى او په ژوند دَ نبى صلى الله عليه وسلم كښې صحابه كرامو به په دُعا كښې دَ هغه سره استسقاء كوله داسے خو په هيڅ صحيح حديث كښې وارد نه دى چه دوى په نبى صلى الله عليه وسلم بغير دَ دعا دَ هغه نه توسل كړے وى۔ دويم دا چه محدثينو دَ دے حديث سره الفاظ دَ دُعا دَ عباس رضى الله عنه ذكر كړيدى (فتح البارى عمدة القارى وغيره) التوصل ص ۲۵۶ صيانة الانسان ص ۱۹۶۔ دريم دا چه شاه انور شاه الكشميرى په فيض البارى كښې په ص ۳۷۹/۲ او دا رنگ په ص ۴۳۴/۳ كښې وئيلے دى چه په دے كښې توسل دَ متقدمينو دے يعنى توسل په دُعا سره۔ او توسل دَ متأخرينو پكښې نيشته كنى نو دَ عباس رضی الله عنه بو تللو ته به حاجت نه وو۔ دا رنگ شرح عقيده الطحاويه ص ۲۶۳ كښې دى (بِدُعَاءِ عباس رضی الله عنه) او صيانة الانسان ص ۲۷۸ كښې۔ دا رنگ دا حديث صريح دليل دے چه په نبى صلى الله عليه وسلم سره روستو دَ وفات نه وسيله نيول جائز نه وو دَ دے وجے نه صحابه كرام توسل كوى په دُعا دَ عباس رضى الله عنه سره۔
څلورمه شبهه۔ حديث دَ عثمان بن حنيف رضى الله عنه چه روند سړے نبى صلى الله عليه وسلم ته راغے دَ هغه نه ئې دُعا اوغوښتله نو هغه ورته دُعا او خودله پدے الفاظو سره اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَسْأَلُكَ وَاَتَوَجَّهُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ نَبِىِّ الرَّحْمَةِ يَا مُحَمَّدُ اِنِّىْ اَتَوَجَّهُ بِكَ اِلٰى رَبِّىْ اه (الحديث)

ترمذی روایت کړے دے او صحیح ئې ورته وئیلے دی؟ دَ دے جواب په صیانة الانسان ص۱۲۵ ص۱۸۷ ص۱۹۹ ص۲۰۲ ص۳۶۹ او په التوصل کښ دَ ص۲۲۸ نه تو ص۲۳۲ پورې اوګورئ او البلاغ المبین دَ شاه ولی الله رحمه الله کښ او روح المعانی ص۱۲۶/۴ کښ او ملا علی قاری په مرقات شرح مشکات کښ۔ حاصل دَ دغه جواب دا دے چه اول خو دا حدیث سنداً ضعیف دے ځکه چه دَ دے په سند کښ ابو جعفر راوی دے نو که هغه ابو جعفر الرازی التمیمی وی چه نوم ئې عیسٰی بن ابی عیسٰی دے نو په تقریب کښ وئیلے دی چه اکثر محدثین دَ هغه دَ ضعف قائل دی یعنی امام احمد او نسائی او علی بن المدینی او فلّاس او ابن حبان او ابو زرعه وغیره دَ هغه تضعیف کړے دے (میزان الاعتدال۔ الکاشف)۔ او که دے ابو جعفر مدنی وی نو هغه مجهول دے (سوال) امام ترمذی خو دَ دے حدیث تصحیح کړے ده؟ (جواب) محدثینو وئیلے دی چه هر کله په سند کښ ضعیف یا مجهول راوی موجود وی نو تصحیح دَ امام ترمذی ته اعتبار نیشته دے دا صیانة الانسان ص۱۰۲ ص۳۲۶ کښ په تفصیل سره لیکلے دی۔ او ثانیاً که دا حدیث صحیح شی نو هم په دیکښ مقصد توسل دے په دُعا دَ نبی صلی الله علیه وسلّم سره آلوسی وئیلے دی چه لفظ دَ دُعا پټ دے او په دے باندے په نفس الفاظ دَ حدیث کښ دلیلونه دی اول دا چه هغه رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته وئیلے دی چه ته ماله دُعا اوغواړه۔ دوېم جواب دَ رسول صلی الله علیه وسلّم که ستا خوښه وی دُعا به اوغواړم یا صبر اوکړه۔ درېم په هغه دُعا کښ دا الفاظ دی اَللّٰهُمَّ شَفِّعْهُ فِیَّ (اے الله تعالیٰ دَ دے نبی شفاعت زما دَ پاره قبول کړه)۔ څلورم دا چه که توسل په ذات دَ نبی سره مقصد وے نو کور به تاست وو دُعا به ئې کړے وه حاضریدلو او دَ هغه نه طلب کولو دَ دُعا ته به ضرورت نه وو۔ حاصل دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلّم خو دَ ده لره دُعا غوښتلے وه لیکن ورته ئې اوفرمائیل چه ته هم داسے دُعاء اوغواړه چه اے الله زهٔ دَ دے نبی دُعا تا ته پیش کوم نو دَ دهٔ دُعا زما دَ پاره قبوله کړے۔

پنځمه شبهه۔ حدیث دَ اعرابی چه دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دَ دفن نه درے ورځے روستو راغے او دَ قبر دَ هغه سره ئې استغفار او دُعاء دَ

نبي صلى الله عليه وسلم ته طلب کړه او دَ قبر نه ورته آواز راغے چه تاته بخنه
اوشوه دا بیهقي په شعب الایمان ص ۱۰۹ ج ۱۲ طبع هند کښ راوړے دے او بعض مفسرینو
دَ سورة نساء سـ ۶۴ په تفسیر کښ لیکلے دے ؟
(جواب) کنز العمال ص ۲۸۶ ج ۲ کښ وئیلے دی چه دَ دے په سند کښ هیثم بن
عدی الطائي دے او هغه متروک دے او التوصل الى حقيقة التوسل دَ
ص ۲۶۵ نه تر ص ۲۸۱ پورے ډیر تفصیل لیکلے دے او صیانة الانسان ص ۲۴۷
کښ او دَ دغه آیت نه دَ استدلال کولو په رد کښ شپاړس وجے ذکر کړے
دی (هغه په تفسیر دَ سورة نساء کښ دی) دَ ص ۲۳ نه تر ص ۴۱ پورے۔
او الصارم المنکی فی الرد علی السبکی کښ دَ دے تفصیلی جواب په ص ۲۱۲ ص ۲۴۳
ص ۲۸۶ کښ کړے دے دَ هغے خلاصه دا ده چه دا خبر منکر او موضوع دے
او اثر جوړ کړے شوے مصنوع دے او سند دَ دهٔ تیارے دی بعض دَ پاسه
دَ بعضو نه۔ او هیثم نیکه دَ احمد دَ هغه یارهٔ کښ گمان دا دے چه دے ابن عدی
الطائي دے نو هغه متروک کذاب دے او که هغه نه وی نو بیا مجهول دے او
هیثم ته یحیی بن معین دروغ زن وئیلے دی او ابو حاتم، رازی او نسائي او
دولابي او ازدی ورته متروک الحدیث وئیلے دے او دا سے ابن حبان او ذهبي
په میزان کښ په دهٔ باندے کلام کړے دے دا رنگ دا حکایت بعضو روایت
دَ عتبي نه بے سنده کړے دے او بیهقي په شعب الایمان کښ په اسناد
مظلم سره راوړے دے۔ او بعضو دروغژنو دَ دے دَ پارهٔ سند تر علی
رضی الله عنه پورے جوړ کړے دے نو په دے قصه او حدیث سره حجت
او دلیل نشي نیولے کیدے۔
شپږ مه شبهه۔ حدیث دَ عام الفتق۔ مضمون ئے دا دے چه په مدینه منوره
کښ سخت قحط راغے نو دوی عائشه رضی الله عنها ته شکایت اوکړو نو
هغے ورته اوئیل چه دَ قبر دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه یو سورے
آسمان طرف ته په چهت کښ جوړ کړئ، هغوی داسے اوکړل نو باران اُوشو بُوټي پیدا شول
او اوښان دومره ځاربه شول چه دوا ژدو نه اوشلیدل دَ دے وجے نه هغے
ته عام الفتق وئیلے شی (دارمی او مشکوٰة) ؟ (جواب) پدے باندے تفصیلی
کلام صیانة الانسان په ص ۲۴۵ سـ ۲۴۶ کښ په اته طریقو سره کړے دے
او رفاعی په التوصل کښ دَ دے حدیث په متن باندے په نهه طریقو سره

او په اسناد کښې باندې په اتو طریقو سره کلام کړې دې۔ حاصل دا دې چه د دې حدیث سند ضعیف او منقطع او موقوف دې او د استسقاء د پاره چه کوم په صحیح احادیثو سره مسنون طریقې ثابت دی د هغې نه خلاف دې د دې په سند کښې محمد بن الفضل سدوسی دې هغه په آخر د عمر کښې متغیر شوی وو۔ بل پکښې سعید بن زید دې په هغه باندې ذهبی او ابن حجر تنقید ذکر کړې دې او ضعیف دې بل په سند کښې عمر بن مالک دې په تقریب کښې وئیلې دی چه د هغه اوهام وو۔ بل د دې په سند کښې ابوالجوزاء دې یحیٰی بن سعید او بخاری وئیلې دی چه د ده په اسناد کښې نظر دې آخر دا خبره ده که دا حدیث متناً سنداً صحیح وې نو بیا خو دُنیا هر وخت کښې او خصوصاً حجاز مقدس باران نو نه محتاج دې نو بکار وو چه دا چهت ئې نړیه لرې کړې وې او حال دا چه روستو خلقو وربانډې کنبد جوړ کړې دې (اګرچه کنبد جوړول په هغې باندې جائز نه دی)۔

او ومه شبهه۔ په حدیث د ابن ماجه کښې راغلې دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دا دُعا خودلې ده چه څوک د مونځ د پاره د کور نه بهر اوځي نو دا دې وائي اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِحَقِّ السَّائِلِيْنَ عَلَيْكَ وَبِحَقِّ مَمْشَايَ هٰذَا إِلَيْكَ (الحدیث) ؟ (جواب) روح المعانی ص۱۲۷ کښې وئیلې دی د دې په سند کښې عوفی دې او په هغه کښې ضعف دې او که فرض شي چه دا کلام د نبی صلی الله علیه وسلم دې نو مراد د حق نه وعده د اجابت ده چه ثابته ده د طرف د الله تعالٰی نه فضلاً او واجب نه ده په هغه باندې رتو دا حق تفضلی دې لیکن محکین ذکر شویدی چه فقهاء احناف سوال بحق فلان مطلقاً مکروه ګنړلې دې ځکه چه موهم لفظ دې) دا رنګ صیانة الانسان د ص۹۶ نه تر ص۱۰۱ پورې په سند د دې باندې تفصیلی کلام کړې دې حاصل ئې دا دې چه په سند د دې حدیث کښې عطیه عوفی دې اګرچه د هغه په باره کښې اختلاف دې لیکن راجح دا ده چه دې ضعیف دې ذهبی په میزان کښې او الکاشف کښې او ابن قیم په زادالمعاد کښې (په باب د سنت د جمعه کښې) او هیثمی په مجمع الزوائد کښې او ابن حجر په تهذیب کښې دا کلام ذکر کړې دې۔

اتمه شبهه۔ دَ طبرانی په کبیر کښ او اوسط کښ او ابن حبان او حاکم حدیث ذکر کړے دے چه په هغے کښ بحق نبیك والانبیاء الذین من قبلی ذکر دے ؟ (جواب) دَ دے په سند کښ روح بن الصلاح المصری دے ابن عدی هغه ته ضعیف وئیلی دی ابن حبان او حاکم اګرچه ورته ثقه وئیلی دی لیکن محدثینو وئیلی دی چه توثیق دَ دے دواړو باندے اعتماد نشی کیدلے (صیانة الانسان ص۱۲۳ او ص۳۸۷ او ص۲۷۷)۔

نهمه شبهه۔ حدیث دے چه ستاسو څه حاجت وی الله تعالیٰ ته نو دا سے وائیٔ (فَاسْئَلُوا اللهَ بِجَاهِي فَإِنَّ جَاهِي عِنْدَ اللهِ تعالیٰ عَظِيمٌ) ؟ (جواب) الوسی وئیلی دی دا خو دَ عامو خلقو وینا ده دا خو په اهلِ علمو کښ هیچا نقل کړے نه دے او نه په کتابونو دَ حدیث کښ شته دے (روح المعانی ص۱۲۷) او صیانة الانسان ص۳۵۷ کښ وئیلی دی چه دا حدیث موضوع دے او په ص۱۸۵ کښ وئیلی دی چه لفظ دَ جاه په وسیله کښ وئیل بدعتِ مذمومه دے ځکه چه په هیڅ نص کښ ثابت نه دے۔

لسمه شبهه۔ بخاری حدیث دَ ابن عمر رضی الله عنه کښ راوړے دی چه ما ځ دَ نبی صلی الله علیه وسلم ته نظر کوؤ چه استسقاء ئے کوله او ویه دَ هرے پرنالے نه رابهیدلے نو دا شعر دَ ابو طالب راته رایاد شو (په مدح دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښ) ؎

وَاَبْيَضُ يُسْتَسْقَى الْغَمَامُ بِوَجْهِهٖ ثِمَالُ الْيَتَامٰى عِصْمَةٌ لِلْاَرَامِلِ

(او سپین دے چه دَ وریځو نه باران دَ هغه په مخ طلب کیږی۔ غمخوار دَ یتیمانانو دے۔ بچ کوؤنکے دَ کونډو ښځو دے)۔ نو په دے کښ وسیله بوجه النبی ثابته شوه؟ - جواب الفاظ دَ ابن عمر رضی الله عنهما دلیل دے چه صحابو په داسے دُعا نه لوستله صرف دومره ته په وخت دَ دُعا دَ استسقاء کښ دا شعر رایاد شو۔ نو معلومه شوه چه مراد دَ دے نه په قول دَ ابو طالب کښ برکت دَ حضور دَ ذات دَ هغه دے او حضور دَ هغه سبب دَ باران دَ دفع دَ عذاب دے په دلیل دَ دے ایت دَ سورة انفال سره وَمَا كَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيهِمْ ۳۳۔ نو مراد دا شو چه نبی صلی الله علیه وسلم به حاضر وؤ او خلقو به دَ باران دَ پاره دُعا غوختله نو هغه دُعا به قبلیدله۔

**لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ**

| |
|---|
| که چیرے شی دوی لره هغه څه چه په زمکه کښ دی ټول او پشان د هغے |

**مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ**

| |
|---|
| ورسره نور شی دے د پاره چه بدله کښی ئے ورکړی د عذاب د ورځ د قيامت نه |

**مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٣٦﴾**

| |
|---|
| قبول به نه کړے شی د دوی نه او دوی لره عذاب درد ناک دے ۔ |

**يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ**

| |
|---|
| غواړی به دوی چه اوځی د اور نه او نه به وی دوی |

تنبیه د دے نه علاوه نور هم څه روایات شته چه هغه ضعیف بلکه موضوعی دی او اقوال د داسے خلقو شته دے چه د شغوی نفس قول دلیل شرعی نه دے موتږ په دے مسئله کښ لږ تفصیل اوکړو ځکه چه د جاهلانو یا د متجاهلینو په دے کښ ډیر شکونه دی او په عوامو باندے تلبیس کوی چونکه دا مقام د تفسیر دے نو د دے نه زیات تفصیل دلته مناسب نه گنړم د الله تعالیٰ نه سوال کوؤم چه موتږ ته په قرآن کریم او په سنت صحیحه باندے پوهه او استقامت را کړی۔ (اللهم آمین)

۳٦ دا تخویف اخروی دے او اشاره ده چه فلاح د پاره دغه مخکښ درے امور ضروری دی او چا سره چه دغه درے اوصاف نه وی نو هغه په هیڅ قسم فدیه ورکولو سره د عذاب د الله تعالیٰ نه نشی بچ کیدلے ۔ كَفَرُوْا نه مراد هغه خلق دی چه دغه درے صفتونو نه خالی وی ۔ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ ضمیر د مفرد په تاویل د مذکور من الامرین سره راجع دے۔

مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ او په تفسیر د دیکښ هغه حدیث دے د بخاری او مسلم چه کافر ته به او ئیلے شی په ورځ د قیامت که تاله ډکه زمکه سرۂ زر درکړیشی ایا ته به ئے د عذاب نه د بچ کیدلو د پاره په فدیه کښ ورکړے هغه به او وائی هاؤ یا ربه! الله تعالیٰ به او فرمائی چه ما ستا نه په دُنیا کښ کدے نه اسان خیز غوښتلے وو چه شرک مه کوه ۔ او دا سے ایات په سورۂ العمران ۹۱

يَخْرِجِيْنَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿٣٧﴾

وتونکی دَ هغې (اور) نه ، او دوی دَپاره عذاب دے همیشه۔

وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا اَيْدِيَهُمَا

او غلا کوونکے سړے او غلا کوونکے ښځه، نو پریکړئ لاسونه دَ دوی

جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ

دا سزا ده په وجه دَ هغې چه کړے وی دوی، عبرتناکه سزا دَطرف دَ الله تعالیٰ نه۔ او الله تعالیٰ

عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٣٨﴾ فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ

زوراور دے حکمتونو والا دے۔ نو چا چه توبه اوکړه روستو دَ ظلم خپل نه

سورة بقره سـ ۲۸ سـ ۱۲۳ او سورة انعام سنـ کښ هم دی۔ عَذَابٌ اَلِيْمٌ المردیه دَ دے وجے نه هم وی چه په زړه کښ په ارمانونه افسوسونه کوی۔

سـ ۳۷ مخکښ اوفرمائیل چه په فدیه سره نه بچ کیږی اوس پرے اضافه کوی چه په تختیدلو سره هم نشی بچ کیدلے۔ يُرِيْدُوْنَ سمعانی وئیلی دی چه اراده په معنیٰ دَ تمنیٰ کولو ده او سورة حج سـ ۲۲ کښ هم دی او ایت په باره دَ کافرانو کښ دے په دلیل دَ اول ایت سره نو دا منافات نه لری دَ راوتلو دَ گناهګارانو مؤمنانو دَ جهنم نه په سبب دَ شفاعت سره۔ مُقِيْمٌ عذاب همیشه دائم چه زوال او تبدیلی او کمے به پکښ نه راځی اګرچه ترقی به پکښ کیږی۔

سـ ۳۸ ربط دا دے چه دفع دَ وهم ده هغه دا چه که اوئیلے شی چه فدیه به ځکه نه قبلیږی چه دَ مال دَ دنیا دَ الله تعالیٰ په نیز هیڅ احترام نیشته نو جواب اوشو چه احترام دَ مال په شرع کښ دا دے چه په سرقه دَ مال سره لاس پریکیږی۔ او دَ دے تعلق دَ انما جزاء الذین یحاربون اه سره دے یعنی هغه حکم دَ هغه چا وو چه ښکاره په زوروتیا سره مالونه دَ خلقو نه اخلی او اوس حکم دَ هغه چا دے چه په پټه او حیلو سره دَ خلقو نه غلا کوی۔ وَالسَّارِقُ اه ایت اګرچه عام او مطلق دے لیکن دَ احادیثو صحیحه په وجه سره دَ مال نصاب مقرر کړے شوے دے چه

# وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

| اللّٰه تعالیٰ | يقيناً | - | دَ دهٔ | توبه قبلوي | تو يقيناً اللّٰه تعالیٰ | او نيکمئې کړو عمل خپل |
|---|---|---|---|---|---|---|

هغه قيمت دَ مجن (ډال) دے په حديث صحيح کښ راغلے دی اګرچه په هغے کښ اختلاف دَ مجتهدينو دے او خوارج (دَ انکار حديث دَ وجے نه) دَ نصاب دَ سرقے قول نه کوی- (سوال) السارق مذکر ئې په څه وجے مخکښ راوړے دے؟ (جواب) چه غلاګانے کول په نارينو کښ اکثر وی په نسبت دَ زنانو سره- فَاقْطَعُوْا مراد دَ دے نه دا سے پريکول دی چه جدا شی دَ بدن نه- (سوال) سورۂ يوسف کښ راغلی دی ”فَقَطَّعْنَ“ هلته معنیٰ زخمی کول دی او الفاظ يو بل ته نيزدے دی نو دلته معنیٰ دَ پريکولو په جدا کولو سره څنګه صحيح کيږی؟ (جواب) سورۂ يوسف کښ معنیٰ مجازی مراد کړے شويده دَ يو قرينے دَ وجے نه او هغه هم قول دَ بعض مفسرينو دے نو دا ضروری نه ده چه دَ قطع معنیٰ دِ يل ځائے هم دا وی بلکه کوم ځائے چه معنیٰ حقيقی امکان لری او قرينه دَ مجاز نه وی نو لفظ به په معنیٰ حقيقی باندے حمل کيدے شی په ايت دَ سرقه کښ يله قرينه هم نيشته او په سلفو کښ دَ هيڅ مفسر قول نيشته چه دَ قطع معنیٰ مجازی دِ واخستلے شی- او دے باره کښ احاديث صراحتًا راغلے دی لکه مستدرک ص$\frac{۳۸}{۴}$ او نصب الرايه ص$\frac{۳۷۱}{۳}$، بل حديث دارقطنی نقل کړيدے ص$\frac{۱۸}{۳}$- او لفظ دَ قطع په قران کښ په مختلفو معانيو سره استعمال شويدے، تفصيل دَ پاره دَ لغت کتاب لسان العرب ص$\frac{۳۲۲}{۱۱}$ ملاحظه کړئ-

اَيْدِيَهُمَا (سوال) جمع (ايدی) ولے ذکر کړے نه دہ؟ (جواب ع۱) په السارق والسارقة کښ جنس مراد دے نو دلالت کوی په جمع باندے او ضمير دَ تثنيه په اعتبار دَ ظاهر لفظ سره دے- (جواب ع۲) زجاج او فراء وئيلی دی هر اندام دَ انسان چه دَ هغے نه دوه ذکر کيږی نو په لفظ دَ جمع سره وی لکه صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا، نو يمين دَ هر انسان يو يو دے نو چه دَ دوه کسانو (مذکر او مؤنث) لاسونه ذکر کيږی نو جمع په مضاف کيږی تثنيے ته او مراد دَ لاسونو نه په اول ځل کښ ښی لاسونه دی په سبب دَ حديث او قراءت دَ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او په عمل دَ خلفاء راشدينو سره-

غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣٩﴾ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ

بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ آیا نه پوهیږے ته چه یقیناً الله تعالیٰ لره ده

(سوال) دلته امر شوید ے په قطع دَ آله (اندام) دَ سرقے سره چه لاس دے او په زنا کښ قطع دَ آله دَ زنا سره حکم نیشته ؟ (جواب ع۱) دواړه حکمونه په حکم شرعی سره ثابت دی حکمت معلومول ضروری نه دی. (جواب ع۲) حکمت دا کیدیشی چه په قطع دَ لاس سره انسان دَ کسب نه پوره نه محروم کیږی او په قطع دَ آله دَ زنا سره قوت دَ مردانیت بالکل ختم شی نو فائده دَ زجر ورکولو نه پاتے کیږی (سمعانی او قرطبی په تفسیر کښ دا ذکر کړے دی).
جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا یدله متاسب ده دَ عمل سره اشاره ده چه دا عمل دَ غلا په لاس پاندے کیږی نو مناسب هم دا ده چه سزا لاس له ورکړے شی لکه چه ابولهب په لاسونو سره نبی صلی الله علیه وسلم ته ډیر ایذا رسولے وه نو "تَبَّتْ يَدَا اَبِيْ لَهَبٍ" ذکر شو۔ نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ نکال هغه سزا وی چه په سبب دَ عبرت دَ هغے سره منع شی دَ ارتکاب دَ داسے عمل نه په ایئده زمانه کښ دغه کوؤنکے او نور تماشه کوؤنکے هم۔ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ دَ اصمعی نه روایت دے چه هغه په غلطئ سره پدے ایت کښ غفور رحیم اولوستلو نو یو بانډچی په خوا کښ وو تپوس ئے اوکړو چه دا دَ چا کلام دے نو ما ورته اوئیل چه دَ الله کلام دے نو هغه اوئیل چه داسے کلام دَ الله نشی کیدلے نو زه پخپلے غلطئ باندے پوهه شوم نو زر مے اولوستلو عزیز حکیم نو هغه اوئیل چه دا دَ الله تعالیٰ کلام دے ځکه دَ سزا سره لائق عزیز او حکیم صفت دے۔
ف۳۹ دا ترغیب دے توبه کولو ته دَ دے جرم نه اشاره ده چه یواځے عقوبت دَ گناه دَ ختم کولو دَ پاره کافی نه دے خو پوره چه توبه نه وی۔ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ ظلم نه مراد سرقه کول دی۔ وَاَصْلَحَ یعنی لکه چه دَ غلا نه توبه کړی نو دغسے دَ هر گناه نه توبه اوباسی دَ هغه جرم په ځائے باندے بیل جرم نه کوی۔ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ په توبه سره حد نه سا قطیږی توبه خو قبوله ده او بریکول دَ لاس دَ پاره دَ نکال او دَ عبرت دی لکه چه مخکښ تیر شول۔

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ يُعَذِّبُ مَنْ
بادشاهي دَ اسمانونو او دَ زمکے - عذاب ورکوي چا له
يَّشَاۗءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰي كُلِّ
چه اوغواړي او بخنه کوي چا ته چه اوغواړي ، او الله تعالی په هر
شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ
خیز قدرت لرونکے دے - اے رسوله (صلی الله علیه وسلم)! ته دے خفه کوي تا لره
الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ مِنَ الَّذِيْنَ
هغه کسان چه تادي کوي په کاروونو دَ کفر کښ دَ هغه کسانو نه چه
قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ
وائي ایمان راوړے دے موږه، په خلو ددوي سره او ایمان نه وي راوړے
قُلُوْبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛ سَمّٰعُوْنَ
زړونو ددوي - او دَ یهودیانو نه ، غوږ ږدي
لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ
دَپاره دَ دروغو (جوړولو په تا باندے) غوږ ږدي دَپاره دَ قوم نور
لَمْ يَاْتُوْكَ ۭ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْ بَعْدِ
چه نه وي راغلی تا ته - بدلوي کلمے دَ الله تعالی روستو دَ

ف دا خطاب دے نبي صلی الله علیه وسلم ته او مراد ترینه تنبیه ده عام انسانانو ته چه حدودِ سابقه په هر مجرم باندے جاري کیږي ځکه چه الله تعالی مطلق پادشاه او اختیار مند دے هغه دَ چا دَ ویرے نه یا دَ مینے نه نه مجبوره کیږي او هر کله چه پادشاهي خاص دَ الله تعالی ده نو هغه خوښه ده چه په بعض جرم باندے دَ قتل او صلیب سزا ورکوي او په بعض باندے دَ قطع دَ لاس سزا ورکوي-

مَوَاضِعِهٖ ۚ يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا

ځایونو دَ هغې نه ۔ وائي دوی که درکړشي تاسو ته دا حکم

فَخُذُوْهُ وَاِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوْا ؕ

نو قبلوئ هغې لره اوکه درنکړیشي دا حکم تو ځان بچ اوساتئ ۔

وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ

او هغه څوک چه اوغواړي الله تعالیٰ ګمراهي دَ هغه تو هیچرې اختیار نه لرې ته هغه لره

مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ

دَ نیز دَ الله تعالیٰ نه دَ څه څیز ۔ دغه کسان ته ده کړې

يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ؕ لَهُمْ فِي

اراده الله تعالیٰ چه پاک کړي زړونه دَ دوی ۔ دوی لره په

الدُّنْيَا خِزْيٌ ۚۖ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ

دنیا کښې شرمندګی ده او دوی لره په آخرت کښې

عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٤١﴾ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ

عذاب لوئے دے ۔ څه اوری دروغ خبرې

س٤١ دَ دے آیت نه دَ سورة دویمه حصّه ده تر ٦٥ پورے او په دےکښې دوه بابونه دی اول باب دے تر ۵۰ پورے په دیکښې خطاب دے رسول ته دَ پارہ دَ تسلّیٔ او اوصاف دَ یهودیانو لس ذکر کوی دَ پارہ دَ زجر په حال دَ هغوی باندے۔ بیا ذکر دَ کتب ثلثه دے (تورات، انجیل او قرآن) چه په دے کښې لوکتابونو کښې عقود دَ الله تعالیٰ دی او دَ هغې ترک سبب دَ کفر او دَ ظلم او دَ فسق دے۔ او ربط دَ دے آیت دَ مخکښې سره دا دے چه کوم حدود بیان شول نو په رسول صلی الله علیه وسلم باندے دَ هغې اجراء لازمه ده بغیر دَ پرواه کولو دَ منافقانو او یهودیانو نه۔

یٰاَیُّهَا الرَّسُوْلُ خطاب په دے صفت سره دَ پارہ دَ ترغیب او تشجیع دے

لَا يَحْزُنْكَ (سوال) انسان شفقت كوونكے خو ضرور خفه كيږي په كفر او په معصيت كولو دَخلقو باندے؟ (جواب) مراد دَ دے نه عمل دَ دے كافرانو دے چه په دے سره تاته هيڅ ضرر او نقصان نه رسيږي. (سوال) حزن خو امر غير اختياري دے نو دَ دے نهي خو صحيح نه ده؟ (جواب) مراد دَ دے نه آثار دَ حزن ښكاره كول دي يعني كار دَ دعوت پريښودل او په هغے كښې مداهنت كول دَ وجے دَ حزن نه. يُسَارِعُوْنَ مراد دَ مسارعت نه بے فكره او بے دليله او په مينه سره كفر او دَ كفر كارونه كول دي. فِي الْكُفْرِ حرف دَ فِي دلالت كوي چه دوي په كفر كښې ښخ پاخه دي. مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا الخ دا بيان دَ مسارعينو دے په ذكر دَ دوه فريقو سره اول فريق منافقان دي. وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا دا دويم فريق دے. سَمّٰعُوْنَ الخ دا صفتونه په يهودو كښې وو او په منافقانو هم كله كله ښكاره كيدل. دلته سمع په معنیٰ دَ قبلولو سره ده لكه سمع الله لمن حمده كښې. لِلْكَذِبِ هغه چه دَ دوي علماوُ دَ ځان نه مسئلے جوړے كړے دي او دوي يئے بے دليله قبلوي دا خالص تقليد دے. سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ دا وصف دَ جاسوسئ كولو دے چه منافقانو به جاسوسي دَ يهودو دَ پاره كوله او يهوديانو كشرانو جاسوسي كوله دَ پاره دَ لويو ملايانو خپلو. لَمْ يَاْتُوْكَ دَ وجے دَ تكبر نه به دَ نبي صلی الله عليه وسلم مجلس ته نه حاضريدل. يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ دا صفت دَ قوم دے ځكه تحريف كول دَ لويو ملايانو كار وو. او مراد دَ تحريف نه تاويلونه كول دي په خپل رائے او خواهش سره. مِنْ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ. دلته يئے لفظ دَ من بعد راوړے دے اشاره ده تحريف لفظي او معنوي دواړو ته او په سورة نساء ۴۶ او دَ دے سورت په ۱۳ كښې بعد نه وو ذكر كړے هلته اشاره وه تحريف معنوي ته. او دا رنگ په لفظ دَ بعد كښې اشاره ده چه دَ دوي تحريف كول سبب وو دَ پاره دَ دا سے مقصد چه دَ كلام دَ الله تعالیٰ نه به ډير لرے وو لكه هغه واقعه چه سبب دَ نزول دَ دے آيا تونو دَ پاره مفسرينو ليكلے ده په هغے كښې ذكر دي چه دوي دَ حكم دَ رجم تحريف كړے وو جلد او مخ تورولو ته نو دا دَ لفظ دَ رجم نه ډير لرے تاويل كول دي. يَقُوْلُوْنَ الخ دا وصيت كول دي دَ مشرانو يهوديانو هغه كشرانو ته چه كله كله به مجلس دَ رسول الله عليه وسلم ته راتلل.

أَكّٰلُونَ لِلسُّحْتِ ؕ فَإِنْ جَآءُوكَ فَاحْكُمْ

ډیرخوری حرامو لره - پس که راشی دوی تاته نو فیصله اوکړه

بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ وَإِن تُعْرِضْ

په مینځ د دوی کښ یا مخ واړوه د دوی نه او که مخ واړوے

عَنْهُمْ فَلَن يَضُرُّوكَ شَيْـًٔا ؕ وَإِنْ حَكَمْتَ

د دوی نه نو هیچرے او به نه رسوی تاته هیڅ ضرر - او که فیصله کوله تا

فَاحْكُم بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ ؕ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ

نو فیصله کوه په مینځ د دوی کښ په انصاف - یقینًا الله تعالیٰ مینه کوی

الْمُقْسِطِينَ ﴿٤٢﴾ وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِندَهُمُ

د انصاف کوونکو سره - او څه رنګ به فیصله اوکړی دوی په تا باندے او د دوی سره

إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا په هذا سره اشاره ده حکم محرّف ته لکه جلد او مخ تورول په ځائے د حکم د رجم۔ وَمَن يُرِدِ اللَّهُ فِتْنَتَهُ دا زجر دے د طرف د الله تعالیٰ نه په دغه تحریف کوؤنکو باندے۔ فتنته په معنیٰ د ګمراه کول او شرمنده کول او عذاب ورکول په دنیا او آخرت کښ۔ فَلَن تَمْلِكَ لَهُ د تسطیع او تقدر په معنیٰ دے۔ لَمْ يُرِدِ اللَّهُ أَن يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ پاکولے د کفر او منافقت نه دا دواړه جملے دلیل دے چه فتنه (ګمراهی) په مشیت او اراده د الله تعالیٰ سره ده او ایمان (پاکولے) هم په اراده د هغه سره دے۔

**تنبیه** په دے آیت کښ اوؤه اوصاف د هغوی ذکر شول۔

سټ۴۲ په دے آیت کښ د هغه یهودیانو نور حالات ذکر کوی۔ سَمَّٰعُونَ لِلْكَذِبِ اول سماعون په معنیٰ د قبلوونکی د دروغو خبرو۔ دویم سماعون په معنی د جاسوسئ کول او دا (ردریم) کرت معنی دا چه دوی که چرے نبی صلی الله علیه وسلّم ته عوږ ږدی نو د دے د پاره چه په هغه دروغ جوړ کړی یا مکرر دے د تاکید د پاره۔ أَكّٰلُونَ لِلسُّحْتِ اکالون صیغه د مبالغے د پاره د کثرت او اصرار کوؤلو په دغه ګناه باندے سحت په اصل کښ بیخ کندئ ته وئیلے شی او حرامو ته سحت د دے وجے نه وئیلے شی چه د برکت بیخ

التَّوْرٰىةُ فِيْهَا حُكْمُ اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ

| تورات دے په هغې کښ فیصله دَ الله تعالیٰ ده بیا مخ اړوی دوی |
|---|

کندے کوی او بیا په هلاکت باندے ئے هم اطلاق کیږی. قرطبی دَ سحت ډیر افراد لیکلی دی رشوت اخستل، یا دِ حاجت څوک پوره کړی او په هغې باندے هدیه قبلوے دا رنګ چه سړے دَ خپل مرتبې (دَ زور) په وجه سره دَ خلقو نه څه اخلی او نیشاپوری وئیلی دی چه سحت هغه حرام ته وئیلے شی چه دَ هغې په اخستلو کښ شرم محسوس کیږی لکه رشوت او مزدوری دَ زنا کارئ - او دَ عسب الفحل (نرخاروے په ماده باندے خیژول او په هغې باندے مزدوری اخستل). او کسب دَ حجام، او قیمت دَ سپی او دَ شرابو او دَ مردارے او اجرت اخستل دَ کاهن نو دا ټول هغه حرام دی چه خلق ئے پټ کوی دَ وجے دَ شرم نه او په دغه مال کښ هیڅ برکت نه وی او الوسی پدے کښ هغه مال هم داخل کړے دے چه دَ دین په وجے سره ئے ګټه کوی یعنی دین پرے بربادوی.

تنبیه دا دواړه اوصاف ئے یو ځائے ذکر کړل ځکه چه کسب دَ دغه حرامو (خصوصًا رشوت) بغیر دَ درغو نه نه حاصلیږی. فَاِنْ جَآءُوْكَ اه پدے ایت کښ دَ مفسرینو دوه قولونه دی اول دا چه دا منسوخ دے په ایت "وان احکم بینهم بما انزل الله" سره یعنی دَ کافرانو په مینځ کښ شرعی فیصلے کول په حاکم مسلمان باندے لازم دی او دوییم قول دا دے چه په سورة مائده کښ منسوخ نیشته نو ذمیان کافران چه فیصلے راوړی نو دَ حاکم اختیار دے که فیصله کوی او که نه کوی او دا قول اکثر اهلِ علمو غوره کړے دے نور تفصیل قرطبی ذکر کړے دے. بِالْقِسْطِ یعنی دَ کافرانو په مینځ کښ چه هر کله فیصله کیږی نو په انصاف سره به کیږی او هغه قرآن او سنت دے. قسط په اصل کښ حصے ته وئیلے شی او انصاف هم دا دے چه هر انسان ته دَ هغه حصه ورکړے شی.

تنبیه په دے ایت کښ دَ یهودیانو یو وصف ذکر شوے دے.

مِنۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ ۚ وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۴۳﴾

روستو دَ دېنه - او نه دي دوی مؤمنان -

اِنَّآ اَنۡزَلۡنَا التَّوۡرٰىةَ فِيۡهَا هُدًى وَّنُوۡرٌ ۚ

یقینًا نازل کړې موږ تورات په هغې کښې هدایت وو (دَ عقیدې) او رڼا وه (دَ عمل)

يَحۡكُمُ بِهَا النَّبِيُّوۡنَ الَّذِيۡنَ اَسۡلَمُوۡا

فیصلې کولې په هغې سره پیغمبرانو هغه کسان چه تابع وو دَ حکم دَ الله تعالیٰ

لِلَّذِيۡنَ هَادُوۡا وَالرَّبّٰنِيُّوۡنَ وَالۡاَحۡبَارُ

هغه کسانو لره چه یهود یان وو، او خدائي خلقو او علماؤ

بِمَا اسۡتُحۡفِظُوۡا مِنۡ كِتٰبِ اللّٰهِ وَكَانُوۡا

په سبب دَ دې چه حفاظت غوښتې شوېوو دَ دوینه دَ کتاب دَ الله تعالیٰ او وو دوی

عَلَيۡهِ شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخۡشَوُا النَّاسَ

په هغې باندې خبردار، (وئیلې شوېوو دوی ته) چه پس مه یریږئ دَ خلقو نه

وَاخۡشَوۡنِ وَلَا تَشۡتَرُوۡا بِاٰيٰتِىۡ ثَمَنًا قَلِيۡلًا ؕ

او یرېږئ کوئ ځما نه او مه اخلئ په ایاتونو ځما بدل لږ لره (دُنیا)

۴۳ دا هم یهودو ته زجر دے او دَ هغوی دوه قبیح اوصاف نور ذکر کوی او په دے کښې اشاره ده چه یهودیانو په فیصله راوړلو کښې او شرع قائم کول مقصد نه وو بلکه اسانه طریقه یې ځان له طلب کوله.

فِيۡهَا حُكۡمُ اللّٰهِ مراد دَ دے نه هغه حکم دَ تورات دے چه په قرآن سره منسوخ شوے نه وی لکه رجم شو یا قصاص شو.

ثُمَّ يَتَوَلَّوۡنَ اه دا عطف دے په یحکمونك باندې یعنې ستا په تحکیم باندې عمل نه کوی.

وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ قرطبی وئیلې دی چه دَ دے نه معلومه شوه چه څوک په حکم شرعی باندې راضی نه وی او بل قانون نه خپله فیصله اړوی نو هغه کافر دے او دا دَ یهودو حالت هم وو.

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ

او چا چه فیصله او نکړه په هغه حکم چه نازل کړیدے الله تعالیٰ نو دغه کسان

هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۴۴﴾ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَآ

دوی کافران دی ۔ او فرض کړیدے مونږه په دوی باندے په دے (تورات) کښ

په دے کښ زجر دے یهودو ته چه دوی د خپل کتاب نه مخ گرځوؤ نو د دوی هیڅ عذر نه وو بلکه دا د خپلو مشرانو نه هم مخالفت کول دی او ترغیب دے چه په تورات باندے د مشرانو په طریقے سره عمل کوئ او د دے آیت نه تر ۴۸ پورے ذکر د درے کتابونو د الله تعالیٰ دے چه دا د فیصلو د پاره نازل شوے دی صرف د تلاوتونو او ختمونو د پاره نه دی نازل شوے او هر کله چه زبور کتاب چه داؤد علیه السلام ته رالیږلے شوے دو په هغے کښ فضائل او اذکار وو احکام پکښ نه وو بلکه هغوی مکلّف وو په احکامو د تورات باندے د دے وجے نه د زبور ذکر ئے دلته نه دے کړے ۔

فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ په دے کښ اول فرق دا دے چه مراد د الهدیٰ نه بیان د حق دے د عقیدے او د اعمالو او مراد د نور نه دفع د شبهاتو ده په ذکر د دلیلونو سره دویم دا چه الهدیٰ احکام او شرائع دی ۔ او النور بیان د توحید او د عقیدے دے ۔ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ اشاره ده چه مقصد د نزول د تورات حکمونه او فیصلے کول وو په هغے باندے لیکن موافق د شرح د انبیاؤ سره ۔ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا دا صفت د پاره د مداح دے لیکن مقصد په دے کښ رد دے په یهودیانو چه انبیاء ټول په دین اسلام متفق وو او تاسو د هغے نه خلاف کوئ ۔ لِلَّذِيْنَ هَادُوْا اشاره ده چه تورات خاص وو په هغوی پورے زمونږ د پاره د هغے تشریع عام نیشته لام په معنیٰ د علیٰ دے یا متعلق دے په هدی ونور پورے ۔

وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ د دے فرق په دوه وجو سره دے اول دا چه ربانیون هغه علماء دی چه په هغوی باندے وصف د عبادت او زهد غالب وی په نسبت د علم سره او احبار هغه دی چه په هغوی کښ وصف د علم غالب وی په عبادت باندے او دا دواړه جمع کوونکی د علم او د عمل دی

او دَ لفظ دَ ربانیون شرح په سورة آل عمران ۷۹ کښې ده. او دویمه وجه
دَ فرق داده چه ربانیون هغه دی چه مرتبې دَ اجتهاد ته رسیدلی وی
او احبار عام علماء دی. خو دواړه په دې صفت سره متصف دی چه فیصلې
په کتاب دَ الله تعالیٰ باندې کوی. اَحْبَارُ جمع دَ حِبر یا دَ حَبر ده او غوره
پکښې زوَر ده حاء دے او وجه دَ تسمیې داده چه حَبر هغه دے چه عالم وی
په تحبیر (ښائسته کولو) دَ عباراتو باندې سره دَ معانی نه.
بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِن كِتَابِ اللَّهِ اه پدې سره ذکر دَ دوه سببونو دے دَ پاره
دَ ماقبل (حکم) اول سبب دا دے چه الله تعالیٰ په دوی باندې حفاظت
دَ کتاب الله لازم کړے او حفاظت عام دے دَ الفاظو او دَ معانو په درس
وتدریس سره دَ تحریف او تغییر نه بچ کول او دَ هغې اجراء دَ قانون
په طور سره په خلقو کښې. وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاءَ دا دویم سبب دے.
شهادت په معنیٰ دَ علم دے سره دَ تصدیق دَ حقانیت دَ دغه کتاب نه،
خازن وئیلی دی چه دا وعده دَ ټولو علماؤ نه اخستلې شوې ده په پاره
دَ کتاب الله کښې (چه قرآن دے).
تنبیه خصوصیت دَ قرآن کریم دا دے چه الله تعالیٰ دَ هغې دَ حفاظت
ذمه پخپله اخستلې ده لکه په سورة حجر ۹ کښې دی او دَ تورات انجیل
حفاظت ئې ربانیون او احبار ته سپارلې وو روستو دَ انبیاو نه.
فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ اه دا ذکر دَ دوه اوصافو دے دَ پاره دَ حق (کتاب الله)
دعوت او بیان کولو اول خشیت الٰهی دے او دَ مخلوق دَ وجې کتمان
او مداهنت نه ځان بچ کول دی. دویم وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا
یعنی دَ حرص دَ دنیا په وجې سره حق پټول یا مداهنت کول یا تحریف
کولو نه ځان ساتل. ثَمَنًا قَلِيلًا خازن او نسفی وئیلی دی چه دا شامل
دے رشوت او طلب دَ جاه وعزت ته او رضا دَ خلقو، او نور تحقیق دَ
دے په سورة بقره ۴۱ کښې دے. وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ
هُمُ الْكَافِرُونَ په دے آیت سره دلیل نیولے دے خوارجو هغوی وائي
چاچه یو کبیره گناه اوکړو لکه ترک دَ بوحکم بما انزل الله نو هغه کافر
دے دَ اسلام نه بالکل خارج دے او مسلك دَ اهلِ سنت دا دے چه
په ارتکابِ دَ کبیره سره دَ اسلام نه نه خارجیږی ځو پورې چه انکار عمدًا

أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ

چه نفس (تن) په قصاص کېږي په بدله د نفس کښې او سترګه په بدله د سترګه کښې

وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ

او پوزه په بدله د پوزه کښې او غوږ په بدله د غوږ کښې او غاښ

بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ فَمَنْ تَصَدَّقَ

په بدله د غاښ کښې او نور زخمونه (هم) دي بدلے والا۔ پس چا چه معافي اوکړه

بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا

پدے (قصاص) سره نو دا کفاره ده د ګناهونو د ده۔ او چا چه فیصله اونکړه په هغه حکم چه

أَنْزَلَ اللّٰهُ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٥﴾

نازل کړی دے الله تعالیٰ نو دغه کسان پس دوی ظالمان دی۔

یا توهین د حکم شرعي یئے ته وی کړے۔ نو د دے ایت په باره کښی د اهل سنت یو قول دا دے چه دا خاص دے په یهودو پورے لیکن دا قول ضعیف دے دویم قول د عکرمه نه نقل دے چه دا په باره د جاحد (منکر) کښی دے او په حکم د انکار کښی استخفاف (یعنی سپک ګڼړل) هم داخل دی او دا قید لګول په قرینه د نورو نصوصو سره دی چه د هغے نه ثابت دی چه په ګناهِ کبیره کولو سره کفر نه راځی۔ دویم قول د طاؤس نه نقل دے چه د ایت معنیٰ ظاهری مراد ده یعنی کافر دے لیکن په طریقه د کفر دون کفر سره یعنی د ملتِ اسلامیه نه نه اوځی او دا قول ابن قیم هم په بدائع التفسیر کښی غوره کړے دے او د ابن عباس او د طاؤس او عطاء نه یئے نقل کړے دے۔ څلورم قول دا دے چه مراد د ما انزل الله نه ټول ما انزل الله دی یعنی چه په ټول ما انزل الله (چه په هغے کښی عقیده د توحید او نبوت هم داخل ده) باندے حکم او عمل پریږدی نو کافر دے۔ ابن قیمؒ دے توجیه ته ضعیف وئیلے دی ځکه چه لفظ د ما عام دے په جمیع پورے خاص نه دے۔

۴۵ دا په طریقه د زجر سره دے په یهودیانو باندے یعنی یهودیانو

## وَقَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ

او را اولیږو موږ په نقش قدم دَ دوی باندے عیسیٰ (علیه السلام) ځوئے دَ مریم

دَ هغه کتاب (تورات چه مخکښ یئے صفتونه ذکر شول) په حکم دَ قصاص کښ مخالفت کړے دے لکه چه په حکم دَزنا دَ وادهٔ کړی شوِیو کښ هم خلاف کړے وؤ چه هغه تیر شوے ایاتونو کښ ذکر شو دوی مخالفت په حکم دَ قصاص کښ په دوه طریقے سره کړے وؤ یو دا چه دوی بنی نضیر له فضیلت ورکړے دے په بنی قریظـه باندے نو چه نضیری به قرظی لره قتل کړو نو دوی به قصاص نه اخستلو او برعکس به یئے اخستلو دارنګ دَ یو نضیری په بدل کښ به یئے دوه قرظی قصاص کول. دوېم دوی حکم دَ دیت هم جاری کړے وو او حال دا چه په دوی کښ حکم دَ دیت نه وؤ. او دَ دے ایت حکم په قرآن والو (دے امت باندے) هم جاری دے ځکه چه الله تعالیٰ دا شرع موږ ته په قرآن کریم کښ هم ذکر کړه او دَ هغے هیڅ تردید او تخصیص یئے ذکر کړے نه دے۔ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ دا لفظ سړی او زنانه دواړو ته شامل دے په دے کښ به دَ مالدار او غریب او شریف نسب او ذلیل نسب فرق نه وی او دارنګ دَ یو په بدل کښ به دوه نه وژلے کیږی (چه قاتل یو وی). وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ دے نه قصاص دَ اطرافو وئیلے شی په دے کښ دَ څلورو حواسو انسانیو ذکر کړے دے یو قصاص په قوتِ باصره کښ دوېم قصاص په قوتِ شامه (بویول) کښ. درېم په قوتِ سامعه کښ. څلورم په قوتِ ذائقه کښ. وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ په دے کښ باقی قوتونه او اندامو ته دَ بدن پریکول یا زخمی کول داخل دی پدے شرط سره چه په هغے کښ قصاص اخستل امکان لری نو دا تعمیم دے روستو دَ تخصیص نه او دا ټول حکم خاص دے په قصدی او عمداً عمل پورے په خطا کښ قصاص نیشته او دَ دے احکامو تفصیل په احادیثو او په هغه تفسیرونو کښ چه مسمّٰی دی په احکام القرآن سره اوګورئ۔ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ په دے کښ ترغیب دے معافی کولو ته دَ دے وجے نه هغے ته یئے تصدّق اوئیل. كَفَّارَةٌ لَّهٗ دا ضمیر راجع دے مجروح او ولی دَ مقتول ته او دوېم احتمال دا دے چه ضمیر راجع دے قاتل او جارح ته دَ هغه ګناه دَ ورځ دَ قیامت پورے ساقط شو۔ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ اشاره ده

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ ص

تصدیق کوونکے وو دَ هغه کتاب چه دَ دینه مخکښ وو چه تورات دے

وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ هُدًى وَّنُوْرٌ لا

او ورکړے وو مونږ دهٔ ته انجیل په هغے کښ هدایت وو او رنړا وه

وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ

او تصدیق کوونکے وو دَ هغه کتاب چه مخکښ دَ دهٔ نه وو چه تورات دے

وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ط ﴿۴۶﴾

او هدایت او وعظ وو دَ پاره دَ پرهیزګارو۔

وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

او ویل مونږ چه فیصلے دے کوی انجیل والا په هغه حکم چه نازل کړیدے اللّٰه تعالیٰ

فِيْهِ ط وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

په انجیل کښ۔ او چاچه فیصله اونکړه په هغه حکم چه نازل کړیدے اللّٰه تعالیٰ

چاچه دَ قصاص دَ قانون نه اعراض اوکړو یا په هغے کښ ئے څه تغیر او تبدیلی اوکړه پښان دَ یهودیانو دا سبب دَ ډیرو ظلمونو دے او لفظ دَ ظلم کفر او ټولو ګناهونه ته شامل دے۔

ملا۴ په دیکښ ذکر دَ دویم کتاب دَ بنی اسرائیلو دے چه انجیل دے نازل کړے شوے دے په عیسٰی علیه السلام باندے۔ وَقَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ ضمیر راجع دے "النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا" ته او په لفظ دَ قفینا کښ اشاره ده چه دین دَ عیسٰی علیه السّلام او دَ مخکنو انبیاؤ بالکل یو شان وؤ۔ مُصَدِّقًا اه یعنی عیسٰی علیه السّلام مخکښ دَ نزول دَ انجیل نه دَ تورات تابع وؤ دَ هغے بیان ئے کولو۔ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ او مصدق وصف دَ عیسٰی علیه السلام وؤ او دویم وصف دَ انجیل دے او تصدیق منافی نه دے دَ نسخ دَ بعض احکامو سره۔ وَهُدًى اول هدایت نه مراد احکام وؤ چه هغه بعضے دَ انجیل وو ځکه ئے هلته فیه ذکر کړو او دَ دے هدایت نه

فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٤٧﴾ وَأَنزَلْنَا

نو دغه کسان دوی نافرمان دی ۔ او نازل کړی دے مونږ

إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ

تا ته کتاب (قرآن) دَ حق دپاره تصدیق کوونکے دے دَ هغے چه

مراد رسوؤنکے دے حق ته باطل او غلطه خبره پکښ نیشته دے۔
وَمَوْعِظَةً مراد دَ دے ته زجر او منع کوؤنکے دے دَ باطل اودَ ناحق لاره نه۔
ف مخکښ صرف اوصاف ذکر وؤ اوس مقصد دَ کتاب ذکر کوی چه هغه حکم کول دی
وَلْيَحْكُمْ دلته قلنا پټ دے وئیلے وو مونږ دوی ته په هغه وخت کښ، یا دا جمله
مستقله ده او مراد دَ ما انزل الله فیه نه توحید او نبوت دَ اخری نبی
دے نو تخصیص دَ ما انزل الله دلالت کوی چه مراد تر ینه اصول دی
(یعنی مسائل دَ عقیدے)۔ الْفَاسِقُونَ اشاره ده دَ هغه ایاتو دَ انجیل
ته مخ اړول سبب دَ فسق دے که فسق دَ عقیدے وی چه هغه کفر دے
یا فسق دَ عمل وی۔ (فائده ع۱) په ذکر دَ الکافرون والظالمون والفاسقون
کښ اشاره ده چه پریخودل دَ حکم الهی سبب دے دَ دے درے واړه
صفتو نو چه کفر او ظلم او فسق دے۔ بیان دَ اول ایت سره دَ وصف دَ کفر
مناسبت دے هغه دا دے چه په هغے کښ ایمانیات مراد دی او مقابل
دَ ایمان کفر دے او په دوېم ایت کښ قانون دَ عدل (قصاص) ذکر دے
او مقابل دَ عدل ظلم دے او په درېم کښ صفت دَ تقوی ذکر وؤ او مقابل
دَ تقوی فسق دے۔ (فائده ع۲) دا رنګ معصیت درے قسمه دے اول په
طریقه دَ انکار سره نو هغه کفر دے دوېم په طریقه دَ اعتداء کولو سره دَ حد
شرعی نه نو هغه ظلم دے او درېم په طریقه دَ نقصان کولو سره دَ حد شرعی نه
نو هغه فسق دے (فائده ع۳) کفر خو په یهود او نصاری دواړو کښ موجود
وؤ نو اول ئے دَ هغے ذکر اوکړو بیا په یهو یانو کښ صفت دَ ظلم ډیر زیات
پورے چه هغوی په خپل مخالف باندے هر قسم ظلم جائز ګڼړی دَ دے وجے نه
دَ تورات والو سره ئے وصف دَ ظلم ذکر کړو او په نصاری کښ عقیده دَ
جواز دَ ظلم نه وه نو دَ انجیل والو سره ئے وصف دَ فسق ذکر کړے
دے۔

يَدَيْهِ مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ

مخکښی د ده نه دی کتابونه ، او څوکئ کوونکے د هغے نو فیصله کوه

بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ

په مینځ د دوی کښی په هغے چه نازل کړیدے الله تعالیٰ او تابعداری مه کوه د خواهشاتو د دوی

عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ؕ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ

(چه واړوی تا لره) د هغے نه چه راغلے دے تا ته حق۔ د هر یو د پاره مقرر کړیدی موږ ستاسو نه

شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ

(د قرآن) شریعت او لویه لاره۔ او که غوښتے الله تعالیٰ نو کړځولے به ئے وئ تاسو

اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ

ډله یوه، او لیکن (اختیار ئے درکړے) د دے د پاره چه ازمیښت اوکړی ستاسو په هغه څه کښی چه درکړیدی تاسو ته

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا

نو وړاندے والے کوئ د یو بل نه نیکو کارونو ته۔ خاص الله تعالیٰ ته ورګرځیدل ستاسو د ټولو دی

فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿٤٨﴾

نو خبر به درکړی تاسو ته په هغه څه باندے چه تاسو په هغے کښی اختلاف کوئ ،

۴۸ روستو د ذکر د تورات او انجیل نه ذکر د قرآن کوی۔ بِالْحَقِّ مراد د دے نه صدق دے یعنی شک نیشته په نازلیدلو د دے کتاب کښی د طرف د الله تعالیٰ نه نو با د پاره د ملابست ده یا باء سببیه ده یعنی سبب د اثبات او اظهار د حق۔ مِنَ الْكِتٰبِ مفرد په معنیٰ د جنس دے مراد د دینه ټول کتابونه الهیه دی چه نازل شوی دی د قرآن نه مخکښی۔ او مراد د تصدیق نه موافقت دے په مضمون د توحید، رسالت او نور مسائلو د عقیدے او اُصولو کښی دا رنګ مخکنو کتابونو کښی د دے کتاب ذکر او خبر موجود دے چه د دے په لیږلو (آخری پیغمبر) محمد صلی الله علیه وسلم باندے نو چه نازل شو نو د هغه خبر تصدیق اوشو (ابن کثیر)۔

وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ په معنیٰ دَ امین، شاهد او حاکم. مقصد دَ ټولو معانیو دے
هغه دا دے چه مخکنو کتابونو کښې چه کوم اصول او عقیدے دی نو کوم
چه دے قرآن سره موافق وی نو هغه حق دی او کوم چه دَ دے نه مخالف
دی نو هغه به اهلِ کتابو دَ ځان نه تحریف کړے وی او باطل به وی او معنیٰ
وئیلے دی چه هر کتاب چه قرآن په هغه باندے شهادت کړے وی نو هغه
به کتاب الله وی نو معلومه شوه چه دَ مجوسو او هندوانو سکهانو چه کوم
کتابونه دی هغے ته کتاب الله نشی وئیلے کیدلے ځکه چه قرآن کریم دَ
هغوی تصدیق نه دے کړے او معلومه شوه چه دا کتاب هیڅ کوئی نکے دے
مخکنو کتابونو لره دَ تحریف او تغییر نه او هر کله چه په کتبِ منزله باندے
امین دے نو په کتابونو دَ ېندګانو باندے خو په طریقِ اولیٰ سره امین
دے یعنی په نورو کتابونو کښې چه دَ قرآن نه مخالف څه خبره وی نو هغه
به باطل او مردود وی. او په مصدقًا او مهیمنًا کښې اشاره ده دعوت ورکولو
یهود او نصاریٰ ته چه دے کتاب باندے ضرور ایمان راوړئ ځکه چه
انکار دَ مصدِّق مستلزم وی انکار دَ مصدَّق لره.

فَاحکم بَيْنَهُمْ بِمَا انزل الله دا تفریع ده په ما قبل صفاتو دَ قرآن
باندے چه هر کله دا منزل او مصدّق او مهیمن دے نو لازمه دا
ده چه فیصلے په دے کتاب باندے کوئ. بَيْنَهُمْ عام دے یهود
او نصاریٰ او دے امت ته شامل دے. وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَاءَهُمْ په
اهواء کښې هغه مسائل او احکام داخل دی چه اهلِ کتابو دَ ځان نه
جوړ کړے دی او په تورات او انجیل کښې داخل کړے دی.

عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ دا متضمن دے معنیٰ دَ اعراض لره ځکه چه
تابعداری دَ خواهشاتو مستلزم ده اعراض عن الحق لره.

لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا په دے کښې دوه تفسیرونه نقل دی
اول دا چه په دے جمله کښې دفع دَ وهم ده هغه دا ده که اهلِ کتاب
اووائي چه زمونږ تورات او انجیل کښې خو دَ قرآن نه خلاف احکام موجود
دی (لکه طریقے دَ مونځ او دَ روژے، زکوٰة وغیره) نو دے څه رنګ
مصدق او مهیمن دے؟ حاصل دَ جواب دا دے چه په اصولو او عقیدو
کښې ټول کتابونه متحد دی او کوم چه مخالف دی نو هغه فروع او جزئیات دی

او هغه دَ هر ملت والو دَ پاره جدا جدا وی او هغه مخالفت سبب دَ تکذیب نه دے او تائید دَ دے هغه حدیث صحیح دے چه اَلۡاَنۡبِیَاءُ اِخۡوَةٌ لِعَلَّاتٍ اُمَّهَاتُهُمۡ شَتّٰی وَدِیۡنُهُمۡ وَاحِدٌ (انبیاء عَلَیۡهِمُ السَّلَام علاتی رونړه دی مائندے ئے جدا جدا دی او دین ئے یو دے) یعنی فروع ئے جدا جدا دی او اصول دَ ادیان یو دی. نو پتا په دے تفسیر مراد دَ شرعة او منهاج نه احکام فرعیه دی شرعة ئے ورته په دے لحاظ سره وئیلے دی چه الله تعالیٰ مقرر کړے دی او منهاج ورته په دے لحاظ سره وئیلے شی چه په هغے باندے تلل او عمل کول ضروری دی. دویم دَ مجاهد نه نقل دے چه دَ جعلنا دَ پاره مفعول اول محذوف دے یعنی لکل امة جعلنا القرآن شرعة ومنهاجا (دَ ټولو امتونو دَ پاره قرآن شریعت او منهاج کرځولے شویدے) نو په دے هغه وهم دفع شو چه دَ اهل کتابو ځان ځان له کتابونه دی نو آیا هغوی (روستو دَ نزول دَ قرآن نه) بیخیل خپل کتاب باندے عمل کولے شی؟ جواب اوشو چه نه بلکه هغه په قرآن سره منسوخ شول بیا په دے شرعة اصول او ایمانیاتو ته وئیلے شی او منهاج شرائع او احکامو ته وئیلے شی یعنی قرآن په دے دواړو قسمونو باندے مشتمل دے. (فائده) فرق په مینځ دَ شرعة او منهاج کښ، په دے کښ ډیر اقوال دی مبرد وئیلے دی چه شرعة ابتداء دَ لارے ته وئیلے شی او منهاج مستمر (همیشه تللو والا) لارے ته وائی او ابن عباس رض او حسن رض نه نقل دی چه شرعة سنت ته وئیلے شی او منهاج سبیل ته وئیلے شی. بل قول دا دے چه شرعة مطلق لارے ته وئیلے شی او منهاج هغے ته وئیلے شی چه پوره واضحه وی. وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ اه په دے جمله کښ حکمت بیانوی دَ اختلاف دَ شرائعو چه په تورات او انجیل او قرآن کښ جدا جدا دی. وَلٰکِنۡ لِّیَبۡلُوَکُمۡ اه یعنی هر یو امت مکلف او مبتلیٰ دے په هغه شرائعو چه الله تعالیٰ په هغوی باندے مقرر کړے دی (دا تفسیر بیا دے په اول قول باندے په لکل جعلنا اه کښ. او په یکښ دویم قول دا دے چه روستو دَ نزول دَ قرآن نه بیا هم خلق مختلف دی څوک ایمان راوړی او څوک کفر کوی دا هم په اراده او مشیت دَ الله تعالیٰ سره دی او په دے کښ هم حکمتِ الٰهیه ابتلاء او امتحان دے. او بیا په دے قول دا پښتان دَ

وَأَنِ احْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ وَلَا

(او حکم کیږه بشې تا سو ته) چه فیصله کوې په میځ دَ دوی کښ په هغه کتاب چه نازل کړے دے الله تعالیٰ او مه کوه

تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ

تابعداری دَ خواهشاتو دَ دوی او ځان ساته دَ دوی نه (هسے نه) چه واړوی تا لره

عَن بَعْضِ مَا أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا

دَ بعضے هغه نه چه نازل کړے دے الله تعالیٰ تا ته ۔ نو که مخ اوګرځوو دوی

فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَن يُصِيبَهُم بِبَعْضِ

نو پوهه شه ، یقینًا غواړی الله تعالیٰ چه اورسوی دوی ته (عذاب) په سبب دَ بعضے

ذُنُوبِهِمْ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ لَفَاسِقُونَ ﴿٤٩﴾

ګناهونو دَ دوی ۔ او یقینًا ډیر دَ خلقو نه خامخا نافرمان دی ۔

سورۃ بقرہ ۲۵۳ دے ۔ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ ابن کثیر وئیلے دی چه مراد دَ دے نه طاعة دَ الله تعالیٰ او اتباع دَ رسول صلی الله علیه وسلم او تصدیق دَ قرآن دے او نسفی وئیلے دی چه مراد دَ الخیرات نه ټول ما امر الله تعالیٰ به دی ۔ یعنی په وخت دَ اختلاف دَ خلقو کښ په قرآن او دین اسلام پسے تابع شئ۔

فَاسْتَبِقُوا استباق په وخت دَ اختلاف او دَ مقابله کښ استعمالیږی۔

إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ دا تخویف اخروی دے او علت دے دَ فاستبقوا دَ پاره۔

فَيُنَبِّئُكُمْ داه هلته به حق او باطل جدا جدا معلوم شی او دا رنګ اخبار نه مراد جزا او سزا ورکول دی۔

۴۹ په دے ایت کښ تاکید دے په باره دَ حکم بالقرآن کښ ۔ وَأَنِ احْكُم دا عطف دے په بِالْحَقِّ باندے اشاره ده چه دَ انزالِ کتاب مقصد حکم کول دی په هغے سره لکه په سورۃ نساء ۱۰۵ کښ دی نو دا تکرار نه دے ځکه مخکښ ایت کښ صرف امر کول وو په حکم بالکتاب او په دے ایت کښ هغه ئے مقصد دَ انزال اوګرځوو ۔ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ مخکښ ایت کښ اهواء دَ عامو خلقو مراد وو او دلته اهواء دَ علماءِ سوء مراد دی۔ او خازن وئیلے دی چه مخکښ ایت کښ منع دَ اتباع هوا نه په حکم دَ رجم

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ

ایا نو فیصلے د جاهلیت (ناپوهۍ) غواړي دوی۔ او څوک زیات ښائسته دے

مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿٥٠﴾

دَ الله تعالیٰ نه په فیصلو کولو کښې دَ هغه قوم دَپاره چه یقین کوي۔

ع ۱۱

کښې مراد ده او دلته په حکم دَ قتل کښې لیکن دَ دے تخصیص دَ پاره وجه نیشته۔ واحذرهم ان یفتنوك په دے کښې خاص تنبیه ده رسول او امتیانو ته چه په باره دَحکم بما انزل الله کښې دَیهودو او نصارٰی او نور علماءِ سوء دَ مکرونو او تلبیسانو او تدلیسانو نه ځان بچ ساتئ۔

اَنْ یَّفْتِنُوْكَ دا بدل اشتمال دے دَضمیر دَ هُمْ نه۔ او فتنه په معنیٰ دَ اړولو دے دَ صحیح مسلك نه لکه په سورة اسراء ۷۳ کښې دی۔

عَنْ بَعْضِ مَا اَنْزَلَ اللهُ په دے کښې دوه قولونه دی اول دا چه بعض په معنیٰ دَ کل سره دے لکه په سورة آل عمران ۵۰ کښې دی دویم قول دا چه بعض په خپله معنیٰ سره دے اشاره ده چه دَ بعض (یعنی یو) حکم نه اړیدل ګناه دے نو دَ ټول حکم بما انزل الله نه اوړیدل غټ ګناه دے دا روستو قول غوره دے۔ فَاعْلَمْ اَنَّمَا یُرِیْدُ اللهُ الخ په دیکښې تصریح ده چه دَ حکم بما انزل الله نه مخ اړول سبب دَ عذاب دے په دنیا کښې۔

بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ په لفظ دَ بعض کښې اشاره ده چه دَ دنیا عذاب په ټولو ګناهونو سره نه دے هغه به په آخرت کښې وي۔ لَفٰسِقُوْنَ دلته خاص فسق ته اشاره ده چه هغه دَ قرآن دَ تحکیم نه مخ اړول دی لکه چه په ۴۷ کښې ذکر شوے وو۔

۵۰ دا متعلق دے دَ تولوا سره یا دَ الفاسقون سره په تقدیر دَ عطف یعنی "اَیَتَوَلَّوْنَ عَنْ حکم الله فحکم الجاهلیة یبغون" (آیا دَ حکم دَ الله تعالیٰ نه مخ اړوئ نو حکم دَ جاهلیت غواړئ) په فا سره ئې ځکه ذکر کړو چه مخ اړول دَ حکم دَ الله تعالیٰ نه مستلزم دَ منلو دَ حکم دَ جاهلیت لره۔ حکم دَ جاهلیت هر هغه حکم دے چه خلاف وي دَ حکم دَ الله تعالیٰ نه لکه چه په یهودو کښې فرق وو په حدودو کښې په مینځ دَ مالدار او غریب کښې۔ دا رنګ دَ قرطبي په تحقیق سره هغه انسان هم داخل دے چه په اولاد کښې فرق کوي بعضو ته

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ

اے ایمان والوا مه نیسئ یهودیان

وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ

او عیسایان دوستان - بعضے دَ دوی یوشان دی (دَکفر په کاروتوکښ) دَ بعضو سرهٔ

وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ

او چاچه دوستانه اوکړه دَ دوی سره ستاسو نه نو یقیناً هغه دے دَ دوی نه - بیشکه

ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥١﴾

الله تعالیٰ توفیق نه ورکوی قوم ظالمانو (عنادیانو) ته -

څه مال وغیره او بعضې محروم کړی او هغې ته په حدیث کښ جور وټلے شوے دے
حدیث نسائی روایت کړے دے او ابن کثیر دَ دے ایت په تشریح کښ
حال دَ تتار ذکر کړے دے چه چنګیزخان خپل قانون جوړ کړے وؤ
او هغې ته ئې یساق وئیلو او هغه دَ یهودیت او نصرانیت او دَ اسلام
نه مخلوط جوړ کړے وو (لکه چه اوس دَ پاکستان قانون دے) او څه احکام ئې دَ
خپل خواهش نه جوړ کړے وؤ او هغه یه ئې مقدم کړل په کتاب الله او سنتِ
رسول الله باندے نو ابن کثیر وائی چه چا دا کار کړو نو هغه کافر دے دَ هغه
سره قتال واجب دے - وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ حُكْمًا اه دا استفهام انکاری دے
او احسن اعدل او احکم ته وئیلے شی - لِقَوْمٍ لام بخپله معنیٰ دے او تخصیص
دَ دوی دَ انتفاع دَ وجې نه دے یا لام په معنیٰ دَ علیٰ سره دے -
سلف دَ دے ایت نه دَ دویمې حصې دویم باب دے تر س۶۶ پورے په دیکښ
نهی ده دَ موالات دَ یهودو او نصاریٰ نه او دا دَ عقودو دَ مؤمنانو نه
اووم عقد دے بیا زجر دے په منافقانو چه دَ دے عقد نه خلاف کوی په
س۵۲ س۵۳ کښ بیا ذکر دَ صفاتو دَ صحابه کرامو دے ترغیباً او دے کښ اتم
عقد دے په س۵۴ کښ او ورپسے ذکر دَ هغه چا دے چه مستحق دَ موالات
دی په س۵۵ س۵۶ کښ - بیا ئې لس علتونه ذکر کړی دی دَ پاره دَ ترکِ الموالاة
س۵۷ س۵۸ س۵۹ س۶۰ س۶۱ س۶۲ س۶۳ س۶۴ په اخری ایت کښ نهم عقد ذکر دے -

او په اخر کښې بشارتِ اخرویه په ۶۵ کښې او دنیویه په ایفاءِ دَ عقودو سره په ۶۶ کښې۔

ربط دَ دے ایت دَ مخکښې سره دا دے چه هر کله نبی ته حکم دَ حذر (۴۹) اسلئی دَ یهود او نصاریٰ ته په پیره دَ افتنان سره نو عامو مؤمنانو ته ضرور امر دے اجتناب دَ هغوی ته دے دَ پاره چه گمراه نشي۔ دا رنگ یهود او نصاریٰ هغه خلق دي چه حکم دَ جاهلیت غواړی نو دَ هغوی سره دَ براءت حکم کوی۔ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا دا صفت دَ ایمان دَ دوستانے پریخودلو تقاضا کوی دَ یهودو او نصاریٰ سره۔ أَوْلِيَاءَ او دا سے حکم دَ عامو کافرانو په باره کښې په سورة آلعمران ۲۸ او په سورة نساء ۱۳۹ ۱۴۴ او سورة ممتحنه ۱ کښې هم دے او دَ ولایت درے درجے دی اول دا چه دَ هغوی سره موافقت اوکړی په عقیده یا کارونو دَ کفر او شرک کښې دا خو عینِ کفر دے دویم دا چه دَ هغوی سره تعاون جانی یا مالی کوی دا هم کبیرة گناه دَ دریم دا چه دَ هغوی اکرام او عزت کوی دَ عزت عُهده ورکوی لکه چه ابو موسیٰ اشعری یو نصرانی کاتب نیولے وُو نو عمر رضی الله عنه منع کړو ورته ئے اوئیل دا خو اکرام دے (سمعانی او ابن کثیر) نور تفسیر دَ موالات په سورة آلعمران ۲۸ کښې دے۔

بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ دا علت دَ مخکښې دَ پاره دے او دَ هغوی موالات په معنیٰ دَ امداد کولو دے دَ یو بل سره په مقابله دَ مسلمانانو کښې او دا رنگ موالات دَ هغوی په معنیٰ دَ مشابهت دے دَ یو بل سره په کارونو دَ کفر کښې اگرچه دَ هغوی دَ یو بل سره دشمنی هم شته په دلیل دَ سورة بقره ۱۱۳ او دَ دے صورت ۱۴ کښې چه تیر شوی دے۔ او دَ دے ایت نه دا مسئله اخستلے شوی ده چه اَلْكُفْرُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ۔

وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ الخ او دا دے ته ماخوذ دے دا حدیث مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ او مراد دَ دے نه تشبّه ده په امورو دَ دین دَ هغوی کښې دَ هغوی په عید کښې شرکت کول او دَ هغوی پشان په غاړه کښې یا دَ عزت په ځائے کښې دَ هغوی دَ صلیب شکل استعمالول او دَ هغوی پشان په قبرونو دَ اولیاؤ باندے مساجد جوړول وغیره دا ټول په تولّی کښې داخل دی۔ الظَّالِمِينَ مراد هغه خلق دی چه موالات دَ مؤمنانو په ځائے دَ کافرانو سره کوی۔

فَتَرَى الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ

پس وینې به ته هغه کسان چه په زړونو د هغوی کښې مرض دے

يُّسَارِعُوْنَ فِيْهِمْ يَقُوْلُوْنَ نَخْشٰۤى

جلتی به کوی په دوستانه د دوی کښې وائي دوی یریږو مونږ

اَنْ تُصِيْبَنَا دَآئِرَةٌ ؕ فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَ

چه او به رسی مونږ ته څه حادثه - نو نیږدے ده چه الله تعالیٰ به راولی

بِالْفَتْحِ اَوْ اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ فَيُصْبِحُوْا

فتح یا بل څیز د خپل طرف نه نو شی به دوی

عَلٰى مَاۤ اَسَرُّوْا فِيْۤ اَنْفُسِهِمْ نٰدِمِيْنَ ؕ ﴿۵۲﴾

په هغه څه چه دوی پټ ساتلے په زړونو خپلو کښې (دوستانه د کافرانو سره) خپیمانه

۵۲ دا زجر دے منافقانو ته په مخالفت کولو د مخکنی عقد سره او د هغوی بهانه ذکر کوی او بیا د هغې جواب۔ مَرَضٌ شك او نفاق او محبت د کافرانو سره۔ يُسَارِعُوْنَ فِيْهِمْ یعنی فِيْ مَوَالَاتِهِمْ (د دوی په دوستانه کولو کښې) مسارعت یې ورته څکه اوئیلو چه دوی په ضرر د دے موالات کښې سوچ نه کوی په بے فکرئ سره دا کار کوی۔ يَقُوْلُوْنَ اه دا د منافقانو بهانه ده۔ دَآئِرَةٌ هر هغه مصیبت چه په گردش د زمانه کښې پیدا کیږی مراد د دے نه غلبه د کافرانو او کمزوری د مؤمنانو ده او دا رنګ قحط اولوږه ده وائي چه دوی به مونږ له بیا غله او امداد نه راکوی (دا سے حال او س د دے ملك او د اکثر اسلامی ملکونو دے دوستانه کوی د امریکے والوا و یهودیانو سره په دغه بهانه سره وَ اِلَى اللّٰهِ الْمُشْتَكٰى) فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَ بِالْفَتْحِ عسٰی د پاره د قریب امید دے او د فتح نه مراد غلبه د اهلِ اسلام ده په کافرانو باندے۔ او اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ فراخی د رزق د مؤمنانو یا ښکاره کول د رازونو د منافقانو۔ فَيُصْبِحُوْا اه تعبیر په اصباح سره د دے وجے نه دے چه مخکښ حالت د منافقانو په شان د تیارے دے او په تیارے پسے رڼا په شان د صبا راغله۔ او په رڼا کښې به

وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ
او وایه وائي مؤمنان ، آیا دا هغه کسان دي
أَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ
چه قسمونه ئې کړي دي په الله تعالیٰ باندے پاخه قسمونه د دوی ، یقیناً دوی
لَمَعَكُمْ ۚ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَأَصْبَحُوا
خامخا ستاسو ملګري دي . برباد دي عملونه د دوی نو شول دوی
خَاسِرِينَ ﴿٥٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَنْ يَرْتَدَّ
تاوان والا . اے ایمان والو ! څوک چه مرتد شو (راواوړي)
مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ
په تاسو کښې د دین خپل نه نو زر دے چه راپه ولي الله تعالیٰ داسے قوم
يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ
چه مینه به کوي الله تعالیٰ د هغوی سره او هغوی به هم مینه کوي د الله تعالیٰ، نرم به وي په مؤمنانو باندے
أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي
سخت به وي په کافرانو جهاد به کوي په

دوی ته خپل نقصان ښکاره شي نو خپیمانه به شي په دوستانه د یهود او نصارٰی باندے۔

۵۳ دا قول د مؤمنانو په طریقه د تعجب سره دے روستو د ښکاره کیدلو د حال د منافقانو نه۔ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ قسم کول په الله تعالیٰ باندے د مشرکانو (منافقانو) په نیز پوخ قسم وي او په غیر الله باندے قسم د دوی عادتًا وي یا پوخ والے دادے چه د الله تعالیٰ نورو نومونه صفتونه په قسم کښې ذکر کړي۔ خَاسِرِينَ دا د ندامت نه ترقي ده ځکه ندامت خو صرف په فوت کیدلو د مطلوب دنیوی سره وي او خسران په نقصان د دنیا او د آخرت دواړو سره دے چه سره د شرم نه په دنیا کښې عملونه ئې هم برباد شول۔

سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوۡنَ لَوۡمَةَ لَآئِمٍؕ

لار د الله تعالیٰ کښې، او نه به یریږی د ملامتیا د ملامت کو نه.

ذٰلِكَ فَضۡلُ اللّٰهِ يُؤۡتِيۡهِ مَنۡ يَّشَآءُ‌ؕ وَاللّٰهُ

دا فضل د الله تعالیٰ دے ورکوی ئے چاته چه اوغواړی. او الله تعالیٰ

وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۵۴﴾ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوۡلُهٗ

فراخ فضل والا دے پوهه دے په هر څه. یقیناً د دوستانے لائق ستاسو الله تعالیٰ دے او رسول د هغه دے

۵۴ په دے ایت کښې تسلی ده مؤمنانو ته په وخت د نیکاره کیدلو د منافقانو کښې او د موالات کولو د هغوی د کافرانو سره او اشاره ده لکه چه په دائره (حادثه) رسیدلو سره مؤمنانو ته او دین اسلام ته هیڅ نقصان نه رسیږی نو دارنګ که یو انسان نیکاره مرتد شی نو هم دین او اهلِ دین ته هیڅ نقصان نه رسیږی بلکه الله تعالیٰ د دین د حفاظت د پاره نور خلق پیدا کوی. مَنۡ يَّرۡتَدَّ مِنۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِهٖ په سبب د ولایت کولو د یهود او نصاری سره یا په بله طریقه سره کفر اوکړی روستو د ایمان نیکاره کولو نه. مقصد د ایت دا دے چه چا دین اسلام او د هغے نصرت پریخودلو نو دا خیال دے نه کوی چه دین ته به نقصان اورسی بلکه الله تعالیٰ به د دهٔ بدل کښې بل پیدا کړی د دین د پوخ والی د پاره دا سے په سورۃ محمد ۳۸ او سورۃ نساء ۱۳۳ اوسورۃ ابراهیم ۱۹ ۲۰ کښې راغلے دی. او د مَنۡ يَّرۡتَدَّ جزاء پټه ده یعنی فَلَا يَضُرُّ اِلَّا نَفۡسَهٗ او فسوف کښې فا په معنیٰ د علت ده. (سوال) دا چه صحابه کرامو ته خطاب شی نو فسوف یأتی الله اه تبدیل خوک مراد شی نو ثابت شو فضیلت د روستنو خلقو په صحابو باندے؟ (جواب) دا خطاب دے منافقانو ته په قرینه د مخکښې دوه ایاتونو سره او فسوف یأتی الله بقوم نه صحابه مراد دی په قرینه د ایت سورۃ توبه ۱۰۰ او سورۃ فتح ۲۹ او یأتی مضارع په معنیٰ د ماضی ده او دا حکایت د حال ماضیه دے او د دے د پاره دے چه دا حکم هر زمانے ته شامل شی.

(سوال) بعض مفسرینو لیکلی دی چه دا ایت صحیح پیشنګوئی د نبی

صلی الله علیه وسلم ده او دَ هغې خلقو ذکر ئې کړے دے کوم چه مرتد شوے وو؟ (جواب) کوم درے کسان ئې چه ذکر کړے دی چه دعوی دَ نبوت ئې دَ نبي صلی الله علیه وسلم په وخت کښ کړے وه اسود عنسي او دَ هغه قوم بنو مدلج او مسیلمة الکذاب او دَ هغه قوم بنو حنیفه او طلیحه بن خویلد او دَ هغه قوم بنو اسد نو دَ دوی ایمان راوړل دَ نبي صلی الله علیه وسلم په وخت کښ ثابت نه دی بلکه دَ ابتداء نه دوی کافر وو.
نو داسے وئیل خطاً دی چه دا صحابه وو او مرتد شول او کومے اووه فرقے چه په زمانه دَ ابوبکر رضی الله عنه او یو فرقه په زمانه دَ عمر رضی الله عنه کښ چه مرتد شویدی نو هغوی صحابه نه وو. نو دَ دے نه دا استدلال غلط دے چه دا صحابه مرتد شویدی. او دَ حسن بصری نه روایت مفسرینو نقل کړے دے چه هغه په قسم کوو چه مراد دَ بِقَوۡمٍ اه نه ابوبکر رضی الله عنه او دَ هغه ملګری وو.
تنبیه: خطابي وئیلي دی چه ارتداد والا دوه قسمونه وو یو هغه چه دَ دین اسلام نه ئې انکار اوکړو او خالص دَ جاهلیت عقیده او عمل ئې شروع کړے وو دا خو هغه خلق وو چه په مسیلمة الکذاب او اسود عنسي وغیره باندے ایمان راوړے وو. دوېم قسم هغه دی چه فرق ئې کړے وو په مینځ دَ مونځ او زکوٰة کښ او دَ زکوٰة دَ ادا کولو نه امام ته انکار ئې کړے وو دا بعض خلق وو په بنو حنیفه کښ نو امام شوکاني په نیل الاوطار کتاب الزکوٰة کښ وئیلي دی چه دوی صرف باغیان وو او مرتدین دوی ته مجازًا (مشابهةً) وئیلي شویدی. یُحِبُّهُمۡ وَیُحِبُّوۡنَهٗ مذهب دَ سلف صالحینو دا دے چه محبت الله تعالیٰ لره ثابت دے حقیقةً بغیر دَ کیف او دَ تاویل او دَ تمثیل نه. زمخشري او دَ هغه اتباعو چه تاویل کړیدے چه مراد دَ دے نه ثواب ورکول او تعظیم او ثناء ده دا خلاف دے دَ مذهب دَ سلف نه. اَذِلَّةٍ عَلَى الۡمُؤۡمِنِیۡنَ دا دَ ذلّ مقابل دے او دَ عزت نه ماخوذ نه دے بلکه ذلة په معنیٰ دَ نرمیٔ او شفقت او رحم سره دے په قرینه دَ دے چه دوی له ئې عزت په روستو جمله کښ ثابت کړے دے او دا پشان دَ سورة فتح ۲۹ دے. لفظ دَ علیٰ کښ دوه فائدے دی یو تضمین دَ معنیٰ دَ شفقت لره او دوېم دا چه دَ دوی درجات اګرچه اوچت

وَالَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ

او هغه کسان چه ایمان یې راوړے دے، هغه مؤمنان چه پابندي کوي د مانځه

وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ وَهُمْ رَاكِعُونَ ﴿٥٥﴾

او ورکوي زکوٰة او دوي رکوع کوونکي دي (الله تعالیٰ ته)۔

دي لیکن سره دَ دے نه مؤمنانو باندے رحم کوي۔ اَعِزَّةٍ اه دا دَ عزت په معنیٰ دَ شدت نه ماخوذ دے۔ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ دا حال دے دَ ضمیر دَ یجاهدون، واو دَ پاره دَ حال دے یعني په حال دَ جهاد کښې که قولي وي او که عملي وي نو دَ چا دَ ملامتیا پرواه نه کوي۔ یا واو دَ عطف دے مستقل صفت دے لیکن واو یې ورسره راوړے دے اشاره ده چه دا وصف په وخت دَ مجاهدے کښې ضروري دے۔ لَوْمَةَ لَائِمٍ نکره یې ذکر کړے ده چه دَ هیڅ قسم ملامتیا دَ هیڅ قسم ملامت گر دَ طرف نه پرواه نه کوي که والدین وي که استاد دي که مشروي که کشروي، نروي او که ښځه وي وغیره۔ ذٰلِكَ اه اشاره ده ماقبل صفتونو ته په تاویل دَ مذکور سره۔

ف٥٥ هر کله چه دَ موالات دَ یهودو او نصاریٰ نه منع اوشوه او دَ براءت کوونکو صفتونه یې ذکر کړل نو په دے ایت کښې اهل دَ ولایت ذکر کوي په طریقه دَ حصر سره په لفظ دَ اِنَّمَا دَ پاره دَ دے چه دَ دے مذکور نه تعدي او نکړے شي۔ وَلِيُّكُمُ مراد ولایتِ دیني دے۔ (سوال) پکار وُ چه دلته یې جمع ذکر کړے وے یعني اولیاءکم؟ (جواب) اشاره ده چه ولایت په اصل کښې دَ الله تعالیٰ دے او دَ نبي او مؤمنانو دَ پاره تبعًا دے۔ اَلَّذِينَ يُقِيمُونَ اه دَ ایمان سره درے اوصاف یې ذکر کړل اشاره ده چه کوم مؤمن کښې دا صفتونه ټول یا بعض موجود نه وي نو دَ هغه سره ولایت مه کوئ۔ وَهُمْ رَاكِعُونَ دا صفت همیشه او دائم دے۔ دَ دے وجے نه په جمله اسمیه سره یې ذکر کړے دے۔

تنبیه: بعض مفسرینو وئیلي دي چه دا حال دے دَ ضمیر دَ یؤتون نه او دَ دے په تائید کښې اثار دَ علي رضي الله عنه نقل کړے دي لیکن ابن کثیر اولاً وئیلي دي چه هیچا دَ علماؤ نه دا نه دي وئیلي چه زکوٰة ورکول په حال دَ رکوع کښې افضل دي راو په هغے باندے نور احکام مرتب کول بے فائدے

وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ

او چا چه دوستانه او کړه د الله تعالیٰ سره او د رسول د هغه سره او هغه کسانو سره چه

اٰمَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿٥٦﴾

ایمان والا دی، نو یقیناً ډله د الله تعالیٰ دوی غالب دی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ

اے ایمان والو! مه نیسئ هغه کسان

اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ

چه ګرځی دین ستاسو پوری او لوبے د هغے کسانو نه

اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ

چه ورکړے شوے دے ورته کتاب مخکښ ستاسو نه او (نورو) کافرانو لره دوستان

بحث دے) او ثانیاً ابن کثیر وئیلی دی چه په دے اثار وکښ هیڅ یو صحیح نیشته ځکه چه د دے سند ونه ضعیف دی او راویان ئے مجهول دی او په حدیث صحیح سره ثابت ده چه دا آیا تونه په باره د عبادة بن الصامت رضی الله عنه کښ نازل شوے دی او امام رازی په تفسیر د دے آیت کښ په شیعه گانو باندے سخت رد کړے دے۔

۵۶ دا بشارت دے د پاره د اهل د آیت مخکنی۔ يَتَوَلَّ اللّٰهَ مراد د تولا نه قیام په طاعت د الله تعالیٰ او په نصرت د رسول او د مؤمنانو دے۔

فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ اه حزب په اصل کښ هغه قوم ته وئیلے شی چه راجمع شی په وخت د را تللو د حادثه کښ او هغه جماعت ته وئیلے شی چه ملګ وی نو دا د جماعت او د قوم نه خاص دے۔ او دا سے په سورة مجادله ۲۲ کښ هم راغلے دی۔ سوال: دلته غالبون او هلته ئے مفلحون وئیلے دے؟ جواب: دلته مقابله د یهود او نصارٰی سره په دنیا کښ مراد ده او په وخت د مقابله کښ غلبه مقصد وی او په سورة مجادله کښ د حزب الشیطان په باره کښ خاسرون وئیلے وو نو د هغے په مقابله کښ مفلحون مناسب لفظ دے۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۵۷﴾ وَاِذَا
او ويريږئ د الله تعالٰی نه که تاسو مؤمنان يئ - او کله چه
نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا
آواز اوکړئ تاسو مانځه ته اونيسي دوی هغې لره پوټوکې
وَّلَعِبًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿۵۸﴾
او لوبې - دا په دې وجه چه دوی داسې قوم دی چه عقل نه لري -

۵۷ : دے ایت نه شروع کوی په ذکر د علتونو د منع د دوستانے د کافرانو نه په دے ایت کښ اول علت ذکر کوی یعنی دینِ اسلام پورے استهزاء او هغه لعب گنړل - يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا دا هم عقد دے د پاره د حفاظت د ایمان - هُزُوًا وَّلَعِبًا هزء په اصل کښ خفت ته وئیلے شی یعنی سپکوالے کوی په طریقه د مسخرو او خندا کولو سره او لعب معنی دا چه بے فائدے مشغله ئے گنړی پشان د لوبو کولو - نو مراد مجموعه دا چه ټول دین پورے استهزاء او لعب کوی یا دا چه ایمانیات او عقیدو د مؤمنانو پورے استهزاء کوی او اعمال ئے لوبے گنړی لکه اوس دهریان او نور کافران مونځ او حج وغیره ته لوبے وائی - مِنَ الَّذِيْنَ دا بیان دے د مخکښ الذین په ذکر د فریقینو د کافرانو سره - وَالْكُفَّارَ دا تعمیم بعد التخصیص کیچه مشرکانو ته شامل دے - اُوْتُوا الْكِتٰبَ دوی د غه نوم سره مشهور دی د دے وجے نه د الکفار نه یئے جدا ذکر کړے دی - وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ ان په معنی د اِذْ سره دے یعنی تقاضا د ایمان تقوی ده -

۵۸ دا معطوف دے په مخکښ اتخذوا باندے او دا ذکر د دویم علت دے او دا خاص دے د مخکښ نه - وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ نداء الی الصلوٰة خو مجمل دے لیکن د هغې تفصیل په احادیثو کښ په کلماتو د اذان سره شوے دے نو دا ایت دلیل دے په مشروعیت د اذان سره د پاره د ټولو پنځه مونځونو - اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا خوک وائی دا چه دی پشان د حیواناتو غوک د دے نه تیختنه کوی پشان د شیطان - خوک په دے دعوت باندے عمل نه کوی یعنی جماعت ته حاضری نه کوی - لَا يَعْقِلُوْنَ نه پوهیږی

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ

ته ورته او وايه اے كتاب والو! بد نه گنړئ تاسو زموږ نه

اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ

مګر دا چه ايمان راوړے دے مونږه په الله تعالىٰ او په هغه كتاب چه نازل شوے دے مونږ ته او په هغه كتابونو

اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۵۹﴾

چه نازل كړے شوى دى مخكښ د دينه، او د دے وجے چه اكثر ستاسو نه نافرمان دى -

په مقصد د دے كلماتو- او كلمات د اذان مشتمل دى په كبريا د الله تعالىٰ چه هغه توحيد د ذات او توحيد د خالقيت او توحيد د اسماء او صفاتو او توحيد د حكم او تشريع ته شامل دے دا څلور اقسام په څلورو تكبيرونو كښ داخل دى بيا شهادت دے د توحيد د الوهيت بيا شهادت دے په صدق د رسول باندے او هر كله چه شهادت د پاره دوه كسان پكار دى نو دوه دوه كرته شهادت اداكيږى - او بيا پدے كښ دعوت الى الصلوٰة دے چه اهم عمل دے د پاره د ادا د توحيد عملى بيا ترغيب دے صلوٰة ته په وصف د فلاح سره د پاره د اهميت د هغے - بيا ذكر د كبريا د الله تعالىٰ دے دوه كرته د پاره د ترك د هغے شركياتو او مشاغلو چه غفلت راولى د توحيد نه او په اخر كښ نتيجه د ټولو كلماتو ذكر ده په لا اله الا الله سره - نو پدے مقصد باندے چه څوک پوهه نه لرى نو دا جهل سبب دے د پاره د استهزاء بالدين. مشهوره ده اَلنَّاسُ اَعْدَاءٌ لِمَا جهلوا -

۵۹ پدے ايت كښ دريم علت ذكر دے چه ستاسو موږ سره ضرف په ايمان او په دين باندے دشمنى ده نو تاسو سره موږ هيڅ موالات نه شو كولے - او دا رنګ دا ايت علت د ماقبل ايت د پاره دے يعنى استهزاء په اذان پورے په سبب د نفرت سره د توحيد نه او اذان خو اعلان د توحيد دے - هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اه نقم خفګان كول، بد ګڼل، نفرت كول، عيب ګڼل، او سبب د نقمت ئے صرف ايمان ذكر كړے دے اشاره ده چه د كافرانو مشركانو دشمنى د مؤمنانو

قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوبَةً

ته ورته اووایه! آیا خبر درکړم تاسو ته په ډیر ناکاره سره دَ دینه په اعتبار دَ بدلے

عِنْدَ اللّٰهِ ۚ مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ

په نیز دَ الله تعالیٰ - هغه څوک چه لعنت کړیدے الله تعالیٰ په هغه باندے او غضب یے کړیدے په هغه باندے

وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ

او جوړ کړیدی دَ هغوی نه شادوګان او خنزیران، او هغه څوک چه بندګی یے کړیدی

الطَّاغُوتَ ۚ أُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّأَضَلُّ

دَ طاغوت (ما سیوا دَ الله ت) - دغه کسان ډیر ناکاره دی په اعتبار دَ مرتبے او ډیر او ړیدلے دی

عَنْ سَوَآءِ السَّبِيلِ ﴿٦٠﴾ وَإِذَا جَآءُوكُمْ

دَ برابر لارے نه - او کله چه راشی دوی تاسو ته

سره صرق په مسئله توحید ده دا رنګ په سورة اعراف ۱۲۶ او سورة حج ۳ او سورة بروج ۸ کښ هم ذکر دی۔ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ دا عطف دے په مخکښ اَنْ باندے یعنی ایمان زموږ او بے ایمانی ستاسو سبب دَ دشمنئ دے او فسق نه مراد فسقِ اعتقادی (کفر او شرک دَ کتابیانو) دے او فسق عملی دے یا دلته لام مقدر دے یعنی لان اکثرکم فاسقون۔
۶۰ په دے ایت کښ ذکر دَ خلوم علت دَ ترکِ موالات دے (یعنی دینِ توحید ته او موحدینو ته شروالا وئیل سرهٔ دَ دے چه په ایکښ ډیر شرونه دی) او مخکښ (نقمت) علتِ باطنی وُو او دا (شر وئیل) علت ظاهری دے۔ او دا جواب دے دَ قول دَ کتابیانو کافرانو هغوی وئیلے وُو "لَا نَعْلَمُ دِيْنًا شَرًّا مِّنْ دِيْنِكُمْ" (موږ ته ستاسو دَ دین نه زیات شروالا دین یل نه دے معلوم)۔ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ ذٰلك اشاره ده دینِ توحید ته چه په اعلان دَ اذان کښ موجود دے۔ (سوال) لفظ دَ مِنْ دلالت کوی چه شر دلته صیغه دَ تفضیل ده او تفضیل دلالت کوی چه په دینِ توحید کښ هم څه نه څه شر شته دے؟ (جواب) دا کلام بِنا دے په اعتقاد دَ دوی باندے یعنی فرض کړئ چه زموږ دین کښ څه شر شته دے لیکن

قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَقَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ وَهُمْ

وائي دوى ايمان راوړے دے موږه او حال دا چه دوى داخل شوى دى په كفر سره او دوى

قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا

وتلى دى په كفر سره. او الله تعالىٰ ښه پوهه دے په هغه څه چه دوى ئې

ستا سو دين خو ډير شر دے نو ځيل ته شر ته وايئ او زموږ دين ته شر وايئ. مَثُوْبَةً (سوال) مثوبه خو په جزا د خير كښ استعماليږى نو دلته ئې د شر سره ولے ذكر كړه؟ (جواب) دا په طريقه د تهكم (يعنى استهزاء كول) په كافرانو پورې دے لكه په دے قول د الله تعالىٰ كښ فبشرهم بعذاب اليم. مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ دا بدل دے د من ذٰلك ته په تقدير د مضاف سره يعنى دين من لعنه الله الخ ځكه چه بحث په باره د دين كښ دے او په دے اضافت كښ اشاره ده سببيت ته يعنى دين د هغه چا چه لعنت شويدے په هغوى باندے په سبب د دغه دين او په دے كښ مراد هغه كتاهو نه دى چه سبب د لعنت گرځولے شويدے په قرآن كښ لكه كتمان د حق په سورة بقره ۱۵۹ كښ او دا خوئ اول د يهوديانو وو. وَغَضِبَ عَلَيْهِ هغه دين چه سبب د غضب الهى دے لكه په بقره ۶۱ ۹۰ كښ دا هم اول خوئ د يهودو وو. وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيْرَ يعنى هغه دين چه سبب د مسخ گرځولے شوے دے او په دے كښ د مفسرينو دوه قولونه دى اول دا چه په اصحاب السبت كښ مسخ د قردة په شكل سره وه او په اصحاب مائده (په زمانه د عيسىٰ عليه السلام كښ) مسخ د خنازيرو په شكل سره وه او دويم قول دا دے چه د اصحاب السبت ځوانان مسخ شول په صورت د قردة او بوډاګان په شكل د خنزيرانو او د دے سبب په سورة بقره ۶۵ كښ ذكر دے.

وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ په دے قراءت كښ عبد فعل ماضى ده او طاغوت مفعول دے او لفظ "دين من" مقدر دے يعنى دين من عبد الطاغوت او قرطبى په دے ځائے كښ دولس قراءتونه ذكر كړے دى. او طاغوت كښ عبادت د سېتو او اطاعت د كاهنانو او هر هغه طاعت چه په معصيت د الله تعالىٰ كښ وى داخل دے او دا ټول كارونه په بنى اسرائيلو كښ

يَكْتُمُوْنَ ﴿٦١﴾ وَتَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُوْنَ

پټوی ـ او وینې ته ډیرو لره ددوی نه چه جلتی کوی

فِى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ

په ګناه کولو کښې او ظلم کولو کښې او په خوړلو د حرامو کښې ـ

لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٢﴾ لَوْلَا يَنْهٰهُمُ

خامخا بد دی هغه عملونه چه دوی يې کوی ـ ولې نه منع کول دوی لره

موجود شوے وؤ ـ شَرٌّ مَّكَانًا مكان ددوی په اخرت کښې اور دجهنّم دے یا مکان په معنیٰ د مکانت سره دے حالت د دوی که په دنیا کښې وی او که په اخرت کښې ـ وَاَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ داخو په دنیا کښې دے او دلته شر او اضل اسم تفضیل په اعتبار د زعم د یهودیانو کښې دے یا اسم تفضیل په معنیٰ د اصلِ فعل سره دے ـ

س۶۱ په دے ایت کښې پنځم علت ذکر کوی او په دے کښې تفصیل دے د دے قول چه شر او اضل او په دے کښې هغه یهود مراد دی چه تلبیس د مؤمنانو د پاره يې داسے کار کوؤ او داسے په سورة العمران س۷۲ کښې ذکر دی ـ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ اشاره ده چه په زړونو د دوی کښې دومره ضلال او شر دے چه ستاسو د علم نه هغه بهر دے لکه سورة العمران س۱۱۸ کښې دی ـ

س۶۲ دا هم دلیل دے د شر او د ضلال د دوی او په دے کښې شپږم علت ذکر کوی ـ وَتَرٰى دا دلیل دے چه دا عمل د ګمراهئ د دوی هر چا ته ښکاره دے ـ كَثِيْرًا بعضو خو ایمان راوړے وؤ ـ الْاِثْمِ مراد د دے اقوال د ګناه دی لکه قول د اتخاذ الولد او حلول او تثلیث ـ

وَالْعُدْوَانِ عملونه د ظلم قتل د انبیاؤ او د حق پرستو خلقو او تحریف کول ـ

السُّحْتُ مالونه د امیانو خوړل او اشتراء بالدین وغیره ـ

يُسَارِعُوْنَ مسارعت نه مراد دا دے چه په غیر د سوچ او فکر د عاقبت نه دا کارونه کوی ـ او فِىْ په فِى الاثم کښې دلالت کوی په انهماک او استغراق د دوی په دے کارونو کښې ـ

الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ

پیرانو او علماؤ دَ ویناً دَ دوی دَ گناه نه

وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۭ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا

او دَ خوړلو دَ حرامو نه . خامخا بد دے هغه کار چه دوی یئے

يَصْنَعُوْنَ ﴿٦٣﴾ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ

کوی - او وائی یهودیان لاس دَ الله تعالیٰ

۳۱۶ په دے کښ ذکر دَ اووم علت دے او دا جدا قِسم گمراهی ده او صِرف دَ غَښتو ملایانو عمل دے نو په غیر دَ عطف نه یئے ذکر کړه۔

الرَّبّٰنِيُّوْنَ دلته مراد رهبان دَ نصاراؤ دی یا هغه خلق چه دعویٰ کوی دَ خدا پرستئ که یهود وی او که نصاریٰ وی او اَحْبَارُ غښتې ملایان دی اگرچه دوی په خپله دَ وینا دَ گناه نه اودَ خوراک دَ حرامو نه ځان بچ ساتلو لیکن دے منکراتو نه یئے نهی نه کوله ۔ (سوال) دلته یئے عدوان ذکر نه کړو ؟ (رجوابِ ۱) داخل دے په الاثم کښ نو دَ اختصار دَ کلام دَ پاره حذف شو (رجواب ۲) دغه ربانیون او احبار په خپله په عدوان کښ شریک وو ځکه چه عدوان بد عات کول دی او هغه په ملا یانو دَ دوی کښ ډیر وو (رجواب ۳) عدوان دَ عوامو دَ کسانو نه پیښ وو۔ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ قرطبی وئیلی دی دا دلیل دے چه پریښودونکے دَ نهی عن المنکر پشان دَ کوونکی دَ منکر دے. دارنګ اشاره ده چه نهی عن المنکر مستقله فریضه ده په شان دَ امر بالمعروف نو یو دَ بل په ځائے پاتی دے نه کافی کیږی ۔ (سوال) مخکښ ایت کښ یئے یعملون اووئیل او په دے کښ یصنعون دے ؟ (رجواب) صناعت هغه عمل ته وئیلے شی چه همیشه کولے شی او په هغے کښ تجربه حاصل شی او جائز گڼړلے شی نو ملایانو چه نهی عن المنکر نه کوله دا عمل دوی ښهٔ گڼړلو او دا کار یئے همیشه کولو۔

ابن جریر دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت ذکر کړے دے چه نیشته په قرآن کښ دَ دے ایت نه زیات خطرناک زما په نیز ځکه چه مونږ هم نهی عن المنکر نه کوؤ ۔ (استغفرالله العظیم)۔

مَغْلُوْلَةٌ غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ وَلُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا م

بند کړے شویدے۔ (بلکه) بند کړے شویدی لاسونه دَ دوی او لعنت کړے شویدے په دوی باندے په سبب دَ هغے چه دوی وئیلی

بَلْ يَدٰهُ مَبْسُوْطَتٰنِ لا يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَآءُ ط

بلکه لاسونه دَ الله تعالیٰ فراخه دی خرچ کوی څه رنګه چه اوغواړی

وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ

او خامخا زیاتی کوی ډیرو لره دَ دوی نه هغه کتاب چه نازل کړے شویدے تاته

مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ط وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ

دَ طرف دَ رب ستا نه، سرکشي او کفر ۔ او اچولے ده مونږ په مینځ دَ دوی کښ

الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ط كُلَّمَآ

دُشمني او کینه کری تر ورځ دَ قیامت پورے۔ هر وخت

اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ لا وَيَسْعَوْنَ

چه بل کړی دوی اور دَ پاره دَ جنګ، مړ کړی هغے لره الله تعالیٰ او کوشش کوی دوی

فِى الْاَرْضِ فَسَادًا ط وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٦٤﴾

په زمکه کښ دَ فساد ۔ او الله تعالیٰ نه خوخوی فساد کوونکی۔

س۶۴ په دے ایت کښ ذکر دَ اثم او تهم او لسم علتونو دے وقالت الیهود اه کلما اوقدوا نارا اه ویسعون فی الارض اه۔ یَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ دا کنایه ده دَ قبض او دَ بخل نه لکه چه په سورۃ اسراء س۲۹ کښ دی او دا قول دَ دوی ډیره بے عزتی او سب او شتم دے الله تعالیٰ ته۔ او دَ دے سبب دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه یهود علماء او عوام بنهٔ په وسعت دنیوی کښ وؤ دَ علماؤ به دَ عوامو دَ طرف نه دَ دین په وجے سره قسم قسم امداتیٔ وے او عوامو هم دَ حلال او حرام فرق نه کوؤ هر کله چه نبی صلّی الله علیه وسلّم مدینے منورے ته هجرت اوکړو او هلته دین اسلام خور شو او غالب شو نو دَ دوی امداتیٔ کمے شوے ځکه چه اکثر

خلق دَدوی نه جدا شول او مسلمانان شول نو دوی وئیل (دَ خپلے غلطئ اظهار ئے نه کوئ) چه دَالله تعالیٰ لاس زموږ نه بند شول او هغه بخل شروع کړو لکه چه دوی دَ فقر نسبت هم الله تعالیٰ ته کوؤ (سورة العمران ۱۸۱).
اوس هم ډیر جاهلان شته چه دَ حرام رزق دروازے پرے بندے شی او روزی ئے تنګه شی نو الله تعالیٰ ته ناکاره نسبتونه کوی. غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ دا جمله دعائیه ده په طریقه دَ تعلیم سره دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه نیکانو بندګانو ته په وخت دَ دغه قول دَ یهودیانو کښ. او دا دُعا مستجابه ده په آخرت کښ چه دَ دوی لاسونه به سټونو سره تړلے شوے وی لکه په سورة یٰسٓ کښ (ربنا په یو تفسیر یاندے او په سورة مؤمن ۷۱ کښ او دا رنګ په دُنیا کښ په اعتبار دَ معنیٰ ظاهری سره اګرچه کله کله په بعض کسانو کښ وی چه په دنیا کښ مسلمانان په دوی باندے غالب شی نو قید به ئے کړی او نیشاپوری یو خاص واقعه هم ذکر کړے ده چه یو وزیر دَ یهودیانو چه سعد الدولة سره مشهور وؤ بغداد ته په خپله دوره کښ راغے نو مدرسه مستنصریه ته لاړو او قرآن ئے طلب کړو او تپوس ئے اوکړو چه دا آیت (غلت ایدیهم) پکښ کوم ځائے کښ دے نو هغوی ورته اوخودلو نو هغه ئے محو (وران) کړو دَ قرآن نه. نو لږه موده تیره شوه چه بادشاه دَ دهٔ نه په څه کار باندے ناراض شو نو پولیس ئے ورپسے را اولیږلو نو هغوی ورله لاسونه دَ سټ سره اوتړل او بادشاه امر اوکړو چه قتل ئے کړی. (نو دا اعجاز دَ قرآن کریم دے) او دا رنګ په دنیا کښ په اعتبار دَ معنیٰ کنائی سره وی یعنی دوی دے په بخل کښ اخته شی دَ دے وجے نه دَ یهودیانو نه زیات بخیلان بل څوک نیشته دے. وَ لُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا او دا آثار دَ لعنت خو په یهودیانو باندے ډیر ښکاره شوے دی او په آئنده کښ به هم آثار ښکاره کیږی.
او دَ قول نه مراد لفظ مغلولة دے او ځا چه وئیلے دی چه قول نه مراد دا دے چه دوی الله تعالیٰ لره یَدَ (لاس) ثابت کړے دے دا قول باطل دے ځکه چه روستو الله تعالیٰ ځان دَ پاره دَ " یدان" اثبات کوی او سمعانی په تفسیر کښ وئیلے دی چه اهل علمو وئیلے دی چه په دے کښ رد په یهودو باندے په اثبات دَ ید سره نه دے بلکه رد دے په نسبت کولو

دَ بخل الله تعالیٰ ته او هرچه یَدْ دَ توهغه صفت دے بغیر (دَ علم) دَ کیف نه، او دَ الله تعالیٰ دوه لاسونه دی او حدیث (مسلم، نسائی، احمد) کښې ثابت دی چه "کلتا یدیه یمین" او الله تعالیٰ عالم دے په کیفیت دَ مراد بانده (تفسیر سمعانی ص ۵۱/۲).

يَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ، دا رد دے دَ قول دَ هغوی چه مغلولة دے ځکه چه مبسوطتان په مقابل دَ مغلولة کښې دے - او اثبات دَ یدانو دَ الله تعالیٰ په سورة ص ۷۵ کښې دے او اثبات دَ یَدْ په ډیرو آیاتونو او احادیثو کښې دے بلکه په صیغه دَ جمع (ایدی) هم په سورة یٰس ۷۱ کښې شته ابن عبد البر په شرح دَ موطا کښې وئیلی دی چه دَ اهل السنة اجماع ده چه آیاتونه او احادیث دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ بانده اقرار کول او ایمان راوړل او په حقیقت بانده حمل کول بغیر دَ تکیف او تشبیه نه ضروری دی او دَ دے نه انکار کول او تاویل او تشبیه کول مذهب دَ مبتدعینو (جهمیه معتزلو) دے.

امام ابوالحسن الاشعری په کتاب الابانة کښې مذهب دَ سلف صالحینو دغسے لیکلے او غوره کړے دے، او امام ابوحنیفه رحمه الله نه په فقه اکبر او دَ هغے په شرح ص کښې دا مذهب نقل دے چه تاویل دَ دے یه په قدرت سره نشی کیدلے - او دَ دے آیت په تفسیر کښې مفسر علاؤ الدین خازن هم ډیر ښائسته تفصیل کړے دے دَ هغے خلاصه دا ده چه مذهب دَ جمهور سلف او اهل سنت او بعض متکلمینو دا دے چه یَدْ صفت دے دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ نه لکه سمع، بصر او وجه نو په مونږ بانده واجب دے په هغے بانده ایمان راوړل او چه څنګه په کتاب او سنت کښې راغلے دی په هغه طریقے سره جاری کول بغیر دَ کیف او تشبیه او تعطیل نه او دویم مذهب دَ جمهور متکلمینو او اهل تاویل دے چه دَ یَدْ تاویل به کیږی په قدرت او په نعمت سره او په دے کښې ډیر سوال او جواب ئے ذکر کړے دی او په آخر کښې وئیلی دی چه ثابت شوه په دے بیان سره چه یَدْ صفت دَ الله تعالیٰ دے چه څنګه دَ هغه دَ جلال سره لائق دے او دَ انسان سره تشبیه پشان دَ مجسمؤ نشو کولے - يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ

تائید دے دَ مقصد دَ مبسوطتانِ او۲ اشاره ده چه انفاق دَ بخيل حکمت موافق کوی په هغه باندے اعتراض نشی کید لے۔ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا په دے کښ نسبت قرآن ته نسبت سببيه دے لکه په سورة توبه ۱۲۵ او سورة اسراء ۸۲ کښ دی یعنی دوی خو دَ مخکښ نه په طغیان او کفر کښ اخته دی خو هرکله چه دَ قرآن یو یو آیت یا یو یو سورت نازل شی او دوی ته بیان شی نو دوی دَ هغے نه هم انکار او سرکشی اوکړی نو طغیان او کفر ئے په دے طریقے سره زیاتیږی دارنګ چه په کفر باندے کلک وی او ایمان نه راوړی نو دا هم زیادت دے۔ طُغْيَان دَ حد نه تجاوز کول دی او هغه رسوونکی وی کفر ته دَ دے وجے نه وروستو کفرًا ذکر کړو یا دا چه دَ دوئ په ملایانو کښ طغیان زیات شی او په عوامو کښ کفر زیات شی۔ او دَ مخکښ جملے په مناسبت سره اشاره ده چه سرۀ دَ نورو کارونو دَ کفر نه (چه مخکښ ایاتونو کښ ذکر شول) دَ الله تعالیٰ بے ادبی کول دا دلیل دے دَ زیادت دَ طغیان او کفر دَ دوی۔

وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ یعنی په مینځ دَ یهودو او نصاریٰ کښ بُغض او دشمنی ده او دارنګ په مینځ دَ فرقو دَ یهودو کښ او دَ فرقو دَ نصاریٰ کښ هم بغض او دشمنی ده په سبب دَ اختلاف او تفرق دَ دین سره (سوال) په ۵۱ کښ تیر شول چه دَ دوی په مینځ کښ ولایت (دوستانه) دے؟ (جواب) هلته ولایت په معنیٰ دَ مشابهت دے په کارونو دَ کفر کښ، او امداد کول دَ یو بل سره په مقابله دَ مؤمنانو کښ۔ اګرچه کورنئ کښ ئے بغض او عداوت دے۔ (سوال) دا سے جګړے او دشمنئ په دے امت کښ هم شته دے نو صرف دَ یهود او نصاریٰ ذکر ولے اوکړے شو؟ (جواب ۱) دَ هغوی ذکر دَ پاره دَ عبرت دَ مؤمنانو دے چه اے مؤمنانو تاسو دَ هغوی پشان مه کیږئ۔ نو کوم مؤمنانو چه په قرآن او سنت پوره عمل کړے دے نو هغوی دَ دغه تفرق او دشمنئ نه بچ دی۔ (جواب ۲) خازن وئیلی دی چه دوی خو دَ کتاب دَ نزول په وخت کښ دا تفرق او دشمنی جوړ کړے وه او هر چه زمونږ په امت کښ تفرق او دُشمنی ده نو هغه په وخت دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ صحابه او تابعینو او تبع تابعینو په وخت کښ نه وه۔

وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا

او كه چيرې كتاب والو ايمان راوړو او ځان يې بچ كړو د ګناهونو نه خامخا لرې به كړو مونږه

عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٦٥﴾

كه دوى نه بدئ د دوى او خامخا داخل به كړو مونږ دوى جنتونو د نعمتونو ته۔

عَدَاوَةَ ښكاره دشمنى او بَغْضَآءَ پټه د زړه كينه او حسد دے د يَوْمِ الْقِيٰمَةِ نه مراد قُرْبُ (نزدے وخت) د قيامت مراد دے چه وخت د نزول د عيسٰى عليه السّلام دے۔

كُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ اشاره ده لكه چه د دوى په كورنئ كښې دشمنى ده نو د هغې نه زياته يې د مؤمنانو سره دشمنى ده۔

نَارًا لِّلْحَرْبِ نه مراد اسباب د جنګ او مكرونه اوكيدونه د هغې دى۔

اَطْفَاَهَا اللّٰهُ كنايه ده چه الله تعالٰى د دوى شر په څه طريقه باندے دفع كوى مسلمانانو له غلبه وركوى او د دوى په زړونو باندے رعب اچوى۔ اشاره ده چه دوى په اُحد او احزاب او په غزوه بنى نضير او بنى قريظه وغيره واقعاتو كښې د مؤمنانو مخالف هرقِسم كيدونه كړى وو ليكن ناكام اوذليل شول۔ وَيَسْعَوْنَ فِى الْاَرْضِ فَسَادًا د دين اسلام او قرآن او سنت نه منع كول د خلقو او د هغې مقابلے كول او د يهوديت او نصرانيت اشاعت كول دا ټول فساد فى الارض دے ځكه چه په دے سره كفر او شرك غالب كيږى او هغه سبب د خرابئ د دُنيا دے۔

ف روستو د ذكر د علتونو د ترك موالات نه دعوت دے هغوى ته د حق دين (چه ايمان او تقوٰى ده) په طريقه د بشارتِ اخرويه سره۔

اٰمَنُوْا صحيح ايمان مراد دے په الله تعالٰى او په آخرى رسول صلى الله عليه وسلم باندے وَاتَّقَوْا هغه تفريات او علتونه چه مخكښې آياتونو كښې ذكر شول د هغې نه ځان بچ كول۔ سَيِّاٰتِهِمْ ټول ګناهونه صغيره او كبيره او ناكاره صفات مراد دى ځكه چه په ايمان او اسلام سره ټول ګناهونه معاف كيږى لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ كښې دفع د عذاب ته اشاره ده او په لَاَدْخَلْنٰهُمْ كښې حصول د ثواب ته اشاره ده۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ

او كه دے خلقو عمل اوكړو په تورات او په انجيل

وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَكَلُوْا مِنْ

او په هغه كتاب چه نازل كړے شويے دوى ته دَ طرف دَ رب دَ دوى نه خامخا خوراک به كړے وَ دوى

فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ؕ مِنْهُمْ اُمَّةٌ

دَ پورته دَ دوى نه او لاندے دَ خپو دَ دوى نه۔ بعضے دَ دوى نه ډله

مُّقْتَصِدَةٌ ؕ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۶۶﴾

حق پرسته ده۔ او ډير دَ دوى نه بد دى هغه عملونه چه دوى ئے كوى۔

ﷺ دا دعوت په طريقه دَ بشارتِ دنيويه دے او په دے ايت كښ دَ ايمان او تقوىٰ تعبير ئے په اقامت دَ كتبِ الٰهيه سره ذكر كړو ځكه چه اقامت دَ كتبِ الٰهيه كښ ايمان او تقوىٰ داخل ده او ورسره دعوت او اجراء دَ قانونِ الٰهي هم مراد ده او دا روستنے چه دَ اول سره يوځائے شى نو دنيوى انعامات هم حاصليږى۔ دا رنګ په سورة اعراف ﷺ كښ هم دے او په سورة هود ۳ ۵۲ او سورة نوح ۱۱ ۱۲ او سورة جن ۱۶ كښ هم دا مضمون دے۔

اَقَامُوْا الخ مراد دَ اقامت نه تصديق او عمل كول دى پخپله او دا رنګ دَ هغے جارى كول په نورو خلقو كښ په طريقه دَ دعوت او دَ جهاد او دَ تحكيم سره۔ (سوال) هركله چه تورات او انجيل منسوخ دى نو دَ څه وجے نه په دے كښ دَ هغوى دَ اقامت ذكر اوشو؟ (جواب ۱) مراد دَ هغے اقامت دے په وخت دَ نزول او دَ زمانے دَ هغوى كښ او دَ هغے نه روستو په زمانه دَ نزولِ قرآن كښ اقامت صرف دَ قرآن مراد دے۔ (جواب ۲) مراد دَ تورات او انجيل نه ايمانيات او اصول دَ دين دى چه په هغے كښ ايمان په قرآن او په اخرى نبى باندے هم داخل وى او هغه منسوخ نه دى۔

لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ مراد دَ فوق نه وخت په وخت بارانونه دَ خير او بركت دى او مراد دَ تحت نه فصلونه ميوه جات وغيره دى دويم قول دا دے چه فوق نه مراد ميوے دى چه دَ اونو دَ پاسه وى او دَ تحت

يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغْ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن

اے رسول (صلی الله علیه وسلم) اورسوه ته ول هغه چه نازل کړے شوے دے تا ته د طرف

رَّبِّكَ ۖ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُۥ ۚ

د رب ستا نه . او که تا داسے او نکړو نو نه دے رسولے تا هیڅ پیغام د الله تعالی

وَٱللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ ٱلنَّاسِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ

او الله تعالی بچ کوی تا د خلقو نه . یقینا الله تعالی

لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿۶۷﴾ قُلْ

قدرت نه ورکوی (ستا په وژلو) قوم کافرانو ته . ته ورته او وایه

---

نه هغه میوے مراد دی چه په زمکه باندے پرتے وی . مِنْهُمْ أُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ داسے په سورة اعراف ۱۵۹ کښ او په سورة حدید ۲۷ کښ هم دی . اقتصاد (حق پرستی) په عقیده او په عمل کښ دا دے چه افراط او تفریط نه وی لکه چه یهودو په باره د عیسٰی کښ تفریط او نصارٰی افراط کړے وو . او غلو پکښ هم نه وی لکه چه دواړو فریقو غلو په عقیدو او په اعمالو کښ کړے دہ نو اقتصاد د پوره توحید او د پوره اتباع سنت نه عبارت دے .

۶۷ د دے ایت نه دریمه حصّه ده د سورة د اختتام پورے په دیکښ دوه بابونه دی اول باب تر ۸۵ پورے دے ، په دیکښ اول خطاب دے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چه په هغے کښ ترغیب او تیزی ورکول دی په دعوت او تبلیغ باندے او نصارٰی تبلیغ دے د باره د نصاراؤ چه هغه پنځه مسائل دی اوله مسئله په ۶۸ کښ ده او په ۶۹ کښ خلاصه د کتب منزله ده بیا زجر دے بنی اسرائیلو ته په ترک (پریخودلو) د اقامت د کتب منزله باندے په ۷۱ کښ . بیا دویمه مسئله په ۷۲ او دریمه مسئله په ۷۳ کښ ده چه هغه حکم د کفر دے په نصاراؤ باندے . بیا ترغیب دے توبے کولو ته په ۷۴ کښ او استدلال دے په عبدیت د عیسٰی او مریم علیهما السلام باندے په ۷۵ کښ بیا څلورمه مسئله ده په رد د شرک فی العبادة والتصرف په ۷۶ کښ او پنځمه مسئله ده په رد د غلو د عقیدے او د اعمالو کښ

په ۷۷ کښ بیا تخویف دنیوی او اخروی دے سره د ذکر د اسبابو د عذاب نه
په دے ایاتونو کښ بیا بشارت دے په ایمان بالقرآن د ۸۲ نه تر ۸۵ پورے
په دے ایت کښ خطاب دے رسول ته په تاکید د دعوت او تبلیغ سره په
درے طریقو سره اول امر بَلِّغۡ مَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ اشاره ده چه نصاب د تبلیغ
قرآن او سنت دے۔ مراد د دے نه تبلیغ د ټول ما انزل دے په جهر
او په زړه ورتیا سره او په غیر د لحاظ د هیڅ یو تن نه لکه په سورة حجر
۹۴ کښ هم دا مقصد دے او تبلیغ په نبی باندے فرض عین دے او
په امت باندے په مختلف مرتبو او درجاتو سره دے۔ دویمه طریقه
وَإِن لَّمۡ تَفۡعَلۡ نفی د دغه قیوداتو مراد ده یعنی که تبلیغ دے او نکړو
د ټول ما انزل (بعض دِ پریخودلو) او په جهر سره دے او نکړو (بعض
دِ چاته خاص کړو) او په جراءت سره دِ او نکړو یره دے او کړله د خلقو
ته او لحاظ دِ دے د بعض خلقو اوکړونو فَمَا بَلَّغۡتَ رِسَالَتَهُۥ یعنی ستا رسالت
قبول نه دے مسئله دے صحیح نه ده رسولے۔
سمعانی وائی چه دا دلیل دے چه یوه مسئله بالفرض نبی پریخودلے وی
نو د هغے د پریخودلو جرم او د ټول دین پریخودلو جرم یوشان دے
او قرطبی وائی دا تادیب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او نورو علماؤ
ته چه د ما انزل (شریعت) نه په هیڅ مسئله نه پټه وی۔ او حدیث د
بخاری او مسلم کښ د عائشة رضی الله عنها نه نقل دی که چا اُوئیل چه
نبی صلی الله علیه وسلم د ما انزل نه څه خیز پټ کړے دے نو دغه
کس په الله تعالی باندے ډیر دروغ جوړ کړل په دلیل د دے ایت
سره۔ او قرطبی وئیلے دی دا رد دے په روافضو (الله تعالی دِ دوی او
شرموی) دوی وائی چه نبی صلی الله علیه وسلم بعض د وحی نه (تقیت)
پټ ساتلے دی کله وائی چه بعض علمونه ئے علی رضی الله عنه ته خاص
بیان کړے دی کله وائی چه د قرآن لس پارے په پاره د خلافت د علی کښ
وے هغه ئے پټے کړے دی (لعنة الله علی الکاذبین)۔
نو دارنګ په دے کښ رد دے په مبتدعینو باندے د هغوی خیال
دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلم دین پوره نه دے رارسولے د دے
دپاره نه هغوی پکښ د خپل خواهش مطابق اضافے کوی او بدعات پیدا کوی

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَسۡتُمۡ عَلَىٰ شَيۡءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُواْ

اے کتاب والو! نه یئ تاسو په هیڅ دین باندے تر دے چه عمل اوکړئ

ٱلتَّوۡرَىٰةَ وَٱلۡإِنجِيلَ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكُم مِّن

په تورات او په انجیل او په هغه کتاب چه نازل شوے دے تاسو ته دَ طرف

رَّبِّكُمۡۗ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرٗا مِّنۡهُم مَّآ أُنزِلَ

دَ رب ستاسو نه. او خامخا زیاتوی ډیرو لره دَ دوی نه هغه کتاب چه نازل کړے شوے

(سوال) " وان لم تفعل فما بلغت رسالته " دَ فعل نه مراد تبلیغ دے نو دا شرط او جزا خو یو څیز دے یعنی که چرے تبلیغ دے اونکړو نو تبلیغ دے نه دے کړے؟ (جواب) دَ مخکښ نه معلومه شوه په وَان لم تفعل نفی دَ تبلیغ مقید کړے یعنی "نول او ښکاره او په جراءت سره بے لحاظه" نو په نفی دَ بعض خاص شرعی سره نفی دَ عام راتلے شی یعنی دا باقی هم پیشان دَ نیشت دی.

وَٱللَّهُ يَعۡصِمُكَ دا دریمه طریقه ده دَ تاکید یعنی په تبلیغ کښ هیڅ یره په تا باندے نیشته ځکه چه الله تعالیٰ ستا حفاظت کوی.

(سوال) نبی صلّی الله علیه وسلّم ته په مکه کښ او په اُحد کښ او په نورو اوقاتو کښ خو قِسم قِسم اذیتونه رسیدلے دی نو دا وعده څنګه ده.

(جواب ۱) سورة مائده دَ دغه اذیتونو نه روستو نازل شویده.

(جواب ۲) دلته مراد حفاظت دے دَ قتل کولو نه اشاره ده چه په تبلیغ کښ هر قسم اذیتونه تیرول ضروری دی هاں دَ قتل نه ځان بچ کولو دَپاره رخصت شته دے. إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡكَٰفِرِينَ اشاره ده چه ستا په ذمه باندے بلاغ دے او هدایت خو دَ الله تعالیٰ په لاس کښ دے او دَ کافرین نه مراد عنادیان او ضدیان دی لکه یهود او نصاریٰ یا مراد دَ هدایت نه طاقت ورکول دَ قتل کولو دَ نبی صلی الله علیه وسلّم دے او کافرین نه مراد عام دے یعنی الله تعالیٰ دوی لره طاقت او امداد نه ورکوی په قتل کولو دَ دے نبی صلّی الله علیه وسلّم باندے.

إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۚ فَلَا تَأْسَ

تاته ستا د رب د طرف نه سرکشي او کفر ، پس مه خفه کیږه

عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٨﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په قوم کافرانو باندے - یقینًا هغه کسان چه مؤمنان دی

وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِـُٔوْنَ وَالنَّصٰرٰى

او هغه کسان چه یهودیان دی او صابیان دی او نصارٰی دی

مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ

چا چه ایمان راوړو په الله تعالٰی او په ورځ د اخرت او عمل ئے اوکړو

صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

په طریقه د پیغمبر نو نه به وی هیڅ یره په دوی باندے او نه به دوی

سـ۶۸ دا اوله مسئله ده د مسائلو تبلیغیو نه او تشریح ده د بَلِّغْ - لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ مراد د څیز نه هغه دے چه هغے ته اعتبار ورکیدے شی په دین کښ او فائده مند وی نو د ډیرے مبالغے د وجے د مطلق شیئیت (څیز توب) نه ئے اوباسی. حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ اه محکښ د اقامت فائده ذکر شویوه او دلته زورته په عدم اقامت باندے ده او په اقامت د ټولو کتابونو کښ توحید او ایمان په اخری رسول او په قرآن باندے داخل دے. امام بخاری د سفیان رح نه نقل کړے دی چه نیشته په قرآن کښ د دے ایت نه سخت په ما باندے. اشاره ده چه په دے خطاب کښ د دے امت علماء هم داخل دی. وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ اه په سـ۶۴ کښ د کثیر نه صرف یهودیان مراد وو او دلته ټول اهل کتاب مراد دی یله دا چه هلته طغیان او کفر په معنٰی د بے ادبئ د الله تعالٰی وو او دلته طغیان او کفر نه تحریف او کتمان په کتاب د الله تعالٰی کښ مراد دے یعنی دوی د اقامت په ځائے باندے کتمان، تحریف او تغییر قائموی. فَلَا تَأْسَ اه یعنی د بیان او دعوت نه روستو هم داخلق نه منی بلکه نور کفر او طغیان هم کوی نو د دوی په کفر باندے خفګان مکوه یعنی د دے کفر د وجے نه په دوی باندے عذاب

يَحْزَنُوْنَ ﴿٦٩﴾ لَقَدْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ

غمژن کیږي - یقینًا اخستے دے مونږه پخله وعده د بنی

اِسْرَآءِيْلَ وَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ رُسُلًا ؕ كُلَّمَا

اسرائیلو نه او لیږلے دی مونږ دوی ته رسولان - هر وخت

او هلاکت راځي په هغے باندے خفګان نه بنکاره کوه -

س۶۹ ربط دَ ایت دا دے چه مخکښ دَ اقامة الکتب عظمة شان ذکر شو اوس دَ هغے تفسیر کوی په ایمان صحیح او عمل صالح سره او وائي چه دا سبب دَ نجات دے - حاصل دَ ایت دا دے چه اقامة دَ کتبِ الٰهیه صِرف دَ نومونو او نسبتونو عبارت نه دے چه څوک وائي زه منسوب یم موسٰی علیه السلام ته او څوک وائي زه منسوب یم یحیٰی علیه السّلام ته او څوک وائي زه منسوب یم عیسٰی علیه السّلام ته او څوک وائي زه منسوب یم اخری نبی ته دا نسبتونه په هله فائده ورکوی چه ایمان او عمل صالح ورسره ملګرے شی۔ (سوال) پکار دا ده چه الصابئین یې ویلے وے ځکه چه عطف دے په الذین امنوا او هغه اسم دے او اسم دَاِنَّ په محل دَ نصب کښ دے ؟

(جواب ۱) دا عطف دے په محل (بعیده) دَ اسم باندے او هغه رفع ده ځکه چه په مینځ کښ فاصله راغلے ده په والذین هادوا سره او دا قول دَ کسائي او دَ کوفیانو دے - (جواب ۲) دا دے چه دا خبر دَ مبتدا محذوف دے په مینځ دَ اوله جمله کښ یعنی والصابئون کذلك او په عبارت کښ په اصل کښ تقدیم او تاخیر دے یعنی دَ خبر دَ اِنَّ نه روستو دا جمله ده - (سوال) په تغییر دَ دے لفظ (په رفع سره راوړل) کښ څه حکمت دے ؟ (جواب) هرکله چه صابئون په کفر کښ دَ ټولونه سخت وو ځکه چه دوی ټول اسمانی دینونه یې پریخودلے وو او هغوی ته بخنه کوی په شرط دَ ایمان او عمل صالح سره نو یهود او نصارٰی ته خو په طریقے اولی سره بخنه کوی - (سوال) په سورة بقرة س۶۲ کښ دا لفظ یې روستو ذکر کړے دے او دلته په مینځ کښ دے ؟ (جواب) هرکله چه صابئون دَ یهود او نصارٰی په مینځ کښ پیدا شوی او خپل نسبت زبور ته کوی نو په سورة بقرة کښ اول ذکر دَ طرفینو اوشو

جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُهُمْ

| چه راغلئ دوی ته | رسول | په هغه څیز چه نه خوښوله | نفسونو دَ دوی |
|---|---|---|---|

فَرِيْقًا كَذَّبُوْا وَفَرِيْقًا يَّقْتُلُوْنَ ﴿٧٠﴾

| یو ډله دَ هغوی (پیغمبرانو) ئې دروغژن کړو او یله ډله ئې | اَدوژله - |
|---|---|

نوروستو ئې اوسط ذکر کړو او دلته ئې په اصل ترتیب سره ذکر کړل.
**سوال.** په سورة حج ١٧ کښې خو ورسره المجوس او الذین اشرکوا هم ذکر دی او په سورة بقرة او په دے سورت کښې نه دی ذکر کړی ؟
**جواب.** په دے دواړه سورتونو کښې صرف دَ هغه ډلو ذکر مقصد دے چه هغوی خپل نسبت یو آسمانی کتاب ته کوی نو دَ هغوی دَ نجات طریقه ئې خودلے ده او په سورة حج کښې صرف دَ فرقو ذکر کول مقصد دی او پوره اقسام دَ کافرانو ئې (په مقابله دَ مؤمنانو کښې) ذکر کړے دی او تفصیل دَ صابئون په تفسیر سورة بقره کښې ذکر دے. مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ اه پدے ایت کښې دَ اعراب په لحاظ سره دوه قولونه دی اول دا چه دَ اِنَّ دَ پاره الذین اٰمنوا اسم دے او والذین هادوا عطف دے او من اٰمن اه خبر دے او ضمیر راجع (په منهم) سره پټ دے. دویم قول دا دے چه من اٰمن اه بدل دے دَ الذین هادوا نه او فلا خوف اه خبر دے بیا په اول قول مراد دَ الذین اٰمنوا نه صرف دعوی دار دَ ایمان دی لکه منافقان او بیا په دویم قول سره مطلق مؤمنان مراد دی. فَلَا خَوْفٌ اه دا په جنت کښې مراد دے یعنی دَ عذاب نه به خوف نه وی او نه به په دنیا پسے غم او افسوس کوی یا مراد دا چه خوف به نه وی دَ گناهونو سابقو نه او نه به افسوس نه کوی په فوت کیدلو دَ نیک عملونو په حال دَ کفر کښې ځکه چه دَ دوی سیئات په حسناتو سره بدل کړے شول دا قول مهائمی په تبصیر الرحمان کښې لیکلے دے.
٧٠ دا جواب دَ یو سوال دے یعنی اهل کتاب دعوٰی کوی چه مونږ اقامة الکتب کړے دے ځکه چه ایمان او عمل صالح لرو نو په دے ایت کښې دَ هغې جواب ته اشاره ده چه تاسو اقامة الکتب او ایمان او عمل صالح نه دے کړے بلکه تاسو دَ میثاق الٰهی مخالفت او تکذیب او قتل دَ

وَحَسِبُوْٓا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَعَمُوْا وَصَمُّوْا

او گمان او کړ دوی چه نیشته (به موتږ باندې) څه عذاب (په دې عمل زموږ سره) نو ړانده شول او کاڼه شول دوی

ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا وَصَمُّوْا

بیا مهربانی او کړه الله تعالیٰ په دوی باندې بیا ړانده شول او کاڼه شول

كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ ۭ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۷۱﴾

ډیر د دوی نه . نو الله تعالیٰ لیدونکے دے هغه عملونو لره چه دوی ئې کوی.

رسولانو کړے دے نو څه رنګه دعوی د ایمان او عمل صالح کوی ځکه چه تکذیب او قتل د نبی خو یقیناً کفر دے . مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ او د هغې ذکر په سورة بقره سـ۶۳ سـ۸۳ سـ۸۴ کښ تیر شوے دے . وَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ رُسُلًا رسولان ئې د دے د پاره لیږلی دی چه دوی ته میثاق وریاد کړی كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ دا زجر دے د بنی اسرائیلو په نقضِ میثاق سره . بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُهُمْ احکام شرعیه خو همیشه د خواهشاتو نفسانیو نه خلاف وی او مشتمل وی په توحید او سنت باندې . يَقْتُلُوْنَ دا صریح دے چه بنی اسرائیلو ډیر انبیاء علیهم السّلام قتل کړے دی او فعل مضارع ئې د دے وجے نه ذکر کړے دے چه اوس هم اراده لری چه قتل کړی آخری نبی لره . فَرِيْقًا په دواړو ځایونو کښ مفعول مقدم دے د پاره د فعل . دا سے ایت په سورة بقره سـ۸۷ کښ هم دے په سورة بقره کښ مقصد ذکر کول د خباثتو د یهودیانو وو نو د تاکید د پاره ئې قَفَّيْنَا ذکر کړو او دلته ارسلنا دے . او د تفصیل د خبائث د هغوی د پاره د عیسی علیه السلام ذکر هم شوے وو او دلته تاکید مقصد نه دے صرف اِخبار د بے لوظئ د هغوی مقصد دے .

سـ۷۱ ربط دا دے چه دغه مرض د تکذیب په دوی کښ همیشه د پاره باقی پاتے شو او سبب د هغے گمان عدم نزول د عذاب وو . وَحَسِبُوْٓا په عطف کښ په ماقبل کذبوا باندے اشاره ده استمرار د دے مرض ته په دوی کښ یعنی دوی چه تکذیب او قتل د انبیاؤ کوؤ نو دوی دا کار جائز گنړلو او وئیل ئې چه دا سبب د عذاب نه دے . اَنْ لَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ په معنیٰ د عذاب او بلاء او تکون د کان وجودی په معنیٰ دے صرف

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ

یقیناً کفر کړیدې هغه کسانو چه وائي چه یقیناً الله تعالیٰ هغه خو مسیح

ابْنُ مَرْيَمَ ۖ وَقَالَ الْمَسِيحُ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ

ځوئې دَ مریم دے. او وئیلې دی مسیح اے بنی اسرائیلو !

اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ۖ إِنَّهُ مَنْ يُشْرِكْ

بندګی کوئ دَ الله تعالیٰ چه رب ځما او رب ستاسو دے. یقیناً چاچه شرک اوکړو

بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ

دَ الله تعالیٰ سره نو یقیناً بند کړیدے الله تعالیٰ په هغه باندے جنت او ځائے دَ ده

فاعل غواړی او اسباب دَ دے ګمان ډیر وو اول دا چه دوی وئیل نَحْنُ أَبْنَاءُ اللَّهِ وَأَحِبَّاؤُهُ لکه چه په دے سورت کښ تیر شویدی. دویم دَ دوی عقیده وه چه هر رسول دَ دوی دَ شرع نه لرِ خلاف بل حکم راوړی نو هغه دَ دوی په نیز واجب القتل وو. دریم دوی عقیده لرله چه زمونږ اباؤ اجداد به زمونږ نه عذابونه دفع کوی (خازن). فَعَمُوا وَصَمُّوا ړوند والے او کوڼ والے دَ حق نه مراد دے یعنی حق ته کتل او فکر کول او حق اوریدل دوی پریخودل ځکه خو دا چه ځان ځلے شوے ګڼړی نو هغه دَ الله تعالیٰ کتاب ته غوږ نه ږدی.
ثُمَّ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ، ابوالسعود په تفسیر کښ وئیلے دی چه دَ دے توبے نسبت ئې دوی ته نه دے کړے اشاره ده چه دوی توبه نه وه کړے بلکه الله تعالیٰ دَ تجدید دَ دین دَ پاره نور رسولان را اولیږل یا دا چه دَ دوی توبه پښان دَ عدم توبه وه. ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِّنْهُمْ کثیر ئې ځکه اوئیلو چه بعضو دَ دوی نه ایمان راوړے دے په آخری نبی صلی الله علیه وسلم باندے او کثیر لفظ بدل دے دَ ضمیر دَ عموا وصموا نه یا خبر دے دَ مبتدا محذوف یعنی هُمْ كَثِيرٌ او دا ترکیب پښان دَ أَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا انبیاء ۳ دے. بعض مفسرینو دَ اول عموا وصموا سره عبادة دَ عجل لیکلے دے او دَ دویم سره سوال دَ رویت دَ الله تعالیٰ لیکن دا قول صحیح نه دے بلکه دا هغه تاریخ دَ بنی اسرائیلو ته اشاره ده چه روستو

النَّارُ ۖ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿٧٢﴾ لَقَدْ

اور دے۔ او نيشته ظالمانو لره هيڅ مددګار۔ يقيناً

كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ

کفر کړيدے هغه کسانو چه وائي چه بيشکه الله تعالىٰ دريم دے د دريو نه

دَ موسىٰ عليه السلام نه وؤ چه دوی ته ډير رسولان راليږلے شوی وؤ لکه
چه مخکښ آيت کښ تير شول او دوی به قتل کول او انکار به ئے کوؤ او بيا
په يل رسول الله تعالىٰ رااوليږلو او دوی به قتل يا انکار کوؤ۔
او قفال وئيلي دی چه دَ دے آيت تفسير په سورة بنی اسرائيل کښ دَ سک
نه تر سک پورے موجود دے۔
۷۲ دا دويمه مسئله تبليغيه ده په بارة دَ کفر دَ نصاراؤ کښ او مقصد پکښ
هغوی ته دعوت دَ توحيد دے په قول دَ عيسىٰ عليه السلام سره۔ او په
دے کښ ذکر دَ علي او دَ صمم دَ دوی دے مخکښ دَ بعثت دَ آخری
رسول نه۔ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ دا سے په ۷۲ کښ هم ذکر شول
هلته رد کول وؤ په عقيده دَ شرك فی التصرف باندے او دلته رد دے
په عقيده دَ شرک فی العبادة باندے ځکه ورپسے قول دَ عيسىٰ عليه
السلام په رد دَ شرك فی العبادة کښ ذکر کوی۔ او دا قول دَ يعقوبيه
او ملکانيه وؤ (دا دواړه ډلے دے دَ نصاراؤ) په دے وجه سره چه دوی
وئيل چه الله تعالىٰ حلول کړے دے په بدن دَ عيسىٰ کښ نو عبادت
دَ عيسىٰ عبادت دَ الله تعالىٰ دے او هر کله چه دوی دا نه دی وئيلي چه
عيسىٰ مستقل اِله دے دَ دے وجے نه ئے داسے او نه وئيل چه "اِنَّ
الْمَسِيْحَ بْنَ مريم هو الله"۔ وَقَالَ الْمَسِيْحُ الخ دا دليل نقلي دے دَ عيسىٰ
عليه السلام نه په رد دَ شرك فی العبادة باندے۔ رَبِّیْ وَرَبَّكُمْ په دے عطف
کښ اشارة ده رد دَ عقيدے دَ حلول ته۔ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ دا هم داخل دے په قول
دَ عيسىٰ عليه السلام کښ مقصد ئے دا دے چه شرك مطلقاً که هر قسم وی
نو سبب دَ حرمان دَ جنت او دَ دخول ابدی دَ جهنم دے او نصاریٰ په دے شرک کښ
اخته دی۔ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ رد دے په عقيده دَ شفاعت قهريه
(شرکيه) باندے او مراد دَ ظالمين نه مشرکان دی۔

وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۭ وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا

او نیشته حقدار د بندګئ سیوا د یو ذات (الله) نه۔ او که منع نه شول دوی

عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

د هغه خبرو نه چه دوی یې کوی، خامخا جوخت به شي په کافرانو پورې

مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۷۳﴾ اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ

د دوی نه عذاب درد ناک۔ ایا نو توبه نه او باسئ (رجوع نه کوی)

۷۳ دا دریمه مسئله تبلیغیه ده رد دے په بله عقیده د نصارٰی باندے او دا عقیده د نسطوریه وه او ابن جریر وئیلي دی چه ټولے ډلے "ملکیه، یعقوبیه او نسطوریه" پدے باندے قول کوی او جمال الدین په تفسیر قاسمی کښ وئیلي دی چه دا ډله (کولی ری دینس) وه هغوی وائي الهه درے دی الله، عیسٰی او مریم۔ او بله ډله ده چه هغوی ته مریمیّن وئیلے شی او دا رنګ بله ډله بربرانیون دی او نصارٰی د نجران هم د دے تثلیث قائل وؤ۔ د عقیدے د تثلیث په باره کښ د تعبیراتو اختلاف دے، یو تعبیر دا دے چه دوی وائي چه اب (پلار) الله دے او ابن الله دے او روح الله دے او مجموعه یو الله دے لکه شمس (نمر) کښ درے اوصاف دی شعاع، حرارت او قرص (ککورے د نمر)۔ دوئم تعبیر دا دے چه اِلٰه جوهر واحد دے او په هغے کښ درے اقانیم دي یو اقنوم د اب دوئم اقنوم د ابن او بل اقنوم د هغه کلمے چه د اب نه ابن ته منتقل شوه۔ دریم تعبیر "اب، ابن او روح القدس"۔ څلورم تعبیر "الله، عیسٰی او مریم"۔ او ابن کثیر وئیلي دی چه دا قول ظاهر د قرآن سره برابر دے په دلیل د دے، سورة ۱۱۶ سره۔ او قرطبی وئیلي دی چه دوی دا سے تعبیر نه کوی چه آله درے دی لیکن دا معنیٰ د قول او د مذهب د هغوی ده او هغوی یې التزام کوی۔ ثالث ثلثة (سوال) اهل نحو اتفاق کړیدے چه دا لفظ خو دلالت کوی چه د دریو عدد دی نو یو ته پکښ ثالث ثلثه وئیلے شی و صفیت د ثالث او رابع پکښ مقصد نه دے او جامی په شرح د کافیه کښ اعتبار د معنٰی د وصفیت ذکر کړے دے نو هغه علامه عبد الحکیم رد کړے دے نو

إِلَى اللَّهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُ ط وَاللَّهُ غَفُورٌ

الله تعالیٰ ته او چه بخنه او غواړئ د هغه نه (په ژبه سره) او الله تعالیٰ بخنه کوونکے

رَّحِيمٌ ﴿٧٤﴾ مَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ ج

رحم کوونکے دے. نه دے مسیح ځوئے د مریم مګر رسول دے

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ط وَأُمُّهُ

یقینًا تیر شوي دي مخکښ د دهٔ نه ډیر رسولان . او مور د دهٔ

صِدِّيقَةٌ ط كَانَا يَأْكُلَانِ الطَّعَامَ ط اُنْظُرْ

ډیره رشتینې وه . دوه دواړه چه خوړلو یې خوراک . اوګوره

کله چه دوه کسان وی او الله تعالیٰ خو ورسره دے نو داسے وئیل خو جائز دی چه ثالث ثلثه لکه په حدیث کښ دی ما ظنك باثنين الله ثالثهما.

نو دلته ولے دے ته کلمه د کفر اوئیلے شوه ؟ (جواب) نیشاپوری او خازن وغیره وئیلے دی چه مراد د دے قول نه ثالث اٰلِهة ثلثة دے ځکه چه د دوی عقیده په دے شان ده چه دوی به هر یو د دے دریو ته اِلٰه وئیلو هسے شمار یے نه کوو.

وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّآ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ دا صریح رد دے په قول د هغوی باندے ځکه هغوی اګر چه الله واحد وئیلو لیکن نورئے هم موصوف کول په وصف د اِلٰه سره. وَإِنْ لَّمْ يَنْتَهُوا الخ دا تخویف اخروی دے.

لَيَمَسَّنَّ مس په معنیٰ د اصابت دےاو په معنیٰ د الصاق (جوخت) کیدلو دے. په مِنْهُمْ کښ هغه مراد دی چه د دے عقیدے نه یے توبه نه وی کړے ځکه چه د الله تعالیٰ په علم کښ ده چه بعض د دوی به توبه کوی.

سے دا ترغیب دے توبه کولو ته د دواړه عقیدو نه او ترغیب په لفظ د زورنے سره دے. او خازن وئیلے دی استفهام په معنیٰ د امر سره دے توبه په معنیٰ د رجوع الے التوحید دهٔ او استغفار په معنیٰ د پریخودلو د شرک او کفر دےیا توبه په زړه سره ده او استغفار په ژبه باندے دے.

كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ

څه رنګ بیانوو دوی ته دلیلونه (دَ توحید) بیا اوګوره

اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۷۵﴾ قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ

څه رنګ اوړېدلے شي دوی (دَ توحید ته) ـ ته ورته اووایه ، آیا بندګي کوئ تاسو

۷۵ دا دلیل دے دَ پاره دَ نفي دَ الوهیت دَ عیسٰی علیه السّلام او دَ مورِ دَ هغه ته او دا علت دے دَ پاره دَ تو یه کولو او دا مشتمل دے په دیرو دلیلونو باندے اول دا چه ابن مریم دے نو ابنیة او مور کیدل خو منافي دي دَ الوهیت سره دویم دا چه رسول دے او رسالت منافي دے دَ الوهیة سره او دا حصر اضافي دے یعنی په دهٔ کښ وصف دَ رسالت دے صرف، وصف دَ الوهیت په کښ نیشته ـ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ دا دریم دلیل دے په دوه توجیهو سره اول دا چه مخکښ دَ دهٔ نه رسولان تیر شوي دي او دَ هغوی نه هم عجائبات او معجزات دَ عیسٰی علیه السلام پشان ښکاره شوي دي نو که دغه عجائبات او معجزات سبب وی دَ الوهیت نو بیا خو به ټول رسولان اِلٰهه وی۔ دویمه توجیه دا چه مخکښ رسولان تیر شوي دي یعنی مړه شوي دي نو دا عیسٰی علیه السلام به هم دَ هغوی پشان مړ کیږي نو اِلٰه نشي کیدلے۔ وَ اُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ دا دلیل دے دَ نفي دَ الوهیت دَ مریم نه یعنی صدیقیت خو منافي دے دَ الوهیت سره ځکه چه صدیقین خو ډیر خلق شته دے پکار ده چه ټول دِ اِلٰهه شي ـ او دَ دے وجے نه صادقة ئینه دے وئیلے ځکه چه صدق خو صفت دَ اِلٰه کیدے شي او صدیقیت صفت دَ عبدیت دے۔ تنبیه صِدِّيْقَةٌ دَ دے تفسیر په سورة تحریم ۱۲ کښ دے دا مبالغه ده په تصدیق کښ یعنی تصدیق دَ رسولانو او دَ کلماتِ اِلٰهیو ئے علماً، عملاً ، قولاً او فعلاً ئے کړے دے او دَ مقام دَ صدیقیت نه بره صرف مقام دَ نبوت دے په انسانانو کښ۔

دَ دے وجے نه اهلِ علمو استدلال کړے دے چه مریم پیغمبره نه وه (لکه چه ابن حزم وئیلے دي چه ښځه پیغمبره کیدے شي) نو ابوالحسن اشعري په دے باندے اجماع ذکر کړے ده چه ښځه پیغمبره نشي کیدلے طریقه دَ استدلال دا ده چه په دے آیت کښ الله تعالٰی اعلٰی

# دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا

| سیوا دَ الله تعالیٰ نه دَهغه چاچه اختیار نه لري تاسو لره دَ ضرر |
|---|

مرتبه دَ انسان ذکر کوي دَپاره دَ نفي دَ الوهیت نو دَ عیسیٰ علیه السلام مرتبه ئې خو دَ رسالت ذکر کړه نو که مریم رسالت لرلے نو دَ هغې به ئې هم دغه صفت ذکر کړے وے او چه پیغمبر دَ پاره صدیقیت صفت کوم ځائے ذکر دے هلته ورسره نبیًا هم ذکر دے لکه ذکر دَ ابراهیم او ادریس علیهما السلام په سورة مریم کښ۔ او که اوئیلے شي چه الله تعالیٰ دَ مریم سره خطاب کړے دے نو دا دلیل دَ نبوت دے نو جواب دا دے چه معنیٰ شرعي دَ نبوت صِرف خطاب الٰهي نه دے بلکه دعوت او تبلیغ کول دي او هغه دَ زنانه دَ شان نه لرے خبره ده۔ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ دا پنځم دلیل مشترك دے دَ عیسیٰ او دَ مریم په باره کښ دَپاره دَ رد دَ الوهیت دَ هغوي۔ او دا واضح دلیل دے چه څوک محتاج وي خوراک ته نو هغه بیا هر څیز ته محتاج ئے اِلٰه نشي کیدے او دا دلیل شامل دے ټولو انسانانو ته که پیغمبران وي او که اولیاء او که پیران وغیره وي ټول محتاج دي خوراک ته نو په هغوي کښ صفت دَ الوهیت نشي کیدلے۔

تنبیه په استدلال کښ ئې دَ رسالت او صدیقیت نه انتقال اوکړو اکل الطعام ته دا انتقال دے دَ واضح دلیل نه اوضح ته لکه چه دا طریقه ده په ذکر دَ دلائلو کښ۔ او دا هم کیدیشي چه اول دَ دوي عظمتِ شان ئې ذکر کړو نو روستو ئې صفت دَ بشریت ذکر کړو اشاره ده چه بشریت منافي دَ رسالت او صدیقیت سره نه دے۔

اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ اشاره ده چه پدے ایت کښ ډیر دلیلونه ذکر دي دَ پاره دَ توحید او روستنے دلیل مشتمل دے په ډیرو دلیلونو باندے ثُمَّ انْظُرْ كَيْفَ اه امر دَ انظر دوه کرته دَ پاره دَ مبالغې دے په تعجیب کښ او لفظ دَ ثُمَّ دَ پاره دَ دے دے چه په دواړه تعجیبونو کښ ډیر فرق دے یو طرف ته ښکاره عجیبه دلیلونه دَ عبدیت دَ عیسیٰ او مریم علیهما السلام دي او بل طرف ته اوړیدل دَ حق نه په درغو او شبهاتو سره دا دَ عقل نه ډیره لرے طریقه ده۔

وَّلَا نَفْعًا ۚ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٧٦﴾

او نه دَ نفع - او الله تعالیٰ خاص هغه هرڅه اوری او په هرڅه پوهه دے۔

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ

ته ورته اووايه اے اهل کتابو ! زياتے مه کوئ په دين ستاسو کښ

غَيْرَ الْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ

بغير دَ حق نه او تابعداری مه کوئ دَ خواهشاتو دَ هغه قوم

قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا

چه ګمراه شويدی مخکښ ستاسو نه او بے لارے کړيدی دوی ډيرو خلقو لره

سلک دا خلورمه مسئله تبليغيه ده په رد دَ شرک فی العبادة سره او دا تفريع ده په رد دَ الوهيت بانديے دَ عيسیٰ او دَ مريم عليهما السّلام نه۔ او دا خطاب اګرچه عام دے بټولو مشرکينو ته ليکن مقصد پکښ رد دے په نصاریٰ بانديے۔ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا ضرر يے مخکښ ذکر کړو ځکه دفع دَ ضرر اول وی دَ نفع حاصلولو نه۔ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا دواړه نکرے په سياق دَ نفی کښ په ډير عموم بانديے دلالت کوی او دا دليل دے په رد دَ شرک فی التصرف باندے۔ مَا نه مراد عيسیٰ او مريم عليهما السّلام دی۔

سوال۔ دوی خو ذوی العقول دی او مَا لفظ خو دَ پاره دَ غير ذوی العقول دے حقيقتًا ؟

جواب ۱۔ شعرانی دَ سيبويه نه نقل کړے دے چه لفظ دَ مَا حقيقت مشترکه دے په مينځ دَ ذوی العقول او غير ذوی العقول کښ۔

جواب ۲۔ په لفظ مَا سره اشاره ده چه ذوی العقول هم په نفی دَ ضرر او نفع کښ پشان دَ غير ذوی العقول دی۔

وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ قرطبی وئيلے دی چه اشاره ده چه عيسیٰ عليه السلام بانديے داسے احوال راغلی دی چه نه اوری او نه وينی او نه پوهه لری او نه نفع او ضرر ورکولے شی نو څه رنګ الٰه کيدے شی او دَ غه صفتونه خو صرف دَ الله تعالیٰ دی۔

وَّضَلُّوۡا عَنۡ سَوَآءِ السَّبِيۡلِ ﴿۷۷﴾ لُعِنَ

او بے لارے پاتے شوی دی دَ برابر لارے نه ( پس دَ علم نه ) - لعنت کړے شو يدے

۷۷ په دے کښ پنځمه مسئله تبليغيه ده دَ پاره دَ رد دَ غلو دَ نصاراؤ په شرک او بدعت کولو سره - قُلۡ يٰۤاَهۡلَ الۡكِتٰبِ ، اګرچه دا وصف عام دے لیکن ظاهر دا ده چه دا خطاب دے نصارٰی ته - لَا تَغۡلُوۡا فِىۡ دِيۡنِكُمۡ دا سے په سورة نساء ۱۷۱ کښ هم تیر شوے دے فرق دا دے چه هغه خطاب یهود او نصارٰی دواړو ته دے او په دے ایت کښ خطاب صرف نصارٰی ته دے او غلو په اصل کښ تجاوز کول دی دَ حد نه او دَ هغے دوه استعمالونه دی یو عام بل خاص، عام دا دے چه تجاوز دَ حد نه که په زیاتے کولو سره وی یا په کمی کولو سره وی یعنی افراط کول یا تفریط کول په دے معنیٰ سره په سورة نساء ۱۷۱ کښ مراد دے دَ دے وجے نه هلته یې روستو شان دَ عیسٰی علیه السلام ذکر کړے دے - او خاص دا چه تجاوز کول په طریقه دَ زیاتی کولو سره نو دلته دا معنیٰ مراد ده او خطاب دے نصارٰی ته - دَ دے وجے نه دلته مفسرینو معنیٰ کړے ده " چه بدعت مه کوئ " ( فتح البیان دَ قتاده نه ) -
او نصاراؤ غلو په باره دَ عیسٰی علیه السلام کښ کړے ده چه دَ بشریت نه یې اوچت ګنړلے دے په الوهیت او ابنیت دَ الله تعالیٰ سره او دا رنګ دِ نصاراؤ په دینِ عیسٰی کښ ډیر تحلیل تحریم دَ ځان نه جوړ کړے دی - فِىۡ دِيۡنِكُمۡ په دے کښ اشاره ده چه غلو دوه قسمه ده یو غلو ده لِلدین او بل فی الدین کشاف او نیشاپوری دَ دے نه تعبیر کړے دے په غلو حق او غلو باطل سره - دا رنګ دَ دینه تعبیر کیدلے شی په بدعت للدین او بدعت فی الدین یا بدعت فی الوسائل او بدعت فی المقاصد سره نو اول قِسم هغه دے چه دَ دین دَ ترقیٔ دَ پاره وسائل جوړ کړی هغه وسائلو ته دین نه وائي لکه علم دَ نحو او صرف وغیره او طریقه دَ مدارسو او تصنیف و تألیف او دا رنګ محراب دَ مسجد او تسبیح دَ پاره دَ ذکرِ مشروع نو په دے قِسم کښ منع نیشته په دے شرط چه سنت ته نقصان نه ورکوی او التزام یې نه کوی -

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

په هغه کسانو چه کفر ئے کړیدے د بنی اسرائیلو نه

عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ؕ

په ژبه د داؤد (علیه السّلام) او د عیسٰی (علیه السّلام) ځوئے د مریم۔

او دویم قسم ته بدعتِ شرعیه هم وئیلے شی هغه دا چه یو څیز په دین کښ داخل کړی که عقیده کښ وی یا په عمل کښ او که نفسِ څیز وی یا کیفیت او مقدار او وقت وی او دے ته دین اووائی نو دا بدعتِ ضلالت دے په دے ایت کښ دا مراد دے په قرینه د فِيْ دِيْنِكُمْ سره۔ غَيْرَ الْحَقِّ دا صفت دے د موصوف محذوف او مفعول مطلق دے د پاره د تقیید (غلوا غیرالحق یعنی الباطل) او په دے سره د غلو حق نه احترازکوی چه هغه جائز دے لکه چه مخکښ تیر شول۔ یا حال د فاعل د ضمیر نه یعنی مُتَجَاوِزِيْنَ وَمُغَايِرِيْنَ عَنِ الْحَقِّ" او د دے هم دغه مخکنی مقصد دے۔ وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ دلته مراد د اتباع نه تقلید دے (مهائمی تبصیر الرحمان) ځکه چه بے دلیله اتباع تقلید وی۔ اَهْوَآءَ جمع د هوی ده او دا هغه ده چه نفس هغے طرق ته دعوت کوی (خلاف د شرع نه) امام شعبی نه نقل دے چه په قرآن کښ هوا د ذم په ځائے کښ ذکر ده (سیوا د ذکر د جنت نه). قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ زاد المسیر او خازن کښ معنی لیکلے ده اِبْتَدَعُوْا " په طریقه د بدعت سره گمراه شویدی"۔ وجه د هغے دلیل نیول د هغوی دی د معجزاتو د عیسٰی علیه السلام او کراماتو د مریم نه۔ لفظ د ضَلُّوْا اشاره ده چه سبقیت او مشری د هغوی قائده نه ورکوی۔ وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا اشاره ده چه د پیروالی د تابعدارانو نه ئے اعتبار نیشته او دا اضلال په سبب د دعوت د هغوی دے گمراهئ طرق ته۔

وَضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ دا په سبب د تمسك کولو په متشابهاتو سره او امام رازی تفسیر کښ وئیلے دی اول ضلال خو د هغوی شرک او بدعات وو او دویم ضلال دعوت کول شرك او بدعت ته او دریم ضلال همیشه پاتے کیدل په دغه گمراهئ باندے بغیر د توبه کولو نه۔ یا دویم ضلال په دے وجه سره چه دوی مخکنی ضلال او اضلال ته دین وئیلے دے یعنی بدعت ته حسنه وائی۔

ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿۷۸﴾

دا په دے سبب چه دوی نافرمانی کوله او تیریدل د حد نه۔

كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ط

وو دوی چه منع به یئ نه کوله د بدکارو نه چه کول به یئ۔

لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۹﴾ تَرٰى كَثِيْرًا

خامخا بد دے هغه کار چه دوی به کوو۔ وینے ته ډیرو، لره

سئے په دے کښ تخویف دنیوی دے په ذکر د لعنت مستمره سره په بنی اسرائیلو باندے په سبب د هغه ګناهونو چه مخکښ ذکر شول او په دے کښ رد دے د هغوی د وهم۔ وهم دا وو چه هغوی وئیل چه موږ اولاد د انبیاؤ یو موږ ته ګناهونه نقصان نه راکوی۔ جواب اوشو لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اه قرطبی وائی په دے سره معلومه شوه چه کافران اګرچه د پیغمبرانو اولاد وی او یا په نسب کښ شریف وی لیکن په هغوی باندے لعنت جائز دے۔ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مراد د دیته کتاب د داؤد علیه السلام (زبور) او کتاب د عیسی علیه السلام (انجیل) دے په هغه دواړه کتابونو کښ په کفر کوونکو باندے لعنت موجود دے یا مراد دے نه دعاء شر د هغه دواړو ده د اول دعا په اصحاب السبت باندے او د دویم دعا په کفر کوؤنکو روستو د نزول د مائده نه۔ او د دے لعنت دوه اسباب ذکر دی په دے قول کښ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ عصیان عام ګناهونه او اعتداء بدعات یا ظلم په انسانانو باندے دے۔ یا تعبیر د اعتداء كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ دے د دے وجے حرف عطف نه دے ذکر کړے۔

سئے په دے کښ دریم سبب د لعنت ذکر دے۔ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ یعنی په یو بل کښ به یئ منکر لیدلو خو د هغے منع به یئ نه کوله نو منکر کولو او په نهی نه کولو کښ شریک وؤ نو دوه ګناهونه شول قرطبی وئیلے دی په دے کښ اشاره ده اول دا چه نهی عن المنکر فرض ده که په لاس سره وی یا خُلے سره یا په زړه سره وی په اعتبار

مِّنۡهُمۡ يَتَوَلَّوۡنَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا ؕ لَبِئۡسَ

دَ دوی نه چه دوستانه کوی دَ کافرانو سره۔ خامخا بد دے

مَا قَدَّمَتۡ لَهُمۡ اَنۡفُسُهُمۡ اَنۡ سَخِطَ اللّٰهُ

هغه عمل چه مخکښ لیږلے دے دوی لره ځانونو دَ دوی ځکه چه غضب راليږلے دے الله تعالیٰ

عَلَيۡهِمۡ وَفِى الۡعَذَابِ هُمۡ خٰلِدُوۡنَ ۞ ٨٠

په دوی بانديے او په عذاب کښ به دوی همیشه وی۔

دَ استطاعت۔ دویم که یوتن پخپله معصیت کوی نو پدے بانديے هم نهی عن المنکر لازم دی۔ دریم دا چه ترک دَ نهی عن المنکر سبب دَ سخت عذاب دے۔ او دَ دے ایت په تفسیر کښ حدیث دَ ترمذی ابوداوٗد احمد ابن ماجه وغیره مفسرینو ذکر کړے دے مضمون دا دے چه په بنی اسرائیلو کښ به چا منکر کولو نو عالمانو به منع کړل هر کله چه په هغوی منع نه شول نو دغه عالمانو دَ هغوی سره مجلسونه او خوراک څښاک یو ځائے کول او چُپ به وؤ دَ نهی عن المنکر نه نو دا سبب دَ لعنت او گرځیدلو۔

لَبِئۡسَ مَا كَانُوۡا کښ اشاره ده چه منکر که یو شخص نه کوی خو چه نهی عن المنکر پریږدی نو هم گناهگار دے۔

تنبیه۔ امر بالمعروف پریخودل هم گناه ده لیکن معلومه شوه چه نهی عن المنکر پریخودل دَ هغے نه سخت گناه ده نو افسوس دے په حال دَ هغه کسانو چه صرف امر بالمعروف کوی او وائی چه نهی عن المنکر ته حاجت نیشته ځکه چه تور او انتشار پیدا کیږی هغوی دِ پدے ایت بانديے فکر اوکړی۔

ف دا ذکر دَ خیانت دَ کشرانو دے روستو دَ ذکر دَ مشرانو نه دَ پیاره دَ استمرار دَ لعنت په دوی کښ نو دا ځلورم سبب دے او هر کله چه دا دَ کشرانو ذکر وؤ نو دَ دے وجے نه مستقل ئے ذکر کړو په غیر دَ حرف عطف نه۔ تَرٰى كَثِيۡرًا مِّنۡهُمۡ یعنی مخکښ خیانت خو صرف ترک دَ نهی عن المنکر وؤ او دا خیانت دَ هغے نه زیات دے ځکه چه دوی خو نهی کول در کنار بلکه دَ هغوی سره دوستانے کوی۔ که مراد دَ كَثِيۡرًا نه منافقان وی نو دا کثرت فی نفسه دے

وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ

او كه دوی ایمان لرلے په الله تعالیٰ او په پیغمبر باندے او په هغه كتاب

اُنْزِلَ اِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوْهُمْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنَّ

چه نازل كړے شوے دۀ ته، نو به ئے وو نه نيولی دوی لره دوستان او ليكن

كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٨١﴾ لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ

ډير د دوی نه نافرمان دی۔ خامخا او به مومے ته ډير سخت

او اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا نه مراد د دوی (اهلِ كتابو) غټ كافران دی۔ يا مراد د كثيرًا نه كافران د اهلِ كتابو دی او الذين كفروا نه مراد مشركان عوام دی۔

اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ دا محل د رفع (پيښ) كښ دے خبر دے د مبتدا محذوف د پاره يا بدل دے د حرف د ما نه يا په محل د نصب كښ دے په تقدير د لام سره يعنی لِاَنْ سَخِطَ۔

او سَخِطَ زيات دے د غضب نه په دے وجه چه په ديكښ معنیٰ د خفگان ده سره د غصّے نه۔ او د دے ايت نه معلومه شوه چه په موالات (دوستانه) د كافرانو سره دوه عذابونه راځی يو سخط د الله تعالیٰ دويم خلود په عذاب كښ۔

سا[81] په دے كښ رد دے په موالات د كافرانو۔ او په دے كښ د مخكښ ايت پشان دوه توجيه دی ع۱ منافقان مراد دی او النبی نه مراد اخری رسول دے او ما انزل اليه نه مراد قران دے ع۲ او كه كافران كتابيان مراد وی نو د النبی او ما انزل نه مراد موسیٰ عليه السلام او تورات دے او مقصد د ايت دا دے چه موالات د كافرانو سره منافی د ايمانِ بالله او نبی او كتاب الله سره دے۔

سوال ۔ سمعانی وئيلی دی چه دوی خو كافران دی نو فاسقون ئے ورته ولے اُوئيلو؟

جواب ع۱۔ مراد د دے نه خارج د طاعت د الله تعالیٰ بالكليه دے او هغه كافر دے۔ جواب ع۲۔ مراد دے نه متمردين (سركشان) دی۔

النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ

دَ خلقو نه په دشمنئ کښې دَ مؤمنانو سره یهودیان

وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ وَلَتَجِدَنَّ

او مشرکان (امیان)، او خامخا او به مومې ته

اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ

زیات نیزدے دَ دوی نه په دوستانه کښې دَ مؤمنانو سره هغه کسان

قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ

چه وائي بیشکه موږ نصارٰی یو۔ دا په سبب دَ دے چه بعضے دَ دوی نه

قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۸۲﴾

طلبګار دَ حق دی او بیره کوونکے دی (دَ الله تعالیٰ نه) او یقیناً دوی لوئي نه کوی (دَ حق نه)۔

سلا۸۲ دا تفریع ده په ماقبل بیان باندے په ذکر دَ فرق سره په مینځ دَ یهودو او نصاراؤ کښې تو اشاره ده چه ماقبل ذکر شوی عیبونه په یهودیانو او دَ هغوی ملګرو مشرکانو کښې زیات دی په نسبت دَ نصارٰی۔ لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ دا عبارت دلالت کوی په ټینګاره والی دَ دشمنئ دَ هغوی باندے۔ اَلْيَهُوْدَ، یهودیان ځکه چه مؤمنان ایمان لری په عیسٰی علیه السلام او محمد صلی الله علیه وسلم باندے او یهودیانو دَ دے دواړو نه منکر دی۔ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا، او مشرکان ځکه چه مؤمنان خو په توحید باندے پوره کلک دی او دَ هر قسم شرک نه نفرت کوی۔ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى په دے کښې دَ مفسرینو دوه قوله دی اول دا چه مراد دَ دے نه هغه نصارٰی دی چه په حبش کښې یا په مدینه کښې ئے ایمان راوړے وو او قرآن ئے اوریدلے وو او ژړا ئے کړے وه او دلیل دَ دے قول دا دے چه دوی دَ پاره ئے دوستانه دَ مؤمنانو ثابت کړے ده۔ او دا رنګ وروستو دَ دوی صفات دَ مدحے ئے ذکر کړے دی او دا قول سمعانی او خازن وغیره کړے دے۔ دوېم قول دا دے چه مراد دَ دے نه عام نصارٰی دی اګرچه کافران وی او وجه دَ فرق

مفسر یتو دا لیکلی دہ چہ مذهب دَ یهودو دا دے چہ شر او اذیت رسول مخالف ته واجب دی که په قتل سره وی که په مال لوټ کولو سره وی او که نور مکرونه او حیلے وی او په مذهب دَ نصارٰی کښ ایذاء ورکول مخالف ته جائز نه دی او دا رنګ په یهودو کښ حرص دَ دُنیا او مشری طلب کول او تکبر کول عادت دے او نصاراؤ کښ دا صفتونه لږ دی۔ او شربینی لیکلی دی چه دا وجه ده چه کله دَ نبی صلی الله علیه وسلّم خطونه نصاراؤ ته رسیدلے دی نو یا ئے ایمان راوړے دے یا نرم شوید ی لکه هرقل بادشاه او مقوقس او هوده بن علی او غیر دَ نصارٰی نه هغوی خو دَ خط دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ډیره بے عزتی کړے ده لکه کسرٰی دَ فارس چه خط ئے ذرے ذرے کړو او بقاعی وئیلے دی په دے کښ راز دا دے چه عیسٰی علیه السلام او دَ هغه امت په زمانه کښ روستو امت ته نزدے دی نو په دوستانه کښ هم نزدے دی۔

او ذٰلِکَ بِاَنَّهُمْ اه سره تخصیص ئے اوکړو روستو دَ تعمیم نه په ذکر دَ خاص مؤمنانو سره دَ هغوی نه۔

سوال۔ نصارٰی کافر په دے وخت کښ هم دَ یهودو پشان دی بلکه دَ هغوی نه زیاته دشمنی کوی دَ مسلمانانو سره نو څه رنګ دا فرق صحیح کیږی؟

جواب ۱۔ دلته مراد بعض نصارٰی دی لکه چه مخکښ ذکر شول۔

جواب ۲۔ مراد دَ اقرب مودةً نه اتابت کول دی حق طرف ته یعنی په یهودو کښ ضد وعناد او حسد ډیر دے او په نصارٰی کښ اتابت ډیر دے۔

ذٰلِکَ بِاَنَّهُمْ اه وجه دَ سببیت دا ده چه په قوم یا کلی کښ دا سے حق موجود وی او داعیان دَ حق وی نو هغه قوم کښ اتابت الی الحق پیدا کیږی ځکه چه عملی کار په خپل قوم کښ ویتی۔

سوال ۔" انا نصارٰی" ئے اوئیل " هم نصارٰی" ئے نه دے وئیلے؟

جواب۔ اول خو په دے سورة ۱۴ کښ دا سے لفظ ذکر دے دا رنګ سورة آلعمران ۵۲ کښ هم وعده دَ نصرت ذکر ده نو دَ هغے سره موافقت دے دوم دا چه دلته ذکر دَ عام نصارٰی مقصد دے (بنا په دوم قول) نو قالوا انا نصارٰی ئے اوئیل چه حقیقی نصاراؤ (یعنی متبع دَ عیسٰی علیه السلام) او صرف دعوٰی کوؤنکو دواړو ته شامل شی نو روستو ئے دَ هغوی نه تخصیص اوکړو دَ صحیح نصارٰی چه هغوی ایمان راوړے دے دریم دا چه اوسنی نصارٰی

وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنْزِلَ إِلَى الرَّسُولِ
او کله چه واوری دوی هغه کتاب چه نازل کړے شویدے رسول ته

تَرَى أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا
وینې به ته سترګے د دوی چه ډکیږی (بهیږی) د اوښکو نه د وجے د دینه

عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا
چه او پیژندلو دوی حق لره - وائی دوی اے ربه زمونږه! ایمان راوړے دے مونږه

فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴿٨٣﴾ وَمَا لَنَا لَا
نو اولیکه مونږه د شهادت کوونکو سره - او څه عذر دے زمونږ چه نه راوړو

ځان مسمٰی کوی په صلیبین مسیحیین او مریمیین عیسائین سره او ځان ته نصاری نه وائی (الاماشاءالله) او دغه وجه هم ده چه په دوی کښ اوس د مؤمنانو سره د دوستانے بوئ هم نیشته - قِسِّيسِينَ جمع د قسیس ده په اصل کښ د قسّ نه دے په معنیٰ د تتبع او د طلب د یو څیز کښ، مطلق عالم ته وئیلے شی او دارنګ تابعدار د علماؤ ته هم وائی - او نیشاپوری، قرطبی د عروه بن زبیر نه روایت ذکر کړے دے چه هرکله نصاراؤ خپل کتاب انجیل ضائع کړو او تبدیلی پکښ اوکړه نو یو عالم د هغوی نه پاتے شو په حق او په استقامت باندے او د هغه نوم قسیس وؤ نو څوک چه د هغه په دین باندے وؤ نو هغوی ته ئے قسیسین وئیل یعنی د قسیس تابعداران په حق دین کښ - وَرُهْبَانًا هغه عبادت کوؤنکی چه د الله تعالیٰ نه یره کوی او مال وجاه ئے مطلب نه وی - وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ اشاره ده چه علم د حق او عبادت په دوی کښ داسے اثر کړے دے چه دوی د حق خبرے نه هیڅ لوئی نه کوی بلکه تواضع کوی -

۸۳ دا هم عطف دے په ما قبل صفتونو باندے او هغه صفتونه په دوی کښ د قرآن د اوریدلو نه مخکښ موجود وؤ او دا صفت د قرآن په وخت کښ دے او په دے کښ اشاره ده چه تکمیل د مخکښ درے صفتونو په دے ورم صفت سره دے - تَرَى أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ سوال پیدا کیښ

نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ ۙ
ایمان په الله تعالیٰ او په هغه څه چه راغلي دي مونږ ته د حق نه
وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ
او طمع لرو چه داخل به کړي مونږ رب زمونږ د قوم
الصّٰلِحِيْنَ ﴿۸۴﴾ فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوْا
نیکانو سره ۔ پس بدله ورکړه دوی ته الله تعالیٰ په بدله د وینا د دوی

خو د بهیدلو صفت د سترګو د پاره ذکر کړے دے او حال دا چه دا صفت د اوښکو دے ؟
جواب ۔ په دیکښ مبالغه ده په اصل کښ داسے وو چه سترګے د دوی ډکے شي د اوښکو نه بیا رابهیږي یا مِن په معنیٰ د باَ سره دے ۔
مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ اول مِن اجلیه دے او دویم د تبعیض د پاره دے یعني په بعض حق پیژندلو سره زړا اوکړه او کله چه ټول واوري نو بیا خو به د دے نه زیاته ژړا وي يَقُوْلُوْنَ دا دلیل د عدم استکبار دے ۔
فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ مراد د دے نه امت د محمد صلی الله علیه وسلم دے په دلیل د صفت د دوی په سورۃ بقرہ ۱۴۳ او سورۃ حج ۷۸ کښ او داسے دُعا د نصارا و مشرانو هم غوختلے وه لکه په سورۃ آل عمران ۵۳ کښ ده ۔ تنبیه ۔ قرطبي وئیلي دي چه دا صفات د علماء حق پرستو دي چه قرآن اوري نو ژړا کوي خو بیهوشي ورباندے نه راځي او د الله تعالیٰ نه دُعاګانے غواړي خو چغے نه وهي او اظهار د غم کوي لیکن د مرګ حالت نه ښکاره کوي لکه څنګ دا نور کارونه (صعق، چغے، رقص وغیره) په متصوفو باندے کیږي ۔
۸۴ دا جواب د هغوي وو په رد د هغه چاکښ چه دوي له ئے ملامتیا ورکوله چه تاسو ولے بل دین غوره کړو نو هغوي اوئیل وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ دا استفهام انکاري دے یعني هیڅ عذر نیشته په ترک د ایمان کښ ۔
وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ مراد د دے نه قرآن دے او دا عطف دے په بِاللّٰهِ باندے یا دا جمله حالیه ده ۔ وَنَطْمَعُ عطف دے په نُؤْمِنُ باندے

جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِیۡنَ

جنتونه چه بهیږی لاندې دَ هغې نه نهرونه همیشه به وی دوی

فِیۡهَا ؕ وَذٰلِكَ جَزَآءُ الۡمُحۡسِنِیۡنَ ﴿۸۵﴾

په هغې کښې. او دا جزاء (بدله) ده دَ خائسته عمل کوونکو.

وَالَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا وَكَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ

او هغه کسان چه کفر ئې کړیدې او دروغژن ګڼړی آیاتونه زمونږ دغه کسان

اَصۡحٰبُ الۡجَحِیۡمِ ﴿۸۶﴾ ع یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا

دوزخ والا دی. اے ایمان والو!

یا حال دے په تقدیر دَ نحن نطمع سره. حاصل دا دے چه سبب دَ ایمان موجود دے چه طمع دَ جنت ده او مانع دَ ایمان نه نیشته او په وخت دَ وجود دَ سبب او دَ عدم مانع کښې وجوب راځی. مَعَ الۡقَوۡمِ الصّٰلِحِیۡنَ دَ دے نه مراد امت دَ محمد صلی الله علیه وسلم دے په قرینه دَ سورة انبیاء ۱۰۵ سره او مع په معنیٰ دَ فی سره دے یا عبارت پټ دے یعنی فی الجنة مع القوم الصالحین.

۸۵ دا بشارت اخرویه دے بِمَا قَالُوۡا سوال: دَ دے نه معلومه شوه چه صرف په اقرار سره جنت حاصلیږی او دا مذهب دَ کرامیه ډلے دے چه صرف اقرار ته ایمان وائی؟ جواب: خازن او رازی وئیلی دی چه محکَښ دَ دوی اخلاص ذکر شو په دوه صفاتو سره اول ژړا او دویم معرفت دَ حق چه دا دلالت کوی په پوره تصدیق دَ قلب باندے نو روستو ورپسے قول ذکر کړو او موصوف ئې کړل په محسنین سره. بل دا چه نیشاپوری وئیلی دی چه دلته قول په معنیٰ دَ اعتقاد دے او ډیرو ځایونو کښې قول نه مراد عقیده وی.

۸۶ دا تخویف اخروی دے هغه کسانو ته چه دَ محکَښ صفتو نو خلاف صفات لری. كَفَرُوۡا دا په مقابل دَ لا یستکبرون او عرفوا من الحق کښې دے. اَوۡ كَذَّبُوۡا په مقابله دَ اذا سمعوا الخ او یقولون الخ کښې دے

لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ

مه کنړئ حرام مزیدار (پاک) هغه څیزونه چه حلال کړیدی الله تعالیٰ تاسو لره

وَلَا تَعْتَدُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۸۷﴾

او زیاتے مه کوئ دَ حد نه - یقینًا الله تعالیٰ مینه نه کوی دَ زیاتی کوونکو سره -

نو کفر وصف دَ زړه دے او تکذیب صفت دَ ژبے او دَ ظاهر دے -

۸۷ خلاصه: دَ دے ځائے نه دویم باب دے دَ دے حصّے تر اٰخر دَ سورت پورے پدیکښ رد دے په شرک فی التحلیل والتحریم باندے او بیا ذکر دَ مسئلے دَ حلف (قسم) دے په طریقه دَ تحریم دَ حلال سره او بیا ذکر دَ تحریمًا تو الهیو دے چه په هغے کښ رد دَ نذر دَ غیر الله هم دَے بیا جواب دَ وهم دے - بیا ذکر دے دَ تحریم اِلٰهی خاص او دَ هغے حکم تفصیلی - بیا تحلیل بیا دفع دَ وهمونو تر ۹۹ پورے بیا تادیب دے په ۱۰۱ کښ او رد دے په تحریم او نذر لغیر الله باندے تفصیلًا او رد دے په دلیل دَ هغوی باندے په ۱۰۴ کښ بیا یل ادب ذکر کوی په ۱۰۵ کښ بیا رد دے په حلف کاذب باندے چه دَ هغے په سبب سره حرام حلالوی تر ۱۰۸ پورے په اٰخر کښ دلیل نقلی دَ ټولو انبیاؤ نه اجمالی او دَ عیسٰی علیه السلام نه تفصیلًا او مقصد ئے دا دے چه دوی غیب دان نه دی او په اٰخر کښ دعوٰی دَ توحید ده - او پدے باب کښ اووه عقود الهیه ذکر دی په عنوان دَ یا ایها الذین اٰمنوا سره -

تفسیر: ربط هر کله چه مخکښ مدح دَ قسیسین او رهبان ذکر شوه نو اعتراض راغے چه په هغوی کښ دَ رهبانیت دَ وجے نه تحریم دَ طیبًا تو هم دَے حاصل جواب دا دے چه دَ هغے نه ځان ساتئ لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ تحریم دَ غیر الله کښ څلور قسمونه دی اول دا چه دَ انکار دَ وجے نه حرام دَ الله تعالیٰ حلال اوګڼړی او حلال ئے حرام اوګڼړی - دویم دَ وجے دَ اعتقاد او دَ خوف شرکی نه یعنی چه یو حلال څیز رچه نسبت ئے یو معبود ته کړے شوے وی) نو په ځان باندے حرام اوګڼړی پدے عقیده چه دا حلال کړم نو دا معبود به ما ته ضرر اورسوی لکه بحیره سائبه وغیره - دریم په نصوصو شرعیو کښ څه څیز حلال وی لیکن علماءِ سوءِ په تقلید

وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا ص

او خورئ دَ هغے نه چه درکړیدی تاسو ته الله تعالیٰ حلال پاک (مزے والا) ،

وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنْتُمْ بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

او یرهٔ کوئ دَ الله تعالیٰ نه هغه الله چه تاسو په هغه باندے ایمان لرئ -

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ

نه نیسی الله تعالیٰ تاسو لره په بے ارادے دَ قسمونو ستاسو لره

سره (بے دلیله) هغه حرام کرځولے وی خلورم دَ رهبانیت دَ وجے نه بعض حلال څیزونه په ځان باندے حرام ګنړی لکه بعض جائز لباس او غوښه خوړل او نکاح کول او میوے او غوړی وغیره لکه چه بعض ملنګان په ځان باندے حرام اوګرځوی - نو دا نهی دَ لا تحرموا دے ټولو قسمونو ته شامل ده او بالخصوص روستنے قسم باندے رد اول مقصد دے دَ دے وجے نه قرطبی لیکلی دی چه په دے کښ رد دے په غالیانو زاهدانو او باطل پرست صوفیاؤ باندے نیشاپوری وئیلی دی چه مراد دَ لَا تُحَرِّمُوا دا دے چه عقیده دَ هغے دَ حرمت مه لرئ او په ژبه باندے دَ هغے دَ حرمت بیان مه کوئ او په عملی طور باندے دَ هغے نه دا سے ځان مه ساتئ لکه چه حرامو نه ځان ساتل پکار دی - وَلَا تَعْتَدُوا دَ حدودو شرعیو دَ حرام او دَ حلال نه تجاوز کول اعتداء ده په طریقه دَ تحریم دَ حلال سره یا په طریقه دَ تحلیل دَ حرامو سره -

۸۸ په دے کښ تاکید دے دَ لا تحرموا او ذکر دَ شرطونو دَ خوراک دے چه حلال او طیب به وی او مراد دَ كُلُوا نه فائده اخستل دَ حلالونه په خوراک څښکاك ، لباس او سورلئ کولو وغیره کښ دی - او خوراک چونکه لوئے مقصد دے دَ دے وجے نه هغه ئے خاص کړو په ذکر سره - په مِمَّا کښ اشاره ده چه بعض دَ هغے نه صدقه کښ ورکوئ - او دا رنګ دَ رزق لفظ اطلاق په حرام باندے هم کیږی نو بعض ئے ځکه خاص کړل - حَلَالًا طَيِّبًا حلال خو هغه دے چه دلیل شرعی دَ حرمت دَ هغے دَ پاره نه وی او طیبا هغه دے چه دَ شبهے نه هم پاک وی - ابن مبارک رح

وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ

او لیکن نیسي تاسو لره په هغې سره چه ترلي وي تاسو قسمونه

فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ

پس کفاره دَ هغې خوراک ورکول دي لس مسکینانو ته دَ

اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ

درمیانه هغه خوراک نه چه خوروئ بیرته بچیل کور والا بانده یا جامې دَ هغوی

اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ؕ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ

یا آزادول دَ مریئ دي. پس څوک چه ته موئي تو پره دَ بانده روژې دي

ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ؕ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ

درې ورځې (پرله پسې). دا کفاره دَ قسمونو ستاسو ده

اِذَا حَلَفْتُمْ ؕ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ

کله چه قسمونه اوکړئ تاسو. او بچ ساتئ قسمونه خپل. دغسې

يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٨٩﴾

بیانوی الله تعالیٰ تاسو ته احکام خپل دې دپاره چه شکر اوکړئ.

ته نقل دے چه حلال هغه دے چه په طریقه شرعي سره حاصل شي اوطیب هغه دے چه په هغې کښې غذائیت او ترقي دَ بدن وي او مضر دَ صحت نه وي نو اشاره شوه چه کوم څیز سره غذائیت نه راځي بلکه مضر وی لکه خاوره کانړي سکاره وغیره نو دا مکروه دي. وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اه په دے کښې اشاره ده دوه خبرو ته اول دا چه ایمان بالله سبب دے دَپاره دَ تقوٰی کولو دویم دا چه دَ حرامو نه بچ کیدل او دَ حلالو نه فائده اخستل دا تقوٰی ده.

۸۹ ربط دَ آیت دا دے چه قرطبي او سمعاني روایت کړے دے چه کوم صحابه کرامو دَ رهبانیت اراده کړے وه نو هغوی ورسره قسم کړے وؤ

نو هرکله چه نازل شو مخکښې ایت چه لا تحرموا طیبات ما احل الله لکم ا ه
نو هغوی نیوس اوکړو چه موږ چه قسم کړے دے نو دَ هغے په څه حکم وی
نو دا آیت نازل شو. دا رنګ هرکله چه او فرمائیل چه تحریم دَ طیبا تو اعتداء
(ګناه) ده نو سوال راځي چه کله خو یو صالح انسان یو حلال څیز په ځان
باندے حرام کړی لکه چه سورۃ تحریم په اول کښې ذکر دی نو جواب اوشو
چه په دے کښې تحریم شرعی مقصد نه وی صرف دَ هغے څیز نه ځان ساتل
دَ بل مقصد دَ پاره دی او هغے ته تحریم لغوی وئیلے شی.
لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللهُ دا سے په سورۃ بقره ۲۲۵ کښې تیر شو یدای او
مؤاخذه دوه قسمه ده اول دنیوی یعنی کفاره دَ قسم دویم اخروی یعنی
عذاب الٰهی دلته نفی دَ دواړه قسمونو مراد ده. بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ
لغو په اصل کښې هغه څیز دے چه په بے پرواهئ سره اوغورځولے
شی او لغو دوه قسمه ده اول دا چه الفاظ دَ قسم دَ خُلے نه بغیر دَ ارادے
نه دَ عادت دَ وجے نه اوځي لکه بعض خلق دَ عادت دَ وجے نه وائي قسم م
دے ، والله ، بالله. دویم قسم چه په تیر شوی کار کولو یا نه کولو باندے
په طور دَ انکار سره قسم اوکړی دَ هغے کول یا نه کول دَ دهٔ نه هیر وی
اول قول دَ امام شافعیؒ دے او دویم قول دَ امام ابوحنیفهؒ او امام احمدؒ
دے راجح دا ده چه دا دواړه په یمین لغو کښې داخل دی اول خو دَ دے
وجے نه چه نیت ئے نیشته او" انما الاعمال بالنیات"، او دویم دَ دے
وجے نه چه په ګمان کښې دے ریشتنے دے او" وَرُفِعَ عَنْ اُمَّتِي الْخَطَاءَ
وَالنِّسْيَانِ". اِيْمَانَ جمع دَ یمین ده او یمن دلالت کوی په قوت باندے
نو په قسم سره خبره قوی کیږی دَ دے وجے نه هغے ته یمین وئیلے شی.
بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ عقد په اصل کښې تړلو ته وئیلے شی نو پدے
سره هغه قسم مراد دے چه کول یا نه کول دَ راتلونکے وخت سره
او تړلے شی او دیته یمین منعقد وئیلے شی په دے کښې په وخت
دَ حانث کیدلو (قسم ماتولو) کښې کفاره واجب ده بالاتفاق.
سوال. دَ دے الفاظو دَ ایت نه خو معلومه شوه چه په صرف عقد کولو
(یمین منعقد) سره کفاره واجبیږی ؟
جواب. دلته په عبارت کښې پټ لفظ مراد دے" بِنَكْثِ مَا عَقَّدْتُّمُ

یا اِذَا حَلَفْتُمْ) یعنی په ماتولو دَ دے قِسم سره کفاره واجبیږی".
فَکَفَّارَتُهٗ دا تفصیل دَ یوُاخذ کم دے او دے ته کفاره وئیلے شی ځکه چه په دے سره گناه دَ ماتولو پټ شی او معاف شی۔
اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰکِیْنَ۔ دَ اطعام په تحدید کښې اختلاف دَ اهلِ علمو دے دَ علیؓ روایت دے چه دوه وخته په خوراک ورکوی (غرمه او ماښام) دَحسن بصری نه نقل دے چه یو وخت خوراک چه ډوډئ او غوښه وی پوره دے۔ دَ اکثر اهل علمو نه نقل دے چه دَ غنمو نه نیم صاع (چه هغه تقریبًا دوه کلو وی یا دَ هغے قیمت دے ورکړی که په هر یو باندے عمل اوکړی نو جائز دے۔ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ الخ یعنی ډیر اعلیٰ قِسم طعام او ډیر ادنیٰ دے نه ورکوی بلکه درمیانه چه عام اوقاتو کښې دا انسان یخپله خوری او خپل اهل وعیال ته ئے ورکوی۔
اَوْکِسْوَتُهُمْ په ایت کښې دَ دے حد هم نه دے ذکر شوے نو امام شافعی فرمائی چه کوم ته جامه وئیلے شی قمیص اوږد او پرتوګ یا لنګ یا پګړئ دے ورکړی۔ او امام مالک او احمد وائی هغه جامه چه په هغے کښې مونځ کول صحیح وی دَ سړی یا دَ ښځے مناسب۔ مذهبِ حنفی کښې دی چه جوړه جامه چه په عرف کښې څنګه استعمالیږی، او دا به په ملکیت کښې ورکوی۔ اَوْ تَحْرِیْرُ رَقَبَةٍ دَ ستې نه مراد ټول ذات دَ انسان دے که مرئے وی او که وینځه وی او دَ احنافو په نیز عام دے که مؤمن وی او که کافر وی او دَ نورو ائمو په نیز مؤمن کیدل شرط دی او امام شعرانی وئیلے دی چه کافر ازادول په کفاره کښې دا مشکله خبره ده ځکه شرعی مقصد دَ ازادولو نه دا دے چه دَ الله تعالیٰ دَ بندګئ دَ پاره ازاد شی نو صحیح دا ده چه ایمان پکښې شرط دے۔ او امام رازی وئیلے دی چه په عرب کښې دا قاعده وه چه دَ قیدی شخص رسن به ئے دَ ستې سره تړلے ووُ په رسئ باندے نو کله چه به ئے ازادولو نو رسئ به ئے پرانستله نو دَ مرئي ازادولو دَ پاره هم فك رقبة استعمالیږی هم دَ دے مناسبت دَ وجے نه۔
تنبیه۔ ټولو اهلِ علمو وئیلے دی چه حرف دَ اَوْ په دے کفاره کښې دَ پاره دَ تخییر (اختیار) دے یعنی دَ کفاره ورکوونکی خوښه ده چه په دے

درے وارہ کښې هر یو خوښې کړی تو اداؤکړی۔ او په دے درے وارو کښې یو حکمت دا دے چه اطعام کښې اشاره ده چه دا انسان لس ورځے ځان او بدے اوساتی دَ عادت خیل نه دَ پاره دَ دے چه شهوت دَ نفس اماره مات شی ، او کسوة دَ دے دَ پاره چه ګناه ئے پټ شي . او تحریر رقبه دَ دے دَ پاره دے چه دَ دهٔ غاړه دَ ګناه نه ازاده شي . فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ په اطعام کښې صرف اشاره ده چه په ځان باندے لس ورځے خوراک کم کړی او په دے کښې تصریح ده چه درے ورځے دِ ځان بالکل اوږے کړی نو په اول کښې لس انتهاء دَ جمع قلت او ابتدا دَ جمع کثرت ذکر شوه او په روژه کښې ادنیٰ دَ جمع قلت ذکر کړه یعنی دا جمع قلت دَ عدد دَ جمع کثرت دَ اطعام سره برابر ده او په دے درے ورځو کښې تتابع (پرلپسے والے) شرط دے په تیز دَ احنافو باندے په سبب دَ قراءة دَ ابي بن کعبؓ او ابن مسعودؓ سره او دَ نورو ائمو په نیز تتابع شرط نه دے صرف سنت دے . ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ او دَ دے سره حنث مراد دے لیکن حلف اصل سبب دے دَ کفارے دَ دے وجے نه دَ هغے ذکر ئے اوکړو نو دا دلیل دے چه مخکښې کول دَ کفارے په قسم کولو باندے جائز نه ده او په حنث باندے مخکښې کولو کښې اختلاف دے ظاهر دَ حدیث دلالت کوی په جواز باندے لیکن په کارونو دَ خیر کښې فقط .

وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ دَ دے درے توجیه دی اول دا چه ځان بچ کړئ دَ ډیرو قسمونو کولو نه (خازن) ، دویم دا چه روستو دَ حنث نه تادی اوکړئ په کفاره ورکولو کښې (قرطبی) دریم دا چه قسمونه بچ اوساتئ دَ حانث کیدلو نه لیکن دا خاص دے په هغه حال پورے چه قسم ئے نه وی کړے په پریخودلو دَ امر شرعي یا په کولو دَ مکروه کار باندے .
لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ اشاره ده چه تفصیل دَ دینی احکامو لوئے نعمت دے دَ هغے شکر کول لازم دی دا رنګ شکر کول په معنیٰ دَ عمل کولو سره دے .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ

اے ایمان والو ! یقینًا شراب

وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ

او جوارۍ او بتانو ته د درکاهو او قسمت معلومول په غشو سره پلیتي ده

مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ

دا د عمل د شیطان نه دی نو ډډه اوکړئ د دینه دے دپاره چه تاسو

تُفْلِحُوْنَ ۝۹۰ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ

کامیاب شئ . یقینًا اراده لري (غواړي) شیطان

سـ۹ ربط د مخکښ سره دا دے چه هر کله ئے او فرمائیل "لا تحرموا طیبات ما احل الله لکم" نو خمر او میسر هم د بعضو خلقو په نیز طیبات وو نو زد کوي په هغوی باندے چه دا طیبات نه دی. یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا قرطبي وئیلي دي چه د جاهلیت په خلقوکښ دا عادت وو نو روستو د ایمان نه هم بعض اثار د دے په بعض مؤمنانوکښ پاتے وو د دے وجے نه خطاب ئے په صفت د ایمان سره اوکړو یعنی صفت د ایمان د دے عاداتو سره منافي دے . ابن عطیه وئیلي دي چه دا سے عادات په جاهلیت والوکښ وو چه فالونه به ئے راویستل د کتابونو او د مارغانو په ذریعه سره او بعض خلق پکښ اوس هم گرفتار دي . اِنَّمَا الْخَمْرُ سورة بقره سـ۲۱۹ کښ د دے تفسیر تیر شویدے . او په مسند احمد کښ ذکر دي چه تحریم د خمر (شرابو) په تدریج سره درے مرحلو کښ راغلے دے اول په سورة بقره سـ۲۱۹ کښ نو بعضو صحابو پریخودل او بعضو به استعمال کوؤ نو بیا په سورة نساء سـ۴۳ کښ اوئیلے شول چه په وخت د مونځ کولو کښ منع دي نو بیا به په غیر د وخت د مونځ نه بعض کسانو څښکل نو بیا دا ایت نازل شو نو ټول صحابه منع شول او ټول هغه شراب ئے په زمکه باندے وارول کوم چه چاسره وو او لوښي د شرابو ئے مات کړل. نو دا ایت صریح دے په تحریم د خمر کښ په درے الفاظو سره رجس، من عمل الشیطٰن او فاجتنبوا او خبر د بخاري

او مسلم کښې راغلې دي چه هرکله دا ایت نازل شو په هغه وخت پنځه قسمونه دَ شرابو موجود وو دَ انګورو، کجورو، ګبین، غنمو او وریشو۔ او خمر هر هغه څیز دے چه عقل پټوی (یعنی دَ شرابو په څښکلو سره انسان دومره نشه شي چه په ځان نه پوهیږی)۔ او حدیث دَ مسند احمد کښې دی چه دَ دې خرڅول او دَ دې قیمت اخستل هم حرام دی۔ او ابن کثیر په دے مقام کښې ډیر احادیث په دے مسئله کښې راجمع کړے دیٔ هغه اوګورئ۔ وَالْمَيْسِرُ "هرقسم جواری کول" هرکله چه په جواری سره مال په اسانه طریقه حاصلیږی دَ دے وجے نه دَ هغے نوم میسر کیخودلے شو یدے او قرطبی وئیلې دی چه واړه هلکان چه په اکوړو (بلورو) وغیره سره لوبے کوی او دَ یو بل نه یٔ ګټه کوی دا هم په میسر کښې داخل دی۔ وَالْاَنْصَابُ جمع دَ نُصُب یا دَ نَصْبٌ ده په اصل کښې په معنیٰ دَ مفعول سره دے یعنی منصوب (اودرولے شوے مقرر کړے شوے) او په اصطلاح شرعی کښې هر هغه څیز چه خلق یٔ مقرر کړی او بندګی (سجدے، طوافونه، ذبح او نذرونه وغیره) دَ هغې کوی۔ په مجالس الابرار ص۱۲۱ مجلس ۱۸ کښې لیکلې دی چه دا لفظ اونے، ګټے او قبرونو وغیره ته هم شامل دے او دَ دے ټولو نړول واجب دی (دَ استطاعت موافق) نو مراد دلته انصاب جوړول یا دَ هغے عبادت کول دی۔ وَالْاَزْلَامُ دَ دے سورت په ابتداء کښې تفصیل دَ استسقام بالازلام ذکر کړے شوے دے۔ فائده۔ مهائمی په تبصیر الرحمٰن کښې وئیلې دی چه په خمر څښکلو کښې بربادی دَ عقل ده او په میسر کښې بربادی دَ مال ده (ګټه پکښې کله کله وی) او په انصاب کښې بربادی دَ عزت دَ انسان ده په تذلل او عبادت کولو دَ مخلوق سره او ازلام کښې بربادی دَ علم ده او کثرت دَ جهل دے۔ رِجْسٌ په لغت کښې هر خبیث ته وئیلے شی چه هغه بد ګڼړلے کیږی په عقل او په شرع کښې او دَ دے څیزونو وجه دَ رجس کیدلو مخکښې دَ مهائمی په حواله سره ذکر شوه۔ او اطلاق دَ دے لفظ اکثر په هغه ځائے کښې کیږی چه پلیتی پکښې پټه وی عام خلق وریاندے نه پوهیږی دَ دے وجے نه منافقانو ته رجس په سورة توبه ۹۵ کښې وئیلې شویدی او نجس هغه څیز ته وئیلے شی چه ظاهرًا یا باطنًا پلیت وی لکه مشرکان په سورة توبه ۲۸ کښې۔ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ یعنی شیطان انسی او جنی

اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ

چه واچوی په مینځ ستاسو کښې دشمنی او کینه کړی

فِى الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ

په څښکلو د شرابو سره او کولو د جوارئ سره او منع کړی تاسو د ذکر د الله تعالیٰ نه

وَعَنِ الصَّلٰوةِ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ﴿۹۱﴾

او د مانځه نه ، نو آیا تاسو منع کیدونکی یئ ؟

دا کاروته کوی یا ئې خلقو ته ځانګړته کوی په وسوسو سره. فَاجْتَنِبُوْهُ ضمیر ټولو ته راجع دے په تاویل د مذکور سره یا رجس ته راجع دے. او دا لفظ د ډیر تاکید دے په باره د تحریم کښې په نسبت د لفظ د حرّم سره. لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ اشاره ده چه د دے نه خلاف کول سبب د خسران او فساد دے.

سلا په دے کښې هم تاکید د حرمت د خمر او میسر ذکر کوی چه دا سبب د فساد دنیوی او دینی دے هر کله چه قباحت د انصاب او ازلام خو ښکاره وو او د دے سورت په ابتداء کښې ذکر وو نو دلته د هغے ذکر کولو ته حاجت رانغے صرف د خمر او میسر قباحت ذکر شو.

الْعَدَاوَةَ (کنځل او وهل او قتال کول) هر کله چه خمر و کښې په نشه کیدلو سره فحش خبرے کیږی نو هغه سبب شی د دشمنئ او په میسر کښې په مال بیللو سره بلکه بعض خلق په جوارئ کښې خپل اهل او اولاد هم ګانړه کوی د بل چا سره او د بل چا په لاس کښې چه هغه ګوری نو سبب د دشمنئ او ګرځی. وَالْبَغْضَآءَ بُغض پټے کینے او حسد ته وئیلے شی او بُغض سبب جوړیږی د قطع تعلق او دا سبب د فساد د ژوند دے. وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ په دے جملے سره فساد دینی د خمر او میسر ذکر کوی ځکه چه په خمر سره سرور د نفس او استغراق په لذتِ جسمانی کښې حاصل شی نو د ذکر الٰهی نه غافل شی او په میسر کښې که ګټه اوکړی نو زړهٔ کښې ئې غرور پیدا شی او که مغلوب شی نو بیا حیلے جوړوی د ګټے د مال د پاره او په دوارو

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا ۚ

او تابعداري کوئ دَ الله تعالیٰ او تابعداري کوئ دَ پيغمبر او بچ شئ دَ خلاف دَ دَ دراتنه

فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا

پس که تاسو مخ اوګرځوو نو پوهه شئ چه يقيناً په رسول زمونږ باندې

الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۹۲﴾ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

رسول دی ښکاره - نيشته په هغه کسانو چه ايمان ئې راوړے دے

حالانکه په دے کښ دَ الله تعالیٰ دَ ذکر نه غفلت راځی۔ وَعَنِ الصَّلٰوةِ دا تخصيص بعد التعميم دے دَ وجے دَ ډيرا هتمام دَ صلوٰة نه او صلوٰة داسے عمل دے په هغے کښ په ټولو اعضاؤ سره ذکرِ الٰهی کيږی۔

فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ مراد دَ دے نه امرکول دی په منع سره په طريقه دَ مبالغے سره دَ دے وجے نه دَ عمر رضه نه نقل دی په روايت دَ ابوداؤد سره چه هغه دَ دے جملے سره اُوئيل اِنْتَهَيْنَا (منع شومونږ)۔

امام رازی وئيلے دی چه هرکله سبب دَ حرمت دَ خمر دا مفاسدِ دنيويه او اخرويه اوګرځولے شو او سبب دَ مفاسدو سکر (نشه) دے نو معلوم شوه چه هر مسکر (عام دَ نشے شيز) په حکم دَ خمر وکښ دے او حرام دے۔

۹۲ دا هم متعلق دے دَ حکم دَ خمر او ميسر سره او تاکيد دے په درے طريقو سره اول امر په اطاعت سره دويم امر په حذر سره دريم اشاره ده په استحقاق دَ عذاب او دفع دَ عذر سره۔ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ مراد دَ دے نه عام دے په جميع اوامرو او نواهی کښ او مسئله دَ خمر او ميسر هم دیکښ داخل ده۔ واطيعو الرسول کښ اشاره ده چه تفصيل او تفسير دَ خمر او ميسر دَ پاره احاديث دَ نبی صلی الله عليه وسلم ته رجوع کول ضروری دی۔ وَاحْذَرُوْا بچ شئ دَ مخالفت دَ الله او دَ رسول نه حذر کښ معنیٰ دَ ترک ده دَ يو څيز دَ يرے دَ وجے نه۔

فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ الخ دَ دے جزا په اصل کښ پټه ده يعنی تاسو مستحق دَ عذاب يئ او عذر ستاسو ختم دے نو په رسول باندے هيڅ ملامتيا نيشته او فَاعْلَمُوْٓا دليل دے دَ دغه جزا پټے دَ پاره۔

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْٓا

او عمل ئې کړي دي په طريقه دَ پيغمبر — څه ګناه — په هغې کښې چه دوي خوړلې دي

اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

کله چه ځان بچ کوي دَ شرک نه او پوره ايمان لري او عمل کوي په طريقه دَ پيغمبر (نيک)

ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاَحْسَنُوْا ؕ

بيا ځان بچ ساتي دَ حرامو نه او ايمان هميشه لري بيا ځان بچ ساتي دَ شبهاتو نه او ښائسته عمل کوي۔

وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٩٣﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

او الله تعالیٰ مينه کوي دَ ښائسته عمل کوونکو سره۔ اے ايمان والو!

س۹۳ په دے ايت کښې جواب دَ يو سوال دے چه امام بخاري امام ترمذي ذکر کړے دے يعني روستو دَ تحريم دَ خمر او ميسر نه بعض صحابو سوال اوکړو چه څه حال دے دَ هغه صحابو چه شهيدان شول په اُحد کښې او دَ هغوي خيټو کښې شراب او مال دَ ميسر پروت وو نو په دے ايت کښې جواب اوشو۔ په دے ايت کښې دوه اشکالونه دي اول دا چه په داسے حال کښې خو په کافر باندے هم ګناه نيشته چه په حال دَ کفر کښې مباح څيزونه بلکه حرام ئې خوړلے دي نو روستو دَ توبے او دَ ايمان راوړلو نه خو په هغه باندے جناح نيشته نو دَ مؤمنانو تخصيص ئې ولے اوکړو؟ (جواب) کافر نه موصوف کيږي په داسے صفت سره چه دهٔ باندے ګناه نيشته په فلاني کار کښې ځکه چه کفر دَ هغه دَ ګناهونو مجموعه ده او هر چه مؤمن دے نو دَ هغه په باره کښې خوف کيدلے شي په هغه څيزونو چه روستو حرام شويدي کيدے شي چه مخکښې دَ تحريم نه هغه ګناه وي۔

سوال۔ دَ مباح څيز په باره کښې عدم جناح خو په شرط سره مشروط نه وي په باره دَ مؤمن کښې نو دَ دے احوالو (درے کرته ايمان درے کرته تقوٰی او دوه کرته عمل صالح او يو کرت احسان) ذکر ته څه ضرورت دے؟

جواب ۱۔ دا په طريقه دَ مدح او دَ ثناء سره دي يعني دغه صحابه کرام په وخت دَ مباح (خمر او ميسر) کولو کښې په دے نورو صفتونو

اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ

خامخا ازمیښت کوی الله تعالیٰ په تاسو په څه څيز سره د ښکار نه

تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ

چه رسی هغې ته لاسونه ستاسو او نيزے ستاسو، دے د پاره چه ښکاره کړی الله تعالیٰ

سره متصف وۀ او بيا هم په هغې سره متصف دی۔ جواب ۲۔ په دے کښې نفی د هغه امورو ته اشاره ده چه محيط ( برباد وونکے ) د ايمان يا د اعمالو دی لکه شرک او کفر ته تقوٰی (ځيکيدل) د بدعاتو ته تقوٰی، د ريا او سمعت ته تقوٰی ځکه چه دا درجے د تقوٰی موجود نه وی نو ښته اعمال برباد شی نو نفی د جناح په مباح کښې فائده نه ورکوی۔

تنبيه۔ په تکرار د تقوٰی کښې ډير اقوال دی اول قول، اوله تقوٰی د هغه څيزونو نه چه حرام وی په وخت د اباحت د خمر او ميسر کښې۔ دويمه تقوٰی د ريا او سمعت نه۔ دريمه تقوٰی د نسبت د عملونو نه خپل ځان ته په طور د عجب او تکبر سره۔ دويم قول۔ اوله تقوٰی د کفر او شرک نه، دويمه د کبائرو ګناهونو نه، دريمه د صغائرو او شبهاتو نه۔ دريم قول اول تقوٰی په مينځ د ده او د نفس د ده کښې، او دويمه په مينځ د ده او د خلقو کښې، او دريمه په مينځ د ده او د الله تعالیٰ کښې او د دے وجے نه د دريمے سره ئے احسان ذکر کړو چه د هغې معنیٰ اَنْ تَعْبُدُ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ (حديث) دے۔ څلورم قول هغه دے چه په دويم جواب کښې ذکر شويدے۔ په تکرار د ايمان کښې هم اقوال دی۔ اول قول، په اول ايمان کښې اصول د ايمان مراد دی او په دويم کښې زيادت د ايمان او په دريم کښې دوام د ايمان تر مرګه پورے۔ دويم قول، اول ايمان توحيد دے دويم ايمان په تحريم د خمر او ميسر باندے دے دريم ايمان ثبات او استقامت دے په هغې باندے۔ دريم قول د هر قسم تقوٰی سره د ايمان ضرورت دے نو څه رنګه چه تقوٰی درے قسمونه دی دا رنګ ايمان هم۔ او تکرار د عمل صالح کښې دوه قسمونو ته اشاره ده اول فرائض واجبات او دويم سنن او مستحبات۔ او هر چه احسان دے نو هغه خو اخلاص دے او هغه په ټولو مراتبو د ايمان او د تقوٰی او د عمل صالح کښې رکن اصلی دی او هغه په

مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ

هغه څوک چه یریږی د هغه نه په حال د نه لیدلو د هغه کښ، نو چا چه زیاتے اوکړو پس

ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٩٤﴾

دَ دیته نو هغه لره عذاب دردناک دے.

ف۹۴ هر کله چه په ف۸۷ کښ هغه څیزونه ذکر کړل چه همیشه حلال وی او په ف۹۰ کښ هغه ذکر کړل چه روستو دَ تحریم نه همیشه حرام وی نو اوس هغه څیزونه ذکر کوی چه دَ خاص مکان یا حالت دَ وجے نه حرام وی او یل ځائے او وخت کښ حلال وی او دَ هغے نه تعبیر کیدلے شی په تحریمات الٰهیه سره.
يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ، ټول احکام الٰهیه چه انسانان په هغے سره مکلف وی نو هغے ته ابتلاء وئیلے شی بیا چه دَ عصیان سبب قریب موجود شی او دَ هغے طاعت کولو کښ مشقت وی نو دا ابتلاء سخته ده. نو دلته هم روستو لفظ دَ تَنَالُهٗ کښ چه ښکار کول اسان دی لیکن الله تعالیٰ حرام کړے دے او دا ابتلاء دَ ښکار پشان دَ ابتلاء دَ بنی اسرائیلو ده لیکن هغوی په ابتلاء کښ ناکام شول او دا امت په دے ابتلاء کښ کامیاب دے اِلَّا مَا شَاءَ الله. او دلته خطاب دے هغه مؤمنانو ته چه په حرم کښ وی یا په احرام کښ وی. بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ، مِنْ دَ پاره دَ تبعیض دے یعنی دَ اوچے. بِشَيْءٍ خازن او زمخشری وئیلے دی چه په دے کښ اشاره ده چه دا ابتلاء لږه او اسانه ده په نسبت دَ نورو عظیم فتنو چه په هغے کښ اکثر خپے خوئیږی. او دا رنګ لفظ دَ بِشَيْءٍ په سورة بقره ف۱۵۵ کښ هم دلالت کوی چه دغه ابتلاګانے لږے دی په نسبت دَ نورو فتنو.
تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ یعنی واړه بچی، او اګئی او هغه چه رفتار ئے کمزورے وی نو انسان ئے په لاسونو سره نیولے شی او اَيْدِيْكُمْ کښ داخل دے جالونه اچول او دا مونه خخول. وَرِمَاحُكُمْ یعنی لوئے ښکاروی دَ ښکار چه تیخته کولے شی او بدن ئے غټ وی نو بغیر دَ نیزے نه نه راتیښکیږی.
لِيَعْلَمَ اللّٰهُ دا علت غائی دَ ابتلاء دے او مراد دَ يَعْلَمَ نه اظهار او تمیز دے په علم دَ خلقو کښ اګرچه الله تعالیٰ ته دَ مخکښ نه معلوم دی او دیته علم بعد الوجود وئیلے شی روستو دَ علم قبل الوجود نه.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ

اے ایمان والو ! مه وژنئ (مه کوئ) ښکار

وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا

او حال دا چه تاسو احرام کښ یئ - او چا چه اووژلو ښکار ستاسو نه په قصد سره

فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ

نو په دهٔ باندے بدله ده پشان دَ هغے چه دهٔ قتل کړيوی د څاروُو نه

يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا

فیصله به کوی په هغے سره دوه تنه انصاف والا ستاسو نه هديه به وی

بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ

رسیدونکے کعبے ته یا به کفاره وی خوراک دَ مسکینانو

اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ

یا برابر دَ دے روژے نیول دی دا دَ دے دَ پاره چه اوڅکی

وَبَالَ اَمْرِهٖ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ؕ

سزا دَ کار خپل - معاف کړيدی الله تعالیٰ دَ هغے نه چه مخکښ څه تیر شوی دی -

وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ؕ وَاللّٰهُ

او څوک چه را وګرځی و حلال ګڼړلو دَ ښکار نه نو بدله به واخلی الله تعالیٰ دَ هغه نه - او الله تعالیٰ

مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ دا خوف ایمانی دے چه دَ وجے دَ یرے دَ غضب او عذاب دَ الله تعالیٰ نه دَ حرام صید نه ځان ساتی - بِالْغَيْبِ دا په محل دَ حال کښ دے یعنی په غیر دَ لیدلو دَ دهٔ نه الله تعالیٰ لره او دا عوره ایمان دے په نسبت دَ هغه چاچه الله تعالیٰ لره که بالفرض اُووینی او بیا یره کوی دا سے په سورة انبیاء ۴۹ کښ دی یا غیب نه مراد زړه او اخلاص دَ زړه دے - فَمَنِ اعْتَدٰى مراد دَ دے نه ښکار کول دی په حالت دَ احرام یا حرم کښ - فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ مراد به دُنیا کښ سزا ده چه ورپسے

عَزِيْزٌ ذُوانْتِقَامٍ ﴿٩٥﴾ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ

زور اور دے بدله اخستونکے دے . حلال کړے شوے تاسو لره ښکار دَ اوبو

ایت کښ ذکر ده یا عذاب اخروی په شرط دَ توبه نه کولو دے .
ف۹۵ په دے کښ تفصیل دَ حکم دَ ښکار کولو دے په حالت دَ احرام کښ او دا دنیوی عذاب (سزا) دے . او لَا تَقْتُلُوا الخ دا بیان دَ ابتلاء دے په طریقه دَ نهی سره . او قتل عام دے که په ذبح کولو سره وی که په مرئ خفه کولو سره وی او که په ګټه ویشتلو سره وی او دا عام دے هر یو دَ ښکار او ژوندی ځیز ته که خوراک ئے شرعًا حرام وی او که حلال وی او دَ دے نه په حدیث دَ صحیحین کښ پنځه ځیزونه مستثنیٰ دی کارغه، تپوس، لړم، منږک (موږه) او حمله کوونکے سپے او مار هم په یو روایت کښ دَ لړم په ځائے ذکر دے . وَ اَنْتُمْ حُرُمٌ دا عام دے ناریته او زنانو ته او که په حرم کښ وی او که بهر وی . مُتَعَمِّدًا یعنی احرام ئے یاد وی چه زهٔ په احرام کښ یم او قتل کولو کښ هم اراده لری نو دا قصدًا شو . امام زهری وئیلی دی چه په سنت سره دَ خاطی او ناسی (هیروونکی) هم دا حکم معلوم شوی دے نو دا دَ جمهور اهلِ علمو مذهب دے . فَجَزَآءٌ عبارت پټ دے یعنی فعلیه جزاء . مِثْلُ دا بدل دے دَ جزاء نه ، خبر دے دَ مبتدا پټ یعنی هُوَ مِثْلُ . مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ مِنْ بیان دَ مَا دے یعنی مقتول دَ نعم (څاروی) نه وی یا بیان دے دَ مثل . او مماثلت دوه قسمونه دے یو مماثلت په شکل او خلقت کښ دے او دویم مماثلت په قیمت کښ ، قول دَ جمهور اهلِ علم دا دے چه دَ کومو ځیزونو مماثل صوری شته نو هغه به په جزاء کښ لازم وی او چه مماثل صوری ئے نه وی نو بیا به په بدل کښ قیمت ادا کیږی او قول دَ امام ابو حنیفه دا دے چه مماثل دَ قیمت په هر حالت کښ مراد دے اول قول غوره دے ځکه چه دَ صحابه کرامو نه روایات نقل دی په باره دَ مماثلتِ صوری کښ . او نَعَم لفظ عام دے شامل دے څاروؤ او مارغانو دواړو ته . يَحْكُمُ بِهٖ ضمیر مثل ته یا جزاء ته راجع دے یعنی مماثلت صوری او قیمت به په فیصله دَ دوه عادلانو سره ثابتیږی په دے شرط چه دَ هغوی په دے باب کښ

وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۚ وَحُرِّمَ

او خوراک دَ هغې فائده ده تاسو لره او قافلې والو لره او حرام کړے شویدے

عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ۗ

په تاسو باندے ښکار کول دَ اوچے ځمکے چه احرام کښ یئ .

تجربه وی- هَدْيًا یعنی عادلان چه په کوم مثل څاروی فیصله اوکړی نو دَ هغې حکم به دَ هدی وی په اشعار او په قلاده اچولو کښ- بٰلِغَ الْكَعْبَةِ مراد دَ کعبة نه حرم دے او بلوغ نه مراد ذبح کول دی په حرم کښ- دا اګرچه هدی ده لیکن تقسیم به یُے په مساکینو پورے خاص وی ځکه چه دادم دَ جنایت دے- اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ دا عطف دے په جزاء باندے او عَلَيْهِ لفظ پټ دے او دا کفاره ده دَ صید نه دَ هدی دَ عدم وجود نه ده- یعنی قیمت دَ صید (قتل کړے شوی) باندے به طعام واخلی نو هغه به مسکینانو ته ورکړی هر مسکین ته نیم صاع دَ غنمو ته ورکوی-

اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا یعنی دَ هر نصف صاع په ځائے دِ یوه روژه اونیسی-

تنبیه- دَ اکثر اهل علم مسلك دا دے چه اَوْ دَ پاره دَ تخییر (اختیار) دے یعنی دَ دے جنایت کوونکی خوښه ده که دَ مثل دَ صید نه هدی جوړه کړی حرم کښ یُے ذبح کړی یا په هغې باندے غنم واخلی او نصف صاع هر مسکین ته ورکړی یا دَ هر نصف صاع په بدل کښ یوه روژه اونیسی- او دَ بعض سلفو په نیز باندے اَوْ دَ پاره دَ ترتیب دے-

لِيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ دا علت دَ دغه جزاء دے یا لفظ دَ شَرَعَ ذٰلِكَ پټ دے- وَبَالَ په اصل کښ دروند والی او بوج ته وئیلے شی مراد تری نه سزا دَ جرم ده- اَمْرِهٖ دَ دے نه مراد بے عزتی کول دَ حرم او دَ حکم دَ الله تعالیٰ دی- عَمَّا سَلَفَ مراد قتل دَ صید مخکښ دَ نزول دَ دے ایت نه دے یا په جاهلیت کښ چه کوم تیر شویدی نو هغه الله تعالیٰ معاف کړے دی-

فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ اشاره ده عذاب دَ دُنیا او دَ اخرت ته لیکن سره دَ دے نه په نیز دَ اکثر اهل علم جزاء به هم ورکوی په مخکښ طریقے سره- اشاره ده چه اصرار په ګناه باندے سبب دَ غضب دَ الله تعالیٰ دے-

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٩٦﴾

او یریږئ دَ الله تعالیٰ نه هغه ذات دے چه هغه ته به جمع کیدی شئ۔

جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا

مقرر کړیده الله تعالیٰ کعبه (شریفه) کور عزت والا سبب دَ ژوند

۹۶ مخکښې حکم ذکر شو ابتلاء په حالت دَ احرام کښې او دَ هغې سزا او س دلته ذکر کوی ابتلاء په حرم کښې په تقسیم دَ صید سره۔ اُحِلَّ لَكُمْ خطاب دے مسلمانانو ته په عامو حالاتو کښې سره دَ حالت دَ احرام نه۔

صَيْدُ الْبَحْرِ دَ لوندے ښکار هغه کوم چه دَ هغې ژوند په غیر دَ اوبو نه تشی کیدلے۔

وَطَعَامُهٗ فرق دا دے چه صید هغه دے چه تازه وی او طعام هغه دے چه مالګه وریاندے واچوی او ډیر وخت پورے ساتلے کیږی۔

دویم فرق دا دے چه صید هغه دے چه انسان یې دَ دریاب نه په څه طریقے سره یا په څه آلے سره ژوندے را اوباسی، او طعام هغه دے چه دریاب یې مړ را اوغورځوی او دلیل په هغې باندے حدیث دَ بخاری او مسلم دے چه صحابه کرامو ته دریاب یو مهے (کب) را غورځولے وو او هغوی تر نیمه اتلس ورځے خوراک کړیوو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې دَ هغې نه څه حصه (غوښه) اوړلے وه۔ او کوم حدیث چه په باره دَ منع دَ سَمَكِ طَافِی کښې راغلے دے هغه محدثینو ضعیف کړے دے او قرطبی په هغې باندے تفصیلی بحث کړے دے۔

مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ اول قسم په حال دَ حضر کښې او دویم قسم په حالت دَ سفر کښې بکار راځی۔

وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ ښکارکول او ښکار دَ بچ کول او ښکار خوړل (په دے شرط چه دَ هغه دَ پاره ښکار شوے وی یا هغه امر کړے وی) نو داټول حرام دی۔ او دا تحریم په دے سورت کښې درے کرته ذکر شوے دے په ۱ او ۹۵ او په دے ایت کښې دا دَ ډیر تاکید دَ پاره۔

او وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ الخ دا هم دَ تاکید دَ حرمت دَ پاره دے۔

لِلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ

دَ پاره دَ خلقو او میاشت عزت والا او هدیے

وَالْقَلَآئِدَ ؕ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ

او امیلونو والا څاروی ـ دا دے دَ پاره چه تاسو پوهه شئ (یقین اوکړئ) چه بیشکه الله تعالیٰ

یَعْلَمُ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ

عالم دے په هغه څه چه په اسمانونو کښ دی او په هغه څه چه په زمکه کښ دی

وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿۹۷﴾

او یقینًا الله تعالیٰ په هر څه باندے پوهه دے ـ

۹۷ دا په منزله دَ علت دے دَ ماقبل دَ پاره یعنی تحریم دَ صید دَ برّ راوچے) دَ پاره دَ احترام دَ کعبے دے. جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ دا جعل تشریعی او تکوینی دے الْكَعْبَةَ کعب اوچت ځائے ته وئیلے شی کعبه هم په اوچت ځائے باندے ده په وادئ دَ مکه کښ او دارنګ اوچتے مرتبے والا ده ـ الْبَیْتَ الْحَرَامَ دا عطف بیان دے دَ الکعبة دَ پاره دَ مدح، نه دَ پاره دَ توضیح (وضاحت) ځکه چه لفظ کعبه دَ هغے نه ډیر واضح دے ـ قِیٰمًا لِّلنَّاسِ یعنی نظام زندګی او دین پدے سره قائمیږی اول دا چه په هغے کښ امن دے او هر قسم میوے او غلے راوړل دی حرم ته نو حصول دَ امن او دَ لوګے ته یې کیدل سبب دَ حیاة طیبه دے او دوئم (قیام دینی) دَ دے وجے نه دے چه په حج او عمرے سره اقامت دَ دین راځی او په دے لفظ کښ اشاره ده چه ترڅو پورے کعبه په مخ دَ زمکے باندے موجود وی نو دنیا به نه فنا کیږی په حدیث دَ بخاری کښ راغلی دی چه دَ قیامت نه وړاندے به یو پنډ وَرحبشی کبجا تلونکے پدے باندے حمله اوکړی او دا به اونړوی نو بیا به قیامت قائم شی ـ
وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ دا اسم جنس دے مراد دَ دے نه څلور میاشتے دی محرم ذوالحجه، ذوالقعده او رجب چه مشهور وؤ په رجب مضر سره دا هم قیام دے په سبب دَ حرمت دَ قتال سره په هغے کښ او یو بل له امن ورکول ـ وَالْهَدْیَ هغه څاروی چه حرم ته لیږلے کیږی او دَ غنمو څاروُ

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ

پوهه شئ چه يقيناً الله تعالىٰ سخت عذاب وركوونكے دے (نه منونكوته) او يقيناً

اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٩٨﴾ مَا عَلَى الرَّسُوْلِ

الله تعالىٰ بخونكے دے رحم كونكے دے (منونكوته) نيشته په رسول باندے

په اړخ باندے به اشعار وى دلالت به كوى چه دے ته ركاوټ (لاړنيول) اچول حرام دى او په دے سره به امن حاصليږى د پاره د سفر كوونكو حرم ته۔ وَالْقَلَآئِدَ هغه هدايا چه حرم ته اوړلے شى او د هغے په غاړه ځه اميل اويزان كړى او دا ئے جدا ذكر كړو ځكه چه په دے كښ د عام هدايا نه ثواب ډير دے او داهم سبب د امن دے د دغه هدايو او د هغه محرم شخص چه سفر كوى حرم ته او بعض كسانو به ځان ته هم داسے قلاده اچوله په وخت د سفر كولو كښ حرم ته خو دا د جاهليت رواج وو اسلام كښ داخاص دے په ځاروو پورے۔ او د دے درے الفاظو نه روستو قِيٰمًا مراد دے حاصل دا دے چه د كعبے احترام چه په دغه درے څيزونو سره جارى وى سره د حج او عمرے نه تو دنيا په ابادۀ وى دا د عامو انسانانو قيام دے او امن قيام دے د پاره د مكے والو۔

سوال۔ په سورۃ نساء ۵ كښ اموالو ته قيام وئيلے دے نو ايا دا دواړه پوشان دى؟

جواب۔ هلته ئے لكم قيامًا وئيلے دے يعنى مال د هر شخص د ژوند د پاره ذريعه ده او كعبه وغيره سبب دے د ژوند د ټولے دنيا نو د مالونو فائده انفرادى ده او د كعبے فائده اجتماعى ده۔ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اه دا فائده ده د ماقبل او مراد د دے اثبات د توحيد فى العلم دے او رد دے د شرك فى العلم او اشاره ده چه حج او عمره كوونكى لره بالخصوص دا عقيده ساتل او دا عبرت اخستل ضرورى دى۔ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ دا تعميم دے روستو د تخصيص نه۔ په اوله جمله كښ عموم د علم وو او په دے جمله كښ احاطه د علم ذكر ده۔

ف ۹۸ په دے كښ تاكيد دے د پاره د عمل كولو په ماقبل احكامو باندے چه په مخالفت كولو سره تخويف او په موافقت كولو سره بشارت دے

إِلَّا الْبَلٰغُ ۚ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۹۹﴾

مگر رسول دی۔ او الله تعالیٰ پوهه دے په هغه څه چه ښکاره کوئ تاسو او په هغه څه چه پټوئ تاسو.

قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ أَعْجَبَكَ

نه وړنه او وایه نه دی برابر پلیت او پاک اګرچه تعجب کښې اچوی تا لره

كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓأُولِي الْأَلْبَابِ

ډیر والے دَ پلیت۔ پس او یرېږئ دَ الله تعالیٰ نه اے خالص عقل والو

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

دے دَ پاره چه کامیاب شئ۔ اے ایمان والو!

ع ۱۳ ۴

او اشاره ده چه ایمان په مینځ دَ خوف او رجا کښې دے۔

۹۹ په دې کښې هم تاکید دے دَ پاره دَ عمل کولو په ما قبل باندے په دوه طریقو سره اوله مَا عَلَى الرَّسُوْلِ إِلَّا الْبَلٰغُ یعنی ستاسو عذر په کوتاهئ کولو سره قبول نه دے بلکه دَ رسول په بلاغ سره په تاسو باندے حجت قائم شو، او إِلَّا الْبَلٰغُ حصرِ اضافی دے یعنی توفیق دَ هدایت او ثواب وعذاب دَ رسول په ذمه باندے نیشته۔ دویمه طریقه وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اه یعنی احوالِ ظاهری او باطنی او موافقت ستاسو الله تعالیٰ پیژنی او په دې کښې اشاره ده چه جزا او سزا په اختیار دَ الله تعالیٰ کښې دی۔

۱۰۰ روستو دَ تاکیداتو نه ترغیب دے صالح عقائدو او اعمالو او اخلاقو ته او تحذیر دے دَ خبیث نه او په دې کښې جواب دَ وهم دے هغه دا دے چه خلق په عامو حالاتو او کارونو کښې صرف کثرت ته اعتبار ورکوی لکه جمهوریت په دے زمانه کښې؟ حاصل دَ جواب دا دے چه دَ پاک او پلیت فرق ضروری دے کثرت ته اعتبار نیشته لکه په سورة انعام ۱۱۶ کښې دی۔ لَا يَسْتَوِي مراد دَ دے عدمِ استواء ده په نیز دَ الله تعالیٰ او په احکامِ شرعیه کښې۔ الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ خبیث ئې مقدم کړو دَ کثرت دَ وجې نه دویم دا چه وهم کوونکی خبیث دَ طیب سره برابر ګڼړی دَ هغوی تردید مقصد دے۔ او قرطبی وئیلی دی چه دا دواړه لفظونه عام او شامل دی کسبونو، عملونو،

لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْیَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ

پېوس مه کوئ د داسې څیزونو که ښکاره شي تاسو ته (جواب د هغې)

تَسُؤْكُمْ ۚ وَاِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِیْنَ

خفه به کړي تاسو او که پېوس کوئ د دغه څیزونو په وخت د

یُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ۭ عَفَا اللّٰهُ

نازلیدلو د قرآن کښ نو ښکاره به شي تاسو ته (جواب د هغې). معاف کړيدي الله تعالی

عَنْهَا ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِیْمٌ ۝۱۰۱ قَدْ سَاَلَهَا

د هغه تپوسونو نه. او الله تعالی بخونکے صبر کوونکے دے. یقیناً تپوس کړیوو د داسې څیز د تو

انسانانو او عقیدو او علمونو ټولو ته. او حلال مال او حرام، مسلم او کافر، مخلص او منافق او صالح او فاسق وغیره ټول مراد دي او داسې مضمون په سورة اعراف ۵۸ سورة ص ۲۸ سورة جاثیه ۲۱ قلم ۳۵ کښ هم دے.

وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِیْثِ دا اعجاب طبعي غیر اختیاري دے نو نبي صلی الله علیه وسلم ته خطاب دے یا مراد د دے نه خوشحالي او تکبر کول دي نو خطاب هر هغه مخاطب ته دے چه خبیث او طیب کښ فرق نه کوي.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ تقوی داده چه د خبیث نه ځان بچ کړے اګرچه ډیر دي او طیب قبول کړے اګرچه لږ وي. یَاُولِی الْاَلْبَابِ اشاره ده چه د دے فرق د پاره هغه خالص عقل پکار دے چه په حقائقو د څیزونو پاندے فکر کوي نو هغوي خبیث د طیب سره نه مساوي کوي. لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ دلته فلاح نه مراد حصول د هغه درجاتو د قربِ الٰهي دے چه د طیبین د پاره خاص کړے شوے دي.

۱۰۱ ربط دا دے هر کله چه د خبیث او طیب په فرق ایزده کولو باندے تېزي ور کړے شوه نو اوریدونکو د هغې وجے نه ډیر تپوسونه شورو کړل نو اوس د تپوس کولو ادب ذکر کوي او ربط په اعتبار د مضمون سره دا دے چه هر کله خبیث عقائد او اعمال او خوراکونه (لکه نذر د غیر الله) وغیره په معاشره کښ ډیروي نو په دغه وخت کښ

بے ضرورته او بے حاجته او اختلافی مسائلو کښ بحث کول او دَ هغے دعوت کول جائز نه دی ځکه چه عاقبت په داشی چه شرک او کفر او بدعات به ډیر شی او عام به شی ځکه دَ هغے مخ نیوے به نه کیږی او دَ هغے په وجه سره به موّحدین خفه وی۔

تنبیه۔ افسوس دے په هغه کسانو باندے چه په یو علاقه او کلی وغیره کښ دَ کفر او شرک فتنه په ترقئ سره موجود وی او دغه کسان په اختلافی عملی مسائلو کښ بحثونه او دعوت او مناظرے کوی او دَ شرک او کفر مقابلے نه کوی۔ يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اشاره ده چه مقتضیٰ دَ ایمان داده چه فرق اوکړے شی په مینځ دَ ضروری او غیر ضروری مسائلو کښ۔ لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ پدے کښ سوال دَ عبدالله بن حذافه داخل دے چه سوال ئے دَ نبی صلی الله علیه وسلّم نه په باره دَ پلار خپل کښ کړے وو چه مَنْ أَبِيْ "بخاری او مسلم دا روایت کړے دے دارنګ دَ بل سړی سوال چه (أَيْنَ أَنَا قَالَ فِى النَّارِ) زه به کوم ځائے یم جواب اوشو نه به په اور کښ ئے او په بل روایت کښ دی (أَيْنَ أَبِىْ قَالَ فِى النَّارِ) دا روایت ابن جریر ذکر کړے دے ابن کثیر وئیلے دی چه سند ئے کره دے دارنګ سوال دَ سړی چه أَيْنَ نَاقَتِیْ (زما اوښه کوم ځائے ده) دا هم دَ بخاری روایت کښ دی۔ دارنګ هغه سوال چه په حدیث دَ مسند احمد کښ دی چه نبی صلی الله علیه وسلّم ایت دَ فرضیت دَ حج او لوستلو نو یو سړی تپوس اوکړو أَفِى كُلِّ عَامٍ (ایا هر کال فرض دے) داخو په وخت دَ نزول دَ وحی کښ واقع شو یدی نو په دے ایت کښ صراحةً داخل دی او دَ دے نه علاوه نور سوالات (چه روستو ذکر کیږی) هغه هم داخل دی په اعتبار دَ عموم دَ ایت سره لکه ابن حجر فتح الباری کښ وئیلے دی چه په دے کښ هغه سوالونه چه په طریقه دَ استهزاء وی یا په طریقه دَ امتحان وی یا په طریقه دَ تعنت (ضد) وی هم داخل دی او ابن قیم اعلام الموقعین کښ وئیلے دی چه حکم دَ دے ایت اوس هم منقطع نه دے لکه چه دَ عمر رضی الله عنه ملګری دَ صاحب الحوض نه تپوس کړے وو چه ستا حوض ته سباع (درندګان) راځی نو عمر رض او فرمائیل دَ دے خبر مونږ ته مه راکوه۔

إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ یعنی چه جواب اوشي نو بیا تپوس کوونکے خفه وی او دا جمله صفت مقیده دے دَ اشیاء دَپاره او دا قید احترازی دے نو معلومه شوه چه ضروری تپوس کول خو بکار دی لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ فاسئلوا اهل الذکر الایة سورة الانبیاء ک او نحل ۳۳ نو دَ دواړه آیاتونو تعارض نیشته۔ دارنګ هغه قید لګولو ته حاجت نیشته کوم چه بعض مفسرینو لګولے دے (بما لا تدعوالیه حاجة) ځکه دا فائده په دغه جمله (ان تبد لکم تسؤکم) سره معلومه شوه۔

وَإِنْ تَسْأَلُوا عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْآنُ تُبْدَ لَكُمْ په دے کښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه زجر دے او تاکید دَ لا تسألوا دے یعنی دَ قرآن نزول شورو دے او تاسو دغه بے ضرورته تپوسونه کوئ نو ضرور به په قرآن کښ جواب راځئ او تاسو به بیا خفه یئ نو ولے داسے تپوسونه کوئ۔

دویم دا چه مخکښ جمله کښ ابداء ئے سبب دَ مساءت اوګرځوو نو په دے جمله کښ طریقه دَ ابداء ذکرکوی چه هغه نزول دَ وحی دے په باره دَ هغه سوال کښ۔

دریم قول دَ خازن دے یعنی که چرے تاسو صبر اوکړو تر دے چه په قرآن کښ یو حکم نازل شی او دَ هغے شرحے ته محتاج یئ نو تپوس اوکړئ نو جواب به درکړے شی نو بیا په دے تفسیر ترغیب دے سوال کولو ته په وخت دَ ضرورت کښ۔

عَفَا اللَّهُ عَنْهَا په دے کښ دوه توجیه دی اول دا چه دا جمله مستانفه ده او اشاره ده چه دغه قسم تپوسونه ګناه ده لیکن الله تعالیٰ (دَ نهی دَ نزول نه وړاندے) هغه تاسوته معاف کړی دی۔

دویمه توجیه دا ده چه دا بل صفت دے دَ اشیاء دَپاره یعنی داسے اشیاء چه الله تعالیٰ دَ هغے په باره کښ قرآن نه دے نازل کړے او په تاسو ئے لازم کړے نه دی دَ وجے دَ وسعت نه په تاسو باندے یا دا چه پریخودلے دے الله تعالیٰ دَ هغے بیان دَپاره دَ دے چه تاسو خفه نه شئ (دا توجیه دَ ترکیب په لحاظ ډیره بعیده ده)۔

وَاللَّهُ غَفُورٌ یعنی ګناهونه بخی حَلِيمٌ او مستحق دَ عذاب نه عذاب روستو کړی او هغه ته تادیب درکړی۔

قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ أَصْبَحُوا بِهَا كٰفِرِينَ ﴿۱۰۲﴾

يو قوم مخكښې ستاسو نه بيا شول دوی په وجه دَ هغې كافران .

ت ۱۰۲ په دے كښې اشاره ده دويمے وجے دَ نهی دَ سوال ته يعنی دَ دا سے سوالونو جوابونه چه اوشی نو دَ كراهيت او يا ګنړلو په وجه سره مخالفت اوشی نو سبب دَ كفر اوګرځی او قَوْمٌ نه مراد بنی اسرائيل او نور مكذبين دی لكه قوم صالح ع معجزه دَ ناقے (اوښے) طلب كړے وه او قوم موسیٰ ع رويت دَ الله تعالیٰ طلب كړے وو او قوم دَ عيسیٰ ع مائده طلب كړے وو. قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مراد دَ دے نه سَأَلَ مِثْلَهَا دے او مما تلت په دے كښې دَ چه بے ضرورته وو او سبب دَ خفګان او وبال وو.

فائده : تفسير قاسمی كښې ليكلی دی چه په دے كښې داخل دی تفريعات كول په داسے مسئله باندے چه په هغې باندے كتاب او سنت او اجماع كښې دليل نيشته او وجود دَ هغې هم نادر وی په هغې باندے بے ضرورته وخت ضائع كوی. دا رنګ په دے كښې داخل دے بحث كول دَ هغه امورو غيبيه نه چه شرع كښې حكم دے دَ هغې په ايمان باندے اجمالاً په غير دَ تفصيل دَ كيفيت نه لكه مسئله دَ صفات الٰهيه يا مسئله دَ عذاب قبر شوه چه دَ هغې دَ كيفياتو نه بحث كيدے شی او دليل منصوص ورسره نه وی. او امام شاطبی په موافقات كښې لس صورتونه ذكر كړے دی دَ پاره دَ كراهيت دَ سوال. ع۱ سوال دَ هغه خيز چه فائده په دين كښې نه وركوی. ع۲ سوال دَ هغه خيز چه كافی بيان دَ هغې اوشی. ع۳ سوال دَ هغه خيز چه هغه وخت كښې ئے ضرورت نه وی. ع۴ سوال دَ اغلوطاتو (غلطيانو) چه جواب ئے نه وی. ع۵ سوال دَ علتونو دَ احكام شرعيو چه په شرع كښې هغه ذكر نه وی. ع۶ سوال دَ هغه امورو چه تكلف پيدا كوی ع۷ سوال په معارضه دَ كتاب او سنت كښې بخپله رائے سره. ع۸ سوال دَ متشابهاتو نه ع۹ سوال دَ مشاجراتو دَ صحابه كرامو نه. ع۱۰ سوال په طريقه دَ تعنت (ضد) سره دَ پاره دَ چپ كولو دَ عالم.

مثالونه ئے په ترتيب سره دادی مثال دَ اول په حديث دَ حذيفة رضـ مَنْ أَبِيْ. يا دَ هلال په باره كښې تپوس چه څه سبب دے چه هلال نرے دی او

مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ

نه دی جائز کړی الله تعالیٰ خه غوږ شلیدلے — او نه ازاده پرېخودلے شوے

وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ

او نه پیوست کړے شوے — او نه بچ شار (ملا) والا، لیکن — هغه کسان چه

كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ

کافران دی جوړوی — په — الله تعالیٰ باندے — دروغ.

وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝۱۰۳ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ

او ډیر د دوی نه عقل نه لری. — او کله چه اوئیلے شی دوی ته

بیا لوئیږی. دَ دوېم سوال مثال په پاره۸ دَ حج کښې اَفِیْ کُلِّ عَامٍ دَ پنځم سوال مثال لکه سوال چه په حائضه باندے قضاء دَ صلوٰة ولے نیشته دَ شپږم مثال صاحب دَ حوض نه تپوس کول چه ستا حوض ته درندګان راځی نو عمرؓ اوئیل دا خبر مونږ ته مه راکوه او دَ نورو مثالونه ډیر موجود دی نو معلومه شوه چه دا ټول په لا تسئلوا کښې داخل دی.

سّ۱۰۳ ربط دا دے چه مخکښې ذکر شوه چه داسے سوالونه مکوئ چه سبب دَ تحریم دَ څیزونو اوګرځی نو اوس منع کوی دَ باطل تحریم کولو نه په مستقل طور سره. او اشاره ده چه بے ضرورته بحثونه مه کوئ هاں رد کوئ په رسمونو شرکیو باندے چه دا ضروری خبره ده. نو په دے ایت کښې رد دے دَ تحریم لغیر الله. مَا جَعَلَ اللّٰهُ دا دَ مخکښې جَعَل سّ۹۷ مقابل دے دلته هم دَ جعل نه مراد حکم او شرع جوړول دی (مَا شَرَعَ. مَا حَكَمَ. مَا اَمَرَ).
مِنْۢ بَحِيْرَةٍ من دَ پاره دَ استغراق او دَ تاکید دے. قرطبی دَ سعید بن المسیب نه نقل کړے دے چه بحیره هغه مؤنث څاروے دے (اوښه غوا، بیزه) چه دَ هغے پئ دَ پاره دَ آلِهَهٔ باطله بند کړے یعنی څوک یئ ځان دَ پاره لوشلے نه شی او دَ هغے غوږ یئ سیرے کړے وی دَ نښے په طور باندے او دَ امام شافعی او ابن عزیز نه روایت کړے شوے دے چه دا هغه اوښه وه چه پنځه کرته به لنګه شوه نو که پنځم به نر بچے وو

نو دوی به وئیل چه دا نارینو او زنانه دواړو دَ پاره حلال دے او که مؤنث بچے به ووُ نو دوی به دَ هغے غوږ سیرے کړو نو دَ هغے پئ او غوښه به ئے په زنانو حرام ګنړله. او عکرمه وئیلے دی چه دَ هغے ټول منافع به ئے یعنی پئ، وړئ وغیره به ئے په زنانو باندے حرام ګنړل او چه مړه به شوه نو بیا به دَ زنانو دَ پاره حلاله وه. او بخاری دَ سعید بن مسیب په روایت سره وئیلے دی چه دَ دے پئ ئے دَ طواغیت دَ پاره خاص کول. وَلَا سَآئِبَةٍ، قرطبی او خازن وغیره ذکر کړے دی چه جاهلیت کښې به څوک بیمار شو یا به ئے څوک قریب (خپلوان) ورک شو نو دوی به دَ الله تعالیٰ په نوم دَ یو اوښے نذر اوکړو نو هغه به ئے آزاده پریخودله چه په هغے باندے به ئے بار اوړل، سورلی کول منع ګنړل او هرچا لره دَ اوبو دَ قصل نه دَ هغے منع کول ئے سبب دَ ضرر ګنړلو. او دَ سعید په روایت کښې امام بخاری نقل کړے دی. چه دا به ئے دَ الهو په نوم باندے آزادوله او دا رنګ امام رازی هم ذکر کړے دی چه دا دَ اصنامو په نوم وه او اختیار دَ دے به ئے دَ اصنامو منجورانو ته ورکوؤ.

وَلَا وَصِيلَةٍ، خازن وئیلے دی چه دا بیزه (چیلئ) وه چه اووه کرته به لنګه شوه نو که اوم به نر ووُ نو ذبح به ئے کړو او دوی به نارینه او زنانه دَ پاره حلال ګنړلو او که مؤنث به ووُ نو په ګڼړو بیزو کښې به ئے پریخودلو او که جوړه به پیدا شوه نو دوی به وئیل وَصَلَتْ أَخَاهَا (دا مؤنث دَ خپل ورور په حکم کښې شوه) نو دواړه به ئے نه ذبح کول. او ابن اسحاق نه روایت دے چه دا هغه بیزه وه چه لس مؤنث بچی به ئے پرله پسے راوړل نو دوی به وئیل وَصَلَتْ، نو دَ دینه روستو به ئے چه بچی راوړل نو هغه به ئے دَ نارینه دَ پاره حلال او زنانه دَ پاره حرام ګنړل. او دَ دے باره کښې هم بخاری وئیلے دی چه دا به ئے دَ طواغیت په نوم ګرځوله. وَلَا حَامٍ، قرطبی وئیلے دی دا هغه اوښ مذکر ووُ چه لس اوښے به دَ هغه نه بلارېے (رمال) شوے نو دوی به دَ هغه په ملا باندے دَ طاؤس وزر اولګوؤ او په هغه باندے به ئے سورلی کول او بار اوړل منع کړل او دَ اوبو او ګیاه نه به نه شو منع کیدلے آزاد به پریخودلے شو او امام بخاری وئیلے دی چه دا به ئے هم دَ

طواغیت په نوم بانده پرېښودلو۔
تنبیه۔ ابن کثیر وئیلي دي چه عمرو بن لحی بن قمعه دَ خزاعه قبیلې مشر وؤ دَ خزاعه قبیلې او بنی جرهم نه روستو دَ بیت الله متولی کرځیدلے وؤ او اول شخص وؤ چه دین ابراهیم یې بدل کړو او بت پرستی یې دَ شام نه عربوته راوړله او دا رسوم بحیره، سائبه وغیره یې په دوی کښې رائج کړل او حدیث دَ بخاری کښې راغلے دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه ما عمرو بن عامر خزاعی په اور دَ جهنم کښې اولیدلو چه خپلې کولمې یې په اور کښې ځان پسې راښکلې۔
وَلٰكِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يَفْتَرُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ دا جواب دَ وهم دے چه هر کله الله تعالیٰ دا حکم نه دے کړے نو دغه خلقو دا کار ولې کول؟
حاصل جواب دا دے چه دوی الله تعالیٰ ته په دروغه نسبت کوؤ چه مونږ ته الله تعالیٰ داسې حکم کړے دے او دا دین ابراهیمی دے لکه چه سورة اعراف ۲۸ کښې دی۔ یعنی دعوی یې کوله چه مونږ په دے کښې دَ الله تعالیٰ حکم منو او حال دا دے چه الله تعالیٰ داسې حکم نه دے کړے۔
وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ (سوال) کافران خو ټول بے عقله دی لکه په نورو آیاتونو کښې دی نو دلته یې اکثر ولې اوئیل؟
جواب۔ ابن جوزی دَ امام شعبی نه نقل کړے دے چه دلته دَ اکثر نه مراد اتباع او عوام دی هغوی په دے نه پوهیږی چه زمونږ مشرانو او پوهه خلقو په الله تعالیٰ بانده افتراء کړے ده نو دوی دَ هغوی تقلید کوی۔
فائده۔ په حکم شرعی دَ بحیره، سائبه، وصیله او حام کښې اختلاف دے دَ اهلِ علمو۔ اکثرو وئیلي دي چه دا شرعًا حلال دی او په تحریم دَ خلقو سره دا نه حرامیږی لکه چه دَ نورو تحریمات لغیر الله حکم دے او بعضو وئیلي دي چه دا ټول حرام دی هغوی وائي ما جعل په معنی دَ ما احل دے لیکن صحیح دا ده چه په دے کښې تفصیل دے که په دے څیزونو کښې دَ تحریم سره دغه مشرکانو دَ خپلو طواغیتو په نوم بانده ځه کړځولے وی لکه چه مونږ دَ بخاری روایت په باره دَ بحیره دَ سائبه او وصیله او حام ځلورو واړو کښې ذکر کړے دے نو بیا خو دا حرام دی ځکه چه ندر دَ

تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ

راشئ هغې ته چه نازل کړې دے الله تعالیٰ او (راشئ) رسول ته

قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ط

دوی وائی پوره ده موږ لره هغه لار چه موندلے دی موږ په هغې مشران خپل.

اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ

اګر چه وو مشران د دوی نه پوهیدل په

شَيْئًا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

هیڅ څیز د دین باندے او نه ئے صحیح لار موندلے ده. اے ایمان والو!

غیرالله د تحریم سره خلط شوید ے او حکم د نذر د غیرالله دا دے چه حرام دے لکه په "ما اهل لغیرالله به" کښ دا تفسیر دے او که چرے په دے څیزونو کښ صرف تحریم وی او نذر پکښ نه وی خلط شوے لکه په بعض تفسیرونو کښ دا سے راغلے دی تو بیا حلال دی پښان د نورو تحریماتو لغیرالله او د دے وجے نه الله تعالیٰ لفظ د ما جعل ذکر کړے چه عام دے یعنی الله تعالیٰ د دے څیزونو امر نه دے کړے نو که حلال وی او که حرام وی دلته ئے دا سے نه دی ویلے چه لا تحرموا یا احل الله لکم لکه چه په نورو تحریماتو د غیرالله کښ دا سے ذکر کړے دی.

س۱۰۴ په دیکښ زجر دے په تقلید کولو د جاهلانو او ابطال دے د دلیل د باطل پرستانو چه اتباع د اباؤ ده یعنی دوی په شرکیاتو او په حرولو د بحیره سائبه وغیره کښ دلیل شرعی نه لری بلکه دلیل ئے طریقه د مشرانو ده. وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمْ مجهول صیغه د پاره د تعمیم د قائلانو ده یعنی چه "هر څوک او هر وخت چه هغوی ته دا دعوت ورکړے شی".

تَعَالَوْا دا لفظ د خپلے مادے (علو) په وجے سره په هغه اواز کښ ذکر کیدے شی چه ترقئ طرف ته بلنه وی. اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ اشاره ده چه قرآن او حدیث دواړه مستقل شرعی دلیلونه دی او د دے وجے نه لفظ د اِلٰى ئے مکرر ذکر کړے دے او دا سے په سورة النساء[۶۱]

کښې هم ذکر دی . معلومه شوه چه حجت په دین کښې قرآن او حدیث دے او
اجماع او قیاس خو په دغے دواړو باندے بِنا دی که دَ دے نه مستند
وی نو هغه اجماع او قیاس مقبول دے او که دَ دے نه مستند نه وی
نو مردود دی . قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا په لفظ دَ حسبنا کښې
ډیر تاکید دَ جهل دَ دعوی دے یعنی قران او سنت ته حاجت نه ګنړی
ځکه چه طریقه دَ مشرانو پوره ګنړی او دا مستلزم دے اعراض لره دَ
قران او سنت نه - اٰبَآءَنَا مراد دَ دے نه دَ دوی دَ مسلک علماء او
مشران دی لکه چه امام راغب په مفردات کښې لیکلے دی صرف دَ عمر په لحاظ سره مشران
مراد نه دی . اَوَ لَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ همزه دَ استفهام انکاری دے او واو
دَ پاره دَ عطف دے ما قبل معطوف علیه پټ دے یعنی اَحَسْبُهُمْ یا یَقُوْلُوْنَ
هذا، یا یتبعونهم او لَوْ وَصْلِيَه دے شرطیه نه دے نو ما قبل کښې تقدیر
دَ اعلیٰ حال دَ اباؤ مراد دے حاصل دا چه تابعداری ( دَ هغه اباؤ چه
عالمان او هدایت والا وی ) په کارونو دَ شرک کښې او په بے دلیله خبرو کښې
جائز نه ده نو چه بے علمه او بے هدایته وی نو په طریقه اولیٰ سره جائز
نه ده او دا رد دے دَ قول دَ دعوی چه حسبنا اه دے .
لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا مراد دَ شئ نه دلیل او حق دے لیکن نفی دَ علم دَ
حق او دَ دلیل پشان دَ نفی دَ علم مطلق ده مبالغةً . وَلَا يَهْتَدُوْنَ
مراد دَ اهتداء نه عمل کول دی په دلیل شرعی باندے یعنی نه عالمان
دی او نه هدایت والا دی بلکه جاهلان او ګمراهان دی . او خازن، رازی
او نسفی وغیره دلته لیکلے دی چه معلومه شوه چه اقتداء دَ عالم
مهتدی صحیح ده په دے شرط چه قول دَ هغه په حجت او برهان او دلیل
باندے بِنا وی . نو که عالم مهتدی وی لیکن یو قول ئے بے دلیله وی
نو دَ هغه تقلید هم جائز نه دے . نو دا ایت دلیل دے په رد دَ تقلید
باندے په شرعیاتو کښې ځکه چه تقلید په معنیٰ دَ قبلولو دَ قول دَ غیر
دے په شرعیاتو بغیر دَ دلیل یا دَ معرفت دَ دلیل نه رد دے تفصیل
په سورة بقره ۱۷۰ کښې تیر شوے دے ) .
سوال - په دے ایت کښې تردید دے دَ تقلید دَ مشرکانو په اباؤ
ګمراهانو پسے نو تقلید دَ امامانو متقیانو په دے باندے څه رنګ

قیاس کید ے شی ؟
جواب ۔ ابن قیم په اعلام الموقعین کښ او ابن ابی العز حنفی په رساله الاتباع کښ دَ دے جواب ذکر کړے دے حاصل دَ هغے جواب دا دے چه په قیاس او تشبیه کښ دا ضروری نه ده چه دَ مقیس علیه یا مشبه به ټول صفات دِ په مقیس یا مشبه کښ موجود وی بلکه یو علت مشترکه او وجه شبه مشهوره کافی ده دَپاره دَ اثبات دَ قیاس او تشبیه کولو نو هغه دلته قبولول دَ قول دَ مشرانو دی بغیر دَ دلیل نه برابره خبره ده که مشران علماء وی او که جاهلان وی. هاں تقلید په شرک کښ عین شرک دے او په بدعت کښ عین بدعت دے او تقلید په نورو احکام شرعیه کښ تفصیل ته محتاج دے او دا مقام دَ تفسیر دَ هغے گنجائش نه لری.
فائده :- پدے مضمون کښ ایاتونه په سورۃ بقره ۱۷۰ او سورۃ لقمان ۲۱ او سورۃ زخرف ۲۲ ۲۳ کښ شته دے لیکن په بعض تعبیراتو کښ فرق دے یو فرق په وجدنا او الفینا کښ دے دَ هغے وجه دا ده چه إلفاء اکثر استعمالیږی په امور معقوله علمیه کښ او وجدان عام دے امور محسوسه او معقوله دواړو کښ استعمالیږی نو په سورۃ بقره کښ ذکر دے دَ محبت دَ غیر الله او دَ هغے سره اتباع دَ خطوات الشیطان ده او دا امور معقوله علمیه ( پټ ) دی نو هلته ئے الفینا ذکر کړو او په سورۃ مائده کښ ئے بحیره سائبه وغیره امور محسوسه ذکر کړو او په سورۃ لقمان او زخرف کښ ئے امور عقلیه او محسوسه دواړه مراد دی نو په هغه سورتونو کښ عام لفظ ( وجدنا ) ذکر کړے شو.
دوېم فرق په حسبنا او بل نتبع کښ دے وجه دا ده چه په سورۃ مائده کښ رد دے په عاداتو او رسوماتو شرکیو باندے او په هغے کښ جاهلان ډیر کلک وو نو لفظ دَ حسبنا ذکر شو او په نورو سورتونو کښ په عقیده دَ شرک باندے رد وو چه دَ هغے پریخودل دَ عاداتو نه اسان دی په ایمان راوړلو یا په منافقت کولو نو په هغے کښ صرف لفظ نتبع ذکر کړے دے.
دریم فرق په سورۃ بقره کښ لا یعقلون ذکر دے او په سورۃ مائده کښ لا یعلمون دے وجه دا ده چه عقل په امور عقلیه کښ ذکر کیږی او سورۃ بقره کښ دَ محبت وغیره ذکر وو چه هغه امور عقلیه باطنیه دی

عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ ۚ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ

لازم دہ پہ تاسو باندے ذمہ واری دَ ځانونو ستاسو، ضرر نہ درکوی تاسو تہ هغه څوک چه ګمراه وی

اِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۗ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ

کله چه تاسو هدایت اوموندلو ۔ خاص الله تعالیٰ ته ۔ ورګرځیدل دی ستاسو

جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

دَ ټولو ، نو خبر به درکړی تاسو ته په هغه عملونو چه کوئ یے تاسو ۔

او علم په امور عقلیه او محسوسه دواړو کښ استعمالیږی نو په سورة مائدة کښ ذکر وؤ دَ امور محسوسه نو هغے سره لفظ دَ علم ډیر مناسب دے او په سورة لقمان کښ ذکر دَ مجادلے وؤ سرهٔ دَ نفی دَ علم ته نو دوباره نفی دَ علم او عقل ته ضرورت نه وؤ او مجادله په سبب دَ وسوسے دَ شیطان سره وی نو دا هلته دَ شیطان وسوسه (دعوت) یے ذکر کړه (او الله تعالیٰ په خپلو رازونو یا ندے ښهٔ پوهیږی) ۔

ف۱۰۵ ربط دَ دے ایت دَ مخکښ سره قرطبی دَ جابر بن زید نه نقل کړے دے هغه دا دے چه هر کله به یو کس اسلام راوړو نو کافرانو به ورته وئیل چه تا خپل مشران کم عقل اوګڼړل او ګمراه دِ اوګڼړل نو که زمونږ مشران بے علمه بے هدایته وؤ نو ستا مشران هم داسے وؤ نو په دے ایت کښ دَ هغے جواب ذکر کوی ۔

یا ربط دا دے چه هر کله مشرکانو ته دعوت ورکړئ دَ کتاب الله او سنتِ رسول الله صلی الله علیه وسلم طرف ته او هغوی یے تردید اوکړی نو خفګان او غم مه کوئ ځکه چه روستو دَ دعوت نه دَ هغوی ګمراهی تاسو ته ضرر نه درکوی ۔

عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ ، علیکم اسم فعل دے په معنیٰ دَ الزموا سره یعنی لازم اونیسئ اصلاح دَ خپلو ځانونو په تابعداری دَ کتاب او سنت سره (کله چه مخالفین یے نه منی) ۔

لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ یعنی دَ هغوی دَ ګناه په تاسو باندے اثر نه پریوځی که هغوی حسبنا ما وجدنا ... وائی یا عناد کوی په قول

او په عمل. دا رنګ ستاسو هغه مشران چه ګمراه تیر شوی دی دَ هغوی دَ ګمراهئ په تاسو باندے بد اثر او عیب او ګناه نیشته۔
إِذَا اهْتَدَيْتُمْ، اهتداء دا ده چه تاسو اتباع دَ قران او سنت کوئ او امر بالمعروف او نهي عن المنکر دَ خپل طاقت موافق کوئ۔
إِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا عام خطاب دے ګمراهانو او هدایت والا ته او په دے کښ تخویف او بشارت دواړو ته اشاره ده۔
فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ مراد دَ نباء نه جزا او سزا ورکول دی او شر بیني و ثیلي دی چه اشاره ده چه هیڅوک دَ بل چا په ګناه باندے نشی نیولے کیدے۔
سوال۔ دَ دے ایت نه معلومیږی چه امر بالمعروف او نهي عن المنکر (دعوت و تبلیغ) ته حاجت نیشته ځکه چه هر انسان دَ خپل ځان ذمه وار دے او حال دا دے چه ډیر ایاتو نه او احادیث په فرضیت دَ دعوت او تبلیغ باندے دلالت کوی؟
جواب[۱]۔ په ایت کښ مقصد تسلی ورکول دی مؤمنانو ته که ستاسو پلاران ګمراهان تیر شویوی او نور کافران په کفر او ګمراهئ کښ پراته وی نو ستاسو نه دَ هغوی په باره کښ هیڅ تپوس نیشته او نه په تاسو باندے څه ضرر شته لکه چه رسول صلی الله علیه وسلم ته خطاب دے فلا تذهب نفسك عليهم حسرات" سورة فاطر ٨ او زمخشری و ئیلي دی چه دا سے هغه مؤمن دے چه افسوس نه کوی په حال دَ فاسقانو فاجرانو باندے دَ هغوی دَ ګناهونو دَ وجے نه او دَ هغوی منکرات او عیبونه ذکر کوی نو په دے ایت کښ هغه ته تسلی ده۔ نو حاصل دَ ایت دا دے چه ګمراهی دَ بل چا مطیع ته ضرر نه ورکوی او ایت دَ ترک دَ دعوت یا فرضیت دَ هغے نه ساکت دے دا جواب زمخشری، قرطبی، او قاسمی اول ذکر کړے دے۔
جواب[۲]۔ دا ایت صریح دے په وجوب دَ امر بالمعروف او نهي عن المنکر کښ دَ ډیرو وجوهو نه، اول دا چه دَ عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ مهالئی معنیٰ لیکلے ده چه په تاسو باندے اصلاح دَ خپلو نفسونو لازم ده په اتباع دَ کتاب او سنت او په دعوت کولو او امر بالمعروف او نهي عن المنکر کولو سره په هغے کښ کوتاهی مه کوئ نو دَ هغے نه روستو چه څوک

ګمراهي کوي نو په تاسو هيڅ وبال نيشته. دويمه وجه مخکښې په ربط کښې ذکر شوه چه دا ايت دَ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ الخ نه روستو دے يعني اول خو دعوت کتاب او سنت ته ورکړئ نو هرکله چه دوی او وائي حسبنا ما وجدنا عليه اباءنا او ستاسو دعوت رد کړي نو بيا تاسو ذمه وار نه يئ. دريمه وجه ابن کثير، قرطبي او رازي وغيره دَ عبد الله بن مبارک نه روايت ذکر کړے دے چه دا اوکد (پوخ) ايت دے په وجوب دَ امر بالمعروف او نهي عن المنکر کښې ځکه چه انفسکم نه مراد اهل دينکم او اهل جنس ستاسو دی لکه فاقتلوا انفسکم (بقره ۵۴) کښې دا معنیٰ ده او دا رنګ حديث دَ ابوداؤد، ترمذی او احمد وغيره دَ قيس په روايت سره دَ ابوبکر رضی الله عنه نه نقل دے حاصل يې دا دے چه ابوبکر رضی الله عنه دا ايت اولوستلو او فرمائيل يې چه تاسو دا لولئ او بے ځايه تاويل يې کوئ او نه پوهيږئ چه دَ دے مطلب څه دے بيا يې ورپسے حديث مرفوع دَ نبي صلی الله عليه وسلم په باره دَ تاکيد دَ دعوت کښې ذکر کړے دے او دا رنګ ترمذی حديث دَ ابو ثعلبه خشني ذکر کړے دے چه دَ دے ايت په باره کښې دَ نبي صلی الله عليه وسلم نه تپوس کړے شوے وو نو هغه او فرمائيل امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوئ هلته چه حالات بدل شي (چه روستو ذکر کيږي) نو بيا صرف دَ ځان غم او فکر کوئ او هغے ته ايام صبر ويلے شي. دا حديث هم قرطبي شربيني او ابن کثير وغيره ذکر کړے دے.

جواب ۳. دَ ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دے حاصل يې دا دے چه دَ هغه نه دَ دے ايت تپوس کړے شوے وو نو هغه او فرمائيل چه دَ قران کريم مختلف ايات دی يو قسم هغه دی چه تاويل يې تير شوے دے. دويم هغه دی چه تاويل يې په زمانه دَ نبي صلی الله عليه وسلم کښې واقع شوے دے دريم قسم هغه وی چه تاويل يې دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ زمانے نه لږ روستو واقع دے څلورم هغه دی چه تاويل يې په ورځ دَ حساب واقع کيږي. نو هرکله چه دَ زړونو اوخواهشاتو اختلاف راشي او ډلے په تاسو کښې ډيرے شي نو بيا دَ خپل ځان ذمه وار يئ او دَ عامو کار (دعوت) پريږدئ دغسے

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ

اے ایمان والو ! وصی جوړول دَ مینځ ستاسو

إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ

کله چه نیږدے شی یو تن ستاسو ته مرګ ته په وخت دَ وصیت کولو کښ

اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ آخَرَانِ مِنْ

دوه تنه دِ وی انصاف والا ستاسو نه یا نور دوه تنه سیوا

غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ

ستاسو نه که تاسو سفر کوئ په زمکه کښ

فَأَصَابَتْكُم مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ تَحْبِسُونَهُمَا

پس اورسی تاسو ته مصیبت دَ مرګ ۔ ایصاروئ به دے دواړو لره

مِن بَعْدِ الصَّلَاةِ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ

روستو دَ مانځه (دَ مازیګر نه) نو قسم به کوی دواړه په الله تعالیٰ

إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا

که شک کوئ تاسو ، (وائی به دوی) نه اخلو مونږه په دے سره عوض

روایت دَ ابن عمر رضی الله عنهما نه هم نقل دے (دا دواړه روایات ابن جریر په سند سره راوړے دی) حاصل دا دے چه دَ دے ایت محمل او مصداق اخره زمانه ده (چه په حدیث دَ خشنی کښ ذکر دی چه هر کله دَ حرص اطاعت او دَ خواهش تابعداری او دَ دنیا غوره والے او لوئی کول دَ هر ذی رائے په خپله رائے باندے اووینے نو بیا دَ عوامو کار (دعوت) پریږدئ۔ حاصل دا شوه چه اوس خو امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئ دَ دے ایت دَ وجے نه دغه کار مه پریږدئ۔

وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ ۙ

اګر چه وي خپلوان او نه پټوو موږه شهادت د

اللّٰهِ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ فَاِنْ عُثِرَ

الله تعالی، یقینًا دغه وخت به موږ خامخا د ګنهګارو نه یو۔ پس که خبر او کړے شو

۱۰۶ ربط دا دے چه مخکښې ایت کښې ئې حفاظت د نفوسو ذکر کړو نو په دے ایت کښې حفاظت د مالونو ذکر کوي په طریقه د وصیت او د قسم سره۔ او بعض مفسرینو وئیلي دي چه دا ایت ډیر ګران ایت دے په اعتبار د اعراب او نظم او حکم سره، واحدي په بسیط کښې د عمر رضي الله عنه نه دا سے نقل ذکر کړے دے او ابن عطیه وئیلي دي چه دا قول د هغه چا دے چه زړه د هغه د دے ایت په تفسیر سره یخ شوے نه وي۔ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا اشاره ده چه معاملاتِ مالیه په شرعي طریقې سره حل کول د ایمان تقاضا ده۔ شَهَادَةُ بَیْنِكُمْ مراد د شهادت نه اشهاد (حاضرول) دي په وخت د وصیت کښې او بعضو وئیلي دي چه مراد د دینه قسم دے ځکه چه د شهادت ډیرے معنے دي قریبي دلته بعض ذکر کړے دي۔ بَیْنِكُمْ په اصل کښې مابینکم وو نو ما د اختصار د پاره حذف شو۔ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِذَا ظرفیه دے او حَضَرَ په معنیٰ د قَرُبَ (نزدے شي) دے یا مراد د دے نه دا دے چه اسباب د مرګ حاضر شي او دا تاویل د دے وجے نه کیږي چه هر کله مرګ حاضر شي نو بیا خو خبرے نشي کولے۔ حِیْنَ الْوَصِیَّةِ دا بدل دے د لفظ د اِذَا نه او په دے کښې تنبیه ده په اهتمام د وصیت باندے۔ او دلته مراد وصیت کول په مال سره نه دي بلکه وصي ګرځول په باره د مال کښې دي۔ اثْنَانِ دا خبر د شهادت دے په تقدیر د لفظ د شهادت سره۔ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ یعني اسلام او عدالت دواړه پکار دي عدل په مقابل د فسق کښې دے۔ اَوْ اٰخَرَانِ مِنْ غَیْرِكُمْ په دے کښې د اهل علمو اختلاف دے اکثرو وئیلي دي چه مراد د دے نه غیر مسلم دي او بعضو وئیلي دي چه مراد د منکم نه ستاسو اقرباء او غیرکم نه مراد اجانب (پردي) دي او بنا په اول قول باندے شهادت د کافر په مسلمان باندے ثابت شو نو پدیکښې

اختلاف دے بعضو وئیلي دي چه دا ایت منسوخ دے په ایت "لَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا" سره۔ او اکثرو وئیلي دي چه دا منسوخ نه دے او په سورة مائده کښې منسوخ ایت نیشته نو شریح او اوزاعي نه نقل دے چه شهادت دَ کافرانو خاص دے په سفر پورے او په وصیت پورے فقط۔ او ابن قیم په اعلام الموقعین او امام رازي په تفسیر کبیر کښې په قول دَ نسخ باندے یا معنیٰ دَ غَيْرِكُمْ په اجانب سره سخت تفصیلي رد کړے دے۔

اِنْ اَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ اشاره ده چه دا سے ضرورت په وخت دَ سفر کولو کښې پیش راځي۔

تَحْبِسُوْنَهُمَا اشاره ده چه دوي مدعا علیهما اوګرځي نو دوي دَ تختیدلو کوشش کوي دَ دے وجے نه لفظ دَ حبس ئے ذکر کړو۔

مِنْۢ بَعْدِ الصَّلٰوةِ مونځ دَ مازیګر مراد دے یا مطلق مونځ دے او دا تقیید دَ قسم دے په وختِ حاضر پورے دَ پاره دَ تاکید دَ قسم او دا صحیح دے په اتفاق دَ علماؤ سره او بل دا چه په وخت دَ صلوٰة کښې به معلومه شي چه دا وصیان مسلمانان دي او که کافران اهلِ ذمه دي)۔

فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ یعني په دوي باندے دعوٰی چه اوکړے شي په باره دَ خیانت کولو سره په وصیت ادا کولو کښې او دوي تریته انکار اوکړي او نور ګواهان دَ مدعي دَ پاره نیشته نو منکر باندے قسم وي دَ دے وجے نه دوي به قسم کوي۔ بِاللّٰهِ دا دلیل دے چه قسم په الله تعالیٰ پورے خاص دے اګر چه اهل ذمه کافر دي نو هم به قسم ورکیدلے شي په الله تعالیٰ سره ځکه چه هغوي الله تعالیٰ او قسم بالله لره مني۔ اِنِ ارْتَبْتُمْ ارتیاب نه مراد په هغوي باندے دعوٰی کول دي په سبب دَ شک کولو سره په وصیت ادا کولو کښې اشاره ده چه بغیر دَ دعوے نه مدعا علیه ته قسم نه شي ورکیدلے۔

لَا نَشْتَرِيْ بِهٖ ثَمَنًا دا جواب قسم دے، اشتراء په معنیٰ دَ حصول دَ عوض ده بِهٖ ضمیر اسم دَ الله تعالیٰ ته یا قسم ته راجع دے او ثَمَنًا په معنیٰ دَ عوض دنیوي دے یعني مونږ دَ الله تعالیٰ نوم کَ دے دَ پاره

عَلَىٰٓ اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ اِثْمًا فَاٰخَرٰنِ

پس که خبره چه یقیناً دے دواړو کړی دے ګناه (په دروغ قسم کولو سره) نو نور دوه کسان

يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ

اودریږی به په ځائے د دے دواړو د هغه کسانو نه چه

اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ

دعوی د حق شو بدله په هغوی باندے چه نیزدے دی دا دواړه مړی ته، نو قسم به کوی

بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا

په الله تعالیٰ چه خامخا زمونږ بیان رشتینے دے د بیان د دغه دواړو نه

وَمَا اعْتَدَيْنَآ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰۷﴾

او زیاتے نه دے کړے مونږه، یقیناً مونږ به دغه وخت د ظالمانو نه یو۔

نه دے ذکر کړے چه دنیوی غرض پرے حاصلوو بلکه زمونږ مقصد د حق اقامت دے۔ وَلَوْكَانَ ذَا قُرْبٰى، کان ضمیر راجع دے هغه چا ته چه د هغه د پاره قسم کوی (مقسم له) یا په هغه باندے شهادت ورکوی اودا جمله تاکید دے چه حلف (قسم) زمونږ د دروغو نه پاک دے۔

وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللّٰهِ هغه شهادت چه الله تعالیٰ مونږ ته د هغے علم راکړے دے او دا هم تاکید د ما قبل دے۔

ﺳﻜﺘﺎ دا تتمه د ما قبل ده یعنی حکم دے روستو د نیکاره کیدلو د دروغو نه په قسم کښ۔ فَاِنْ عُثِرَ عثرة په اصل کښ غورځیدلو ته وئیلے شی په یو څیز باندے۔ او په معنیٰ د اطلاع راځی لکه په سورة کهف کښ "اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ" او د دے فعل (عثر) نائب فاعل ماده د دے فعل ده یعنی حَصَلَتِ الْعَثْرَةُ۔ عَلَىٰٓ اَنَّهُمَا دا ضمیر اثنان (وصیانو) ته راجع دے۔ اسْتَحَقَّآ اِثْمًا استحقاق په معنیٰ د کولو د هغه فعل دے چه موجب او سبب وی د یو کار د پاره۔ اِثْمًا نه مراد ګناه د خیانت دے په حصول د مالِ حرام سره یا په دروغه قسم کول دی۔ یعنی روستو د فیصلے نه په قسم د منکرینو سره معلومه

شي چه دا قسم دوی په دروغه کړے دے نو هغه فیصله به ماته کړے شي.
فَاٰخَرَانِ دا صفت دے او موصوف پټ دے یعنی رجلانِ اٰخران۔
یَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا هُمَا ضمیر راجع دے اثنان ته (یعنی چه اول قسم ئے په دروغه کړے وو) او دا قیام په کولو دَ قسم کښ دے او دا په هغه وخت کښ دی چه روستو دَ ښکاره کیدلو دَ خیانت نه مخکښ د دواړه کسان دعوی دَ ملکیت دَ هغه څیز اوکړی او ورثه دَ هغے نه انکار کوی نو حق دَ قسم ثابت شو په ورثوٴ باندے دَ انکار دَ وجے نه. مِنَ الَّذِیْنَ اسْتَحَقَّ عَلَیْهِمُ مِنْ بیان دَ اٰخران دے اِسْتَحَقَّ دا په معنیٰ دَ ثبت الحق علیهم دے نو مادہ دَ فعل فاعل دے یا فاعل حزف دے (چه حذف دَ هغے نه جائز دائی نو هغه الیمین دے) او دَ حق نه مراد دعوی دَ ملکیت ده او هغه سبب دَ قسم کولو دے یعنی په سبب دَ دعوے دَ اول دواړه کسانو دَ ملکیت حق ثابت شو په ورثوٴ باندے دَ قسم کولو. الْاَوْلَیٰنِ دا تثنیه دَ اولیٰ ده او اولیٰ په معنیٰ دَ اقرب دے یعنی هغه وارثان چه مړی ته زیات نزدے وی په نسب کښ او دا فاعل دَ استحق نشی کیدلے نو دا خبر دَ مبتدا محذوف دے یعنی هُمَا اَوْلَیٰنِ یا بدل دے دَ اٰخران نه یا دَ ضمیر دَ یقومان نه۔
لَشَهَادَتُنَا اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا دا مضمون دَ قسم دَ دوی دے او شهادت په معنیٰ دَ قسم دے اَحَقُّ په معنیٰ دَ صدق او حق دار دَ قبلولو دے او احق کښ تفضیلی معنیٰ مراد نه ده نفسِ صدق او استحقاق دَ قبولیت مراد دے۔
اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِیْنَ هر کله چه په دویم قسم کښ زیات تاکید پکار دے دَ وجے دَ رد کولو دَ اول نه دَ دے وجے نه دلته ئے ظالمین اوئیل او مخکښ ئے اٰثمین وئیلے وو. حاصل دَ معنیٰ دَ دواړو آیاتو نو دا دے چه په حال دَ سفر کښ په یو شخص باندے مرګ راشی او دَ ده سره مال وی نو دوه کسانو ملګرو ته دِے وصیت اوکړی هغوی په صفت دَ ګواهانو هم دی او وصیان هم دی او وصیت کښ دِے دا اووائی چه زما دا مال زما ورثوٴ ته اورسوئی. هغوی هغه مال چه ورثوٴ ته اورسوی او ورثه وریاندے دَ خیانت دعوی اوکړی او دوی انکار کوی دَ خیانت نه نو دوی باندے قسم کول لازم شو. هر کله چه

وخت روستو په څه وجے سره معلومه شی چه دوی واقعی خیانت کړے دے
او قسم ئے په دروغه سره کړے وۀ نو دوی د خیانت نه بچ کیدلو د پاره
دعوٰی اوکړی د ملکیت د هغه څیز او ورثه د هغوی د ملکیت نه انکار
اوکړی نو بیا به ورثوٴ ته قسم ورکړے شی که هغوی قسم اوکړو نو محکمئ
فیصله به ماته کړے شی او هغه وصیان به د خیانت ذمه وار شی او که
ورثوٴ د قسم کولو نه انکار اوکړو نو محکمئ فیصله به په خپل ځائے باندے
پاتے شی۔

تنبیه۔ د دے ایت د فهم د پاره ذکر د سبب نزول ضروری دے او هغه
امام بخاری په کتاب الوصایا او ترمذی په کتاب التفسیر کښ ذکر کړے
دے حاصل ئے دا دے چه بدیل بن ورقاء السهمی په سفر د تجارت
کښ شام ته ملګرے شو د تمیم داری او د عدی بن بدا سره او دا دواړه
په هغه وخت کښ نصارٰی وۀ په واپسئ کښ په بدیل باندے د مرګ
حال راغے نو هغه د خپل سامان فهرست اولیکلو او په خپل سامان کښ
ئے پټ کیخودلو او دے دواړو ته ئے وصیت اوکړو چه دا سامان زما
په زما ورثوٴ ته اورسوئ نو هغوی د هغه سامان نه یو جام چه د سپینو
زرو وۀ او میخونه پرے د سرو زرو وهلے شوے وۀ پټ کړو او
مکه کښ ئے خرڅ کړو او باقی سامان ئے د هغه ورثوٴ ته ورکړو
(او د تمیم په روایت کښ دی چه دا جام مونږ په زر روپئ باندے
خرڅ کړے وۀ او هغه روپئ ما او عدی تقسیم کړے وے) ورثوٴ
چه هرکله فهرست د سامان اوکتلو نو په هغے کښ د جام ذکر وۀ او په
سامان کښ موجود نه وۀ نو هغوی په دغه دواړو باندے د خیانت
دعوٰی اوکړله او هغوی انکار اوکړو نو هغوی ته ئے قسم په الله تعالٰی
باندے ورکړو نو هغوی په دروغه باندے قسم اوکړو۔ بیا څه
وخت روستو معلومه شوه چه هغه جام دوی په مکه کښ په یو
شخص باندے خرڅ کړے وۀ نو ورثوٴ بیا دعوٰی اوکړه په
هغه دواړو باندے چه جام دوی پټ کړے وۀ او بیا ئے خرڅ کړے
دے نو هغوی اوئیل چه هغه جام مونږ د بدیل صاحب نه په
ژوندونی اخستے وۀ لیکن مونږ سره ګواهان نه وۀ نو مونږ د دے

ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى
دا طریقه خه نیزدے ده دیته چه راتلل به کوی دوی په شهادت سره په طریقه دَ
وَجْهِهَآ اَوْ يَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌۢ بَعْدَ
هغے (دَ وجے دَ یرَ دَ الله نه) یا به اوبریږی چه واپس به شی قسمونه دَ دوی پس دَ
اَيْمَانِهِمْ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ؕ وَاللّٰهُ
قسمونو دَ دوی نه. او بریږئ دَ الله تعالیٰ نه او واورئ. او الله تعالیٰ
لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ؑ ﴿۱۰۸﴾ يَوْمَ
توفیق نه ورکوی قوم نافرمان ته. په کومه ورځ چه



وجے نه مخکښ دَ هغې ذکر نه وؤ کړے نو دا دوی دعوی دَ ملکیت اوکړله او ورثؤ ترینه انکار اوکړو نو قسم ورکړے شو ورثؤ ته (او دَ ورثؤ په حق کښ فیصله اوشوه) او دا آیت دَ هغه واقعے په باره کښ نازل شوے دے.

۱۰۸ په دے کښ دَ ماقبل طریقے فائده ذکر کوی یعنی په شهادت او په قسم کښ دَ دروغو نه دَ بچ کیدلو دَ پاره دا طریقه ده. ذٰلِكَ ماقبل طریقے دَ فیصلے ته اشاره ده اَنْ يَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ ضمیر دَ يَاْتُوْا راجع دے موصٰی لهما ته چه په اثنان کښ ذکر وؤ یا راجع دے هغه ټولو خلقو ته چه په یو معامله کښ شهادت ورکوی یا قسم کوی. عَلٰى وَجْهِهَآ وجه په معنیٰ دَ حقیقت او دَ طریقه اصلی ده. اَوْ يَخَافُوْٓا (سوال) اَوْ خو دَ پاره دَ تردید او دَ تنویع او تخییر راځی دلته خو دَ ماقبل سره دَ دے هیڅ معنیٰ صحیح نه ده؟ (جواب) اَوْ دَ پاره دَ تنویع دے او معطوف علیه پټ دے یعنی يَاْتُوا بالشهادة على وجهها لخوف الله او يخافوا اه

یعنی صحیح او حقیقی شهادت به کوی دَ یرے دَ الله تعالیٰ نه او دَ وجے دَ یرے دَ هغه دَ عذاب نه (او دا دَ متقیانو حال دے) او یا به یریږی دَ دے نه چه مخکښ قسمونه به ئے دروغژن ثابت شی نو واپس به کړے شی نو په خلقو کښ به اوشرمیږی (او دا دَ عامو خلقو حال دے).

اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌ رد مقابل دے دَ قبول نو دَ ایمان نه مراد قسمو نه

يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ ط

جمع به کړی الله تعالیٰ رسولان پس اوبه وائی څنګه قبول شوی تاسو.

قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ط اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿۱۰۹﴾

دوی به وائی هیڅ علم نیشته مونږ ته. بیشکه ته خه پوهه یې په ټولو غیبونو.

دَ موصٰی الیهم دی چه خیانت یې کړے وی یا رد په معنیٰ دَ پیش کولو دے نو ایمان اول نه مراد قسمونه دَ ورثوٴ دی او دوېم ایمانهم نه مراد قسمونه دَ موصٰی الیهم دی۔ وَاتَّقُوا اللّٰهَ په دے کښې تقوٰی دَ خیانت کولو نه په مالونو او قسمونو کښې داخل ده۔ وَاسْمَعُوْا سماع دَ قبولیت مراد ده او په عمل کولو کښې په احکامو الٰهیو باندے دَ سماع او قبولیت دیر دخل دے دَ دے وجے نه امر دَ سماع یې ذکر کړو۔
وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفَاسِقِيْنَ اشاره ده چه فسق کول سبب دَ حرمان دے دَ هدایت دَ الله تعالیٰ نه او دلته دَ فسق نه مراد تقوٰی او سمع پریخودل دی او دَ هدایت نه مراد هدایت دَ جنت دے یا هدایت دے دَ فائدو دَ آخرت چه جنت دے او دَ هغے لاره ده۔
۱۰۹ ربط اول دا دے چه مخکښې چه کوم احکام او شرائع ذکر کړل نو اوس تخویف اخروی ذکر کوی دَ پاره دَ تاکید دَ هغه احکامو منلو۔
دوېم دا چه مخکښې یې بعض احکام ذکر کړل نو اوس مسئله دَ عقیدے ذکر کوی چه دَ دے احکامو سره دا عقیده ساتل ضروری دی چه علم غیب خاص دے په الله تعالیٰ پورے انبیاء علیهم السلام هم علم غیب نه لری او دیته دلیل نقلی اجمالی وئیلے شی دَ پاره دَ رد دَ شرک فی العلم۔ درېم قرطبی ذکر کړے دے چه په وصیت او شهادت وغیره کښې بعض خلق اظهار دَ هغه څیز کوی چه دَ باطن دَ هغوی نه خلاف وی نو په دے آیت کښې تخویف ذکر کوی چه دَ الله تعالیٰ نه هیڅ څیز پټ نه دے۔
يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ جمع خو دَ ټولو امتونو سره دَ رسولانو نه ده لیکن سوال دَ انبیاؤ جدا دے دَ سوال دَ امتیانو نه نو دَ وجے دَ شرافت دَ رسولانو نه دَ هغوی سوال او جواب یې جدا ذکر کړے دے

او مراد دَ دے نه ټول رسولان دي سره دَ اخري رسول نه۔
فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ اشاره ده دَ دوی نه دَ تبليغ تپوس نه کوی بلکه دَ حال دَ امت تپوس کوی اجابت مستلزم دے دعوت لره يعنې تاسو دعوت دَ توحيد اودَ دين کړے دے امتيانو ته ليکن هغوی تاسو ته څنګه جواب درکړے دے يا څنګه اجابت (قبوليت) ستاسو کړے شوے دے نو اُجِبْتُمْ عام دے اجابتِ قولی او عملی دواړو ته شامل دے۔
قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا **سوال**۔ دَ سوال دَ انبياؤ نه څه فائده ده ؟
جواب۔ فائده ئې اثبات دَ عقيدے دَ نفي دَ علم غيب دَ هغوی ته دے په دنيا کښ او توبيخ او زجر دے مخالفت کوونکو ته۔
**سوال**۔ انبياؤ ته علم وو چه چا موافقت دَ هغوی کړے دے او چا نه دے کړے نو دَ دے قول څه مقصد دے ؟
جواب ۱۔ په ظاهري اقوالو سره چه کومه پوهه حاصليږي هغه په اصل کښ علم نه دے بلکه ظن دے يعنې دَ اجابت کوونکو په حال باندے علم يقيني زموږ نه وو بلکه صرف ظن وو۔ دا جواب امام رازي ذکر کړے دے۔
جواب ۲۔ دَ قيامت دَ هيبت او دَ فزع دَ وجے نه به انبياء داسے اووائي ليکن قرطبي، خازن او رازي په دے جواب باندے رد کړے دے څکه چه انبياء عليهم السلام په دغه ورځ دَ داسے حالت نه په امن دي لکه چه الله تعالی فرمائي (وَهُمْ مِنْ فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ، وَلَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ)۔
جواب ۳۔ دا قول دَ دوی دَ پاره دَ اظهار دَ انکسار او دَ تواضع دے ليکن مراد دَ دے نه انکسار او تواضع ده په نفس الامر کښ نه په طور دَ دروغو څکه چه انبياء عليهم السلام دَ دروغو نه پاک او معصوم دي۔
په دے دواړو جوابونو باندے بريلويانو خپل استدلال کړے دے يعنې دوی وائي چه انبياء خو په غيب باندے علم لري ليکن دَ هيبت يا دَ تواضع دَ وجے نه ئې وئيلي دي چه لَا عِلْمَ لَنَا ليکن دَ دواړو جوابونو نه موږ ذکر کړل چه صحيح نه دي۔
جواب ۴۔ دَ ابن جريج نه ابن جرير او ابن کثير او قرطبي روايت کړے دے چه دا سوال په باره دَ اجابت کښ دے روستو دَ وفات دَ رسولانو نه نو معنیٰ دَ مَاذَآ اُجِبْتُمْ مَاذَا عَمِلُوْا بَعْدَكُمْ دے (امتيانو

ستاسو نه روستو څه عملونه کړے دی) نو جواب به اوکړی لَا عِلْمَ لَنَا بِمَا اَحْدَثُوْا بَعْدَنَا (علم نيشته مونږ ته په هغه کارونو (اوبدعاتو) چه دے خلقو روستو د مرګ زمونږ نه پيدا کړيدی)۔ او تائيد د دے حديث د حوض کوثر دے چه بخاری او مسلم ذکر کړے دے چه په هغے کښې جواب د ملائکو اخری نبی صلی الله عليه وسلم ته داسے دے اِنَّكَ لَا تَدْرِیْ مَا اَحْدَثُوْا بَعْدَكَ (يقينًا ته نه پوهيږے چه دے خلقو ستا نه روستو کوم بدعات پيدا کړی دی)۔

جواب ۳ ابن جوزی په زاد المسير کښې د ابن الانباری نه روايت کړے دے چه معنٰی داده چه لَا عِلْمَ لَنَا بِجَمِيْعِ اَفْعَالِهِمْ (علم نيشته مونږ ته د دوی په ټولو کارونو باندے) اِذْ كُنَّا نَعْلَمُ بَعْضَهَا فِیْ حَيَاتِنَا (ځکه چه مونږ په بعض کارونو د دوی علم لرو چه زمونږ په ژوند کښې وو) وَلَا نَعْلَمُ مَا كَانَ بَعْدَ وَفَاتِنَا (او نه يو پوهه په هغه کارونو چه روستو د مرګ زمونږ نه وو) او دا قول قريب دے قول د ابن جرير ته ۔ او دليل د صحت د دے دواړو قولونو دا جمله ده اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ دا دليل دے چه مصدر دے په لفظ د اِنَّ سره يعنی علم د ټولو خبرو او د هغه کارونو چه مرګ نه روستو شويدی دا خو علم غيب دے او خاوند د علم غيب صرف ته يې شريک ستا نيشته په علم غيب کښې ۔

فائده ۔ دا ايت صريح دليل دے چه انبياء عليهم السّلام تر مرګ پورے عالم الغيب نه وو او کوم کارونه چه امتيان کوی د هغه اعمالو نه هم انبياء عليهم السلام خبر نه دی او په کوم حديث کښې چه عرض (پيش کول) د اعمالو په نبی باندے ذکر دے روستو د وفات د هغه نه نو هغه حديث د روافضو دے او حديث ضعيف دے نو هرکله چه نبی روستو د وفات نه په اعمالو د امت باندے علم نه لری نو اولياء او بزرګان به څه رنګ علم د غيب اولری د دے وجے نه فتاوی بزازيه (حنفيه) ليکلے دی چه مَنْ قَالَ اِنَّ اَرْوَاحَ الْمَشَائِخِ حَاضِرَةٌ تَعْلَمُ يَكْفُرُ (څوک چه وائي چه د بزرګانو ارواح عالم دی او حاضر دی نو دا شخص کافر دے)۔

إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ

کله چه اوبه وائي الله تعالی اے عیسی ځویه دَ مریم (علیهما السلام) یاد کړه

نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ

نعمت زما په تا باندے او په مور ستا باندے

إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ

کله چه کلک کړے ما ته په روح پاک سره خبرے دِ کولے

النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ۖ وَإِذْ عَلَّمْتُكَ

خلقو سره په غیږه دَ مور کښې او په پوخ عمر کښې او کله چه او خودلو ما تا ته

الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ ۖ

کتاب او سنت او تورات او انجیل

وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ

او کله چه جوړولے تا دَ خټو نه پشان دَ شکل دَ مرغۍ

ربط

سلا دا دلیل نقلی تفصیلی (خاص) دے دَ عیسٰی علیه السلام په نفی دَ علم غیب سره دَ هغه نه، روستو دَ دلیل نقلی اجمالی نه او إِذْ قَالَ بدل دے دَ یوم یجمع الله نه - او هر کله چه په دے سورت کښې رد کړے شوے دے په یهود او نصارٰی دواړو باندے او دَ عیسٰی علیه السلام په باره کښې دواړو کفر کړے وو دَ دے وجے نه خاص دَ هغه ذکر ئے کړے دے۔

تنبیه. حالات دَ عیسٰی علیه السّلام په دوه رکوع کښې دی حاصل دا دے چه په اوله رکوع کښې احتیاج دَ عیسٰی علیه السلام ذکر کوی الله تعالی ته خصوصًا په پنځه ځیزونو کښې اول احتیاج په نعمتونو کښې دویم احتیاج په تصرفاتو (معجزاتو) کښې دریم حاجت په حفاظت کښې دَ شر دَ بنی اسرائیلو نه څلورم حاجت په ملګرو (حواریانو) پیدا کولو کښې۔ پنځم احتیاج په معجزه دَ مائده کښې او په ذکر دَ دے حاجاتو کښې رد دے په نصارٰی باندے چه هغوی عیسٰی علیه السّلام اِله یا ابن الله

بِإِذْنِيْ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا

په حکم زما پس پو کے به کوو تا په هغې کښ نو شوه به هغه مرغۍ

بِإِذْنِيْ وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ

په حکم زما او جوړ وو تا پیدائشی روند او برګی والا

بِإِذْنِيْ وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِإِذْنِيْ

په حکم زما او کله چه راویستل تا مړی (د زمکے نه) په حکم زما

کتړلو او روستو د ذکر د حاجاتو د هغه نه ذکر دے د سوال د هغه نه په ورځ د حشر کښ چه ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اه، یعنی سره د دے نه چه ته محتاج وے نو ایا خلقو ته د خپل عبادت دعوت تا ورکړے وؤ؟ او په دے کښ اختلاف د مفسرینو دے اول قول دا چه دا مکالمه د عیسٰی علیه السّلام روستو د رفع د هغه نه د ه اسمان ته او قال په خپله معنٰی سره دے او لَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ په معنٰی د پوره قبضه کولو او پورته کولو اسمان ته دے او دویم قول دا دے چه دا مکالمه به په اخرت کښ وی او قال په معنٰی د یقول سره دے خو فعل ماضی ئے د یقین د پاره ذکر کړے ده او دا روستو قول اکثرمفسرینو غوره کړے دے او د یوم یجمع نه روستو راوړل هم په دے باندے دلالت کوی چه دا به په قیامت کښ وی او په دے قول سره توفیتنی په معنٰی عامے سره دے یعنی د رفع او وفات نه روستو په ورځ د قیامت کښ هغه به بیان ورکوی چه کنت انت الرقیب علیهم اه۔

اُذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ قرطبی وئیلی دی چه مراد د ذکر نه دا دے چه امت ته ئے بیان کړه د پاره د اظهار د عزت د مور او خوئی او د پاره د تاکید د حجت د هغه۔ نِعْمَتِيْ مفرد په معنٰی د جنس دے چه په هغې کښ نبوت اورسالت د هغه داخل دے۔ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ چه هغه د مس د ناریته نه بچ ساتلے شوے ده او پاکه ساتلے شوے ده او په تورو زناتو باندے غوره والے ورکړے وؤ۔ اِذْ اَيَّدْتُّكَ دا بدل دے د نعمتی بدل بعض یعنی نعمتو نه بے شماره دی لیکن دا مذکور (روستو) خاص نعمتونه دی۔

وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُم

او كله چه بند كړل ما بني اسرائيل ستا (د وژلو) نه كله چه راوړل تا دوئ ته

بِالْبَيِّنَٰتِ فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ

ښكاره معجزات نو اوئيل كافرانو د دوی نه

إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١١٠﴾ وَإِذْ أَوْحَيْتُ

نه دے دا مگر جادو دے ښكاره ـ او كله چه واچوو ما

سوال ـ دا روستو نعمتونه خو صرف په عيسیٰ عليه السلام وو نو د هغه د مور ذكر ئے ولے اوكړو ؟

جواب ـ نعمتونه په اولاد باندے نعمتونه وی په مور د هغوی ځكه چه هغه پرے خوشحاليږی او د هغے تائيد پرے هم كيږی ـ اودا رنگ عيسیٰ عليه السلام پاك امتی د مور بيان كړيده نو دا نعمت دے په مور د هغه باندے ـ بِرُوحِ الْقُدُسِ په دے اضافت كښ دوه قولونه دی او د دے په مصداق كښ هم دوه قولونه مشهور دی ـ اول قول ، دا اضافت د موصوف دے صفت ته يعنی داسے روح چه مقدس (پاك) دے ـ

دويم قول ، دا اضافت په معنیٰ د مِنْ سره دے يعنی رُوحٌ مِّنَ الْقُدُسِ او قدس اسم د الله تعالیٰ دے دا قول خازن ذكر كړے دے او مصداق د دے جبرئيل عليه السلام دے چه د عيسیٰ عليه السلام سره په هر وخت گرځيدلو ـ يا مراد د دے نه روح او نفس د عيسیٰ عليه السلام دے چه پاك وو د خيرو د گناهونو نه ـ تُكَلِّمُ النَّاسَ دا بيان د تائيد د هغه دے په ذكر د خاص حال سره چه هغه تقويت د قوة ناطقه دے په ټولو حالاتو كښ اودا د تائيد يو مثال دے ـ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا داسے په سورة آل عمران ۴۶ كښ تير شويدی او مراد د كلام نه دعوت الی الله دے او كلام د مهد په سورة مريم ۳۰ كښ ذكر دے ـ

سوال ـ په كهولت كښ خو هر څوك خبرے كولے شی نو د دے حالت ذكر ئے ولے اوكړو ؟

جواب ـ په دے كښ ډيرے فائدے دی اول دا چه د كلام د مهد او

دَ کهولت فرق نیشته دویمه دا چه په عیسٰی علیه السلام باندے هغه حالات راځي کوم چه په عام البشر باندے راځي (زوړوکوالے زوړوالے وغیره) دریمه فائده بعض مفسرینو وئیلي دي چه دَ دهٔ نبوت او بیا اسمان ته پورته کول دَ زمانے دَ کهولت نه وړاندے وو نو په کهولت کښې دَ کلام کول مقصد دا دے چه دے به دَ اسمان نه راکوزیږي اوعمر به یې دَ کهولت وي او کلام به کوي. وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ دا عطف دے په إِذْ أَيَّدتُّكَ باندے نو اول نعمت تائید دے په باره دَ دعوت او تبلیغ کښې او دا نعمت په باره دَ علم کښې دے چه شرط دَ دعوت دے.
په الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ کښې دوه قولونه دي اول دا چه کتاب نه مراد ظاهري علم دے کوم چه لیکلے کیږي اوحکمت نه مراد هغه اسرار او باطني علم دے چه بغیر دَ کتابت نه وي. دویم قول دا دے چه دا نعمت دَ نزول دَ عیسٰی علیه السلام نه روستو دے او مراد دَ دے نه قرآن اوسنت دَ نبي صلی الله علیه السلام دے. او وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ ورته مخکښې دَ رفع الی السماء نه خودلے شوے وو اول مکلف وو په تورات باندے بیا وروستو ورته انجیل ورکړے شو لکه په دے سورت ۱۰۵ کښې تیر شویدي. وَإِذْ تَخْلُقُ اه دا هم تفصیل دے دَ نورو نعمتونو او په دیکښې دویم قسم احتیاج دَ هغه ذکر کوي یعني په تصرفاتو معجزانه کښې الله تعالیٰ ته محتاج وو په دلیل دَ لفظ دَ إِذْنِي سره. كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ کاف په معنیٰ دَ مماثلت دے او ضمیر په فَتَنفُخُ فِيهَا او تکون کښې کاف ته راجع دے ځکه چه په هغه کښې معنیٰ دَ تانیث ده. بِإِذْنِي دلته یې مکرر ذکر کړو اشاره ده چه تصویر جوړول په اذن دَ الله تعالیٰ سره دي او مرغۍ جوړیدل هم په اذن دَ هغه سره وو اول اذن شرعي وو او دویم إِذْنِ تکویني دے او په سورة آل عمران ۴۹ کښې اذن یو کرت ذکر کړے دے او دلته دوه کرته، وجه دا ده چه په دے سورت کښې مقصد تفصیل دَ حاجاتو دَ عیسٰی علیه السلام ذکر کول دي.
وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ هغه انسان چه ړوند پیدا شي او سترګے یې بالکل بندے وي دَ هغه دَ علاج نه طبیبان او ډاکټران عاجز وي.
وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي دا هم معجزه دَ عیسٰی علیه السلام ده او صیغه دَ فعل دلالت نه کوي په استمرار او په همیش والي باندے یعني بعض مړي یې

إِلَى الْحَوَارِيِّينَ أَنْ آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي ج

په زړونو د حوارينو کښې　چه ایمان راوړئ　په ما　او په رسول څما ،

قَالُوا آمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ ﴿١١١﴾

اوئیل دوی ایمان راوړے دے مونږه، او ته گواه شه چه یقیناً مونږه　منونکی یو ـ

راویستل - او دا معجزات د پاره د ثقې ورکولو دوئ انسانانو ته ـ
وَإِذْ كَفَفْتُ الخ په دے سره هغه نعمت ذکر کوی چه په هغې کښې دفع د ضرر ده او په دے کښې دریم حاجت (په حفاظت د هغه کښې) ذکر کړے دے یعنی هرکله چه بنی اسرائیلو ته دغه معجزات ئې راوړل نو بعض کسانو کفر اوکړو او معجزاتو ته ئې سحر اوئیل نو بیا ئې د عیسیٰ علیه السّلام د قتل کولو تدبیرونه جوړ کړل لکه چه په سورة آل عمران ۵۴ کښې دی نو الله تعالیٰ د هغوی د شر نه بچ کړو په رفع سره لکه په آل عمران ۵۵ کښې دی - إِنْ هٰذَا دا اشاره ده ټولو معجزاتو ته په تاویل د ما جاء سره ـ
سوال - دا مقام خو د شمار د نعمتونو دے نو طعن د کافرانو (ان هذا الا سحر مبین) ئې ولے ذکر کړو؟
جواب۱ - په دے کښې نعمت کففت دے او إِنْ هٰذَا الخ ئې په طریقه د دشمنئ د هغوی سره ذکر کړے دے ـ
جواب۲ - نیشاپوری وئیلی دی چه طعن کول د دشمنانو په غیر د دلیل نه دلالت کوی په اوچت والی د شان یا ندے لکه چه شاعر وئیلی دی
ـه　وَإِذَا أَتَتْكَ مَذَمَّتِي مِنْ نَاقِصٍ ÷ فَهِيَ الشَّهَادَةُ لِي بِأَنِّي كَامِلُ
معنیٰ د شعر :- کله چه راشی تاته بدی وئیل څما د کم اصل سړی نه نو دا گواهی ده څما چه څه کامل یم ـ او دا رنګ مشهور متل دے کُلُّ ذِي نِعْمَةٍ مَحْسُودٌ ، معنیٰ ، هر څاوند د نعمت سره حسد کیږی ـ
تنبیه :- مرزا غلام احمد قادیانی مدعی د نبوت کذاب او دجال د ډیرو وجونه کافر دے یو وجه دا ده چه هغه خپل کتاب ضمیمه انجام آتهم صـ ۶ کښې د عیسیٰ علیه السلام معجزاتو ته عمل د ترب او جادو وئیلے دے او د دے ایت کښې تصریح ده چه څوک د عیسیٰ علیه السلام معجزاتو ته سحر وئیلے دے نو هغه کافر دے ـ
۱۱۱ روستو د ذکر د نعمتونو لازمه نه ذکر د معنوی نعمتونو کوی ـ او په دے کښې د عیسیٰ علیه السلام څلورم احتیاج الی الله ذکر کوی یعنی

إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ

کله چه اوئیل حوارئینو اے عیسٰی ځویه دَ مریم (علیهما السّلام)

هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ أَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا

ایا اویه مني ستا رب چه رانازل کړی په مونږ باندے

مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ۗ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ

یو دسترخوان دَ اسمان نه ۔ اوئیل هغه اوپریږئ دَ الله تعالی نه

إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١١٢﴾ قَالُوْا نُرِيْدُ

که تاسو مؤمنان یئ ۔ اوئیل دوی غواړو مونږه

حوارئیین ملګری کول دَ عیسٰی علیه السّلام سره۔ لکه چه زمونږ دَ نبی صلی الله علیه وسلم صحابه هم الله تعالی پیدا کړی وُو دَ هغه دَ ملګرتیا اوتائید دپاره لکه چه په سورة انفال ۶۲ کښ دی۔ وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّيْنَ، وحی په لغت کښ پټے اشارے ته وئیلے شی نو کله ئے په وسوسه باندے اطلاق کیږی لکه په سورة انعام ۱۱۳ کښ نو کله الهام ته وئیلے شی لکه په سورة قصص ۷ کښ اوکله فطری تعلیم ته وئیلے شی لکه په سورة نحل ۶۸ کښ۔ نو دلته معنیٰ دَ الهام ده یا په معنیٰ دَ امر سره ده۔ الحَوَارِيِّيْنَ جمع دَ حواری ده او ماخوذ دے دَ حَور نه په معنیٰ دَ سپین والی نو حَوَارِیُّ داسے دوست او ملګری ته وئیلے شی چه مخلص او رازدار وی زړه ئے سپین وی (خالی وی دَ منافقت نه)۔

قَالُوْا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ قاعده دا ده چه ایمان او اسلام یو ځائے ذکر شی نو په هغے کښ فرق مقصد وی نو ایمان صفت دَ زړه دے او اسلام نوم دَ ظاهری اعمالو دے نو دَ دے وجے نه ایمان ئے مخکښ کړو په اسلام باندے۔

۱۱۲ په دے ایت او وروستو ایت کښ تمهید دے دَپاره دَ دُعا دَ مائدے او دَ نزول دَ هغے دا نعمت نه دے دَ دے وجے نه په ماقبل باندے نه دے عطف کړے۔ او په دے واقعه کښ ذکر دَ پنځم احتیاج دَ

أَنْ نَّأْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا وَنَعْلَمَ

| چه خوراک اوکړو | دَ هغې نه | او چه کلک شي | زړونه زموږ | او څه پوهه شو |
|---|---|---|---|---|

عیسٰی علیه السلام د ے الله تعالٰی ته په باره دَ معجزے دَ مائده کښ.
یَا عِیْسَی ابْنَ مَرْیَمَ. مهائیمي وئیلي دي چه د ے خطاب کښ اشاره ده چه موږ
تا عبد دَ الله تعالٰی گڼړو موږ تا ته اله یا ابن الله نه وایو دَ دے وجے ستانه
دُعا غواړو او انزال دَ مائدے ستا په اختیار کښ نیشته. هَلْ یَسْتَطِیْعُ رَبُّكَ
سوال. حواریین خو کامل مؤمنان دي او هغوی الله تعالٰی او دَ هغه صفتونه
پیژني نو دَ هغوی دَ الله تعالٰی په قدرت کښ شک نیشته نو هل یستطیع
ئې ولے اووئیلو؟
جواب. دا استفهام تقریري د ے هل به معنٰی دَ قد سره د ے یا یستطیع په
معنٰی دَ اجابت دَ دُعا د ے او دا تاویلونه په دے سبب سره دي چه خازن
وئیلي دي چه نه دي جائز هیچا له چه وهم اوکړي په حواریین کښ چه هغوی
شک کوؤ په قدرت دَ الله تعالٰی. او بعضو وئیلي دي چه دا په ظاهر باندے حمل
د ے چه هر کله دَ هغوی په زړونو کښ ایمان محکم شوے نه وؤ نو غلط
سوال او دا سے لفظ ئې اووئیلو لیکن اول قول اصح د ے. مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ
په مائده کښ دوه قولونه دي اول دا چه نفسِ تیار طعام ته وئیلے شي (لسان
العرب دَ اخفش نه نقل کړے د ے) دویم دا چه هغه دسترخوان چه په هغې
باندے طعام پروت وي دا سے بعضِ اهل لغت وئیلي دي. او قرطبي وئیلي
دي چه خُوان میز (ټیبل) ته وئیلے شي او حدیث کښ راځي چه نبي صلی الله
علیه وسلم په میز باندے چرے خوراک نه د ے کړے او دا دَ بادشاهانو
کار د ے او په رومال (زمکه) باندے خوړل دَ عربو طریقه ده او مائده کله سفره
ته وئیلے شي.
قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ بنا په اوله توجیه مراد دَ د ے نه تقوٰی ده دَ
معاصي نه او دَ کثرت دَ سوالونو او طلب دَ معجزاتو نه، اِنْ په معنٰی دَ اِذْ د ے
او بنا په دویمه توجیه یاند ے تقوٰی ده دَ شک کولو نه په قدرت دَ الله تعالٰی
کښ او اِنْ په خپله معنٰی سره د ے.

أَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ

چه یقینًا تا رښتیا ویلي دي ‏ او شو به مونږه ‏ په هغې باندې ‏ دَ

الشّٰهِدِيْنَ ﴿١١٣﴾ قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ

ګواهي کوونکو نه (غائبانو ته). ‏ اوویل ‏ عیسٰی ‏ ځوئي دَ مریم (علیهما السّلام)

اللّٰهُمَّ رَبَّنَا أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً

اے الله ! ربه زموږه نازل کړے ‏ په موږ باندې ‏ دسترخوان

مِّنَ السَّمَآءِ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا لِّأَوَّلِنَا

دَ ‏ آسمان نه ‏ چه وي ‏ موږ له اختر ‏ مخکنو زموږ لره

۱۱۳ دا ذکر دَ عذر او دَ سبب دَ طلب دَ مائده دے اودا دلیل دے چه دویمه توجیه (شک کول) صحیح نه ده۔ نُرِيْدُ أَنْ نَّأْكُلَ مِنْهَا، څلور مقاصد یئے ذکر کړے دي اول خوراک کول قرطبي دَ ماوردي نه نقل کړے دي چه دلته مراد خوراک کول دَ پاره دَ حصول دَ برکت دے یعني دَ نَاْكُلَ مِنْهَا نه روستو معطوف علیه پټ دے لِنَنَالَ بَرَكَتَهَا (دَ پاره دَ دے چه برکت حاصل کړو) او روستو جملے په دے باندې عطف دي لیکن وَتَطْمَئِنَّ ئیے په نَاْكُلَ باندے عطف کړے دے اشاره ده چه دا روستو ذکر شوي فائدے په اکل پورے خاص نه دي صرف په لیدلو دَ مائدے سره دا درے فائدے حاصلیږي۔ وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا مراد دَ اطمینان نه زیادت دَ یقین دے په قدرت دَ الله تعالیٰ باندے ځکه چه علم استدلالی سره علم مشاهده یو ځائے شي نو یقین زیاتیږي۔ یا اطمینان په دے خبره چه الله تعالیٰ موږ دَ دعوت دَ دین دَ پاره منتخب کړے یو۔ وَنَعْلَمَ أَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا مراد دَ علم نه زیادت دَ علم دے په صدق دَ رسالت دَ هغه باندے۔ وَنَكُوْنَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِيْنَ مراد دَ دے نه شهادت دَ توحید دَ الله دَ پاره او دَ رسالت دَ رسول دَ پاره یا شهادت په معنی دَ خبر ورکوونکي دے غائبینو ته په صدق دَ توحید او رسالت او دَ دے معجزے۔ یعني توحید او سنت به غائبینو خلقو ته بیانوو۔

وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَاَنْتَ

او روستنو زموږ لره او نخه به وی ستا د طرف نه، او رزق راکړے موږ ته او ته یې

خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ قَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا

غوره د رزق ورکوونکو نه ۔ او فرمائیل الله تعالی یقینًا څه نازلوونکے د هغے یم

۱۱۴ هرکله چه عیسیٰ علیه السلام پوهه شو چه د دوی مقصد صحیح دے نو دُعا یې اُوغوختله، اشاره ده احتیاج د هغه ته په دے واقعه کښ۔ او دا رنګ د دے نه معلومه شوه چه انبیاء علیهم السلام په معجزاتو کښ الله تعالی ته محتاج دی۔ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا صفت د الوهیت او ربوبیت یې دواړه په وسیله کښ ذکر کړے دی د ډیر تضرع د پاره مَآئِدَةً کوفیان وائی چه په دے کښ معنیٰ د فاعلیت ده یعنی لاسونه د خوراک والو څان ته مائل کوی او بصریان وائی دا په معنی د مفعول ده یعنی لاسونه د خوراک والو هغے ته مائل کیږی۔ مِنَ السَّمَآءِ تصریح ده په تعیین د مقصد باندے۔ تَكُوْنُ لَنَا عِيْدًا ضمیر د تکون مائدۀ ته راجع دے نو نزول د مائده مراد دے یا یوم د نزول د هغے۔ عِيْد د عود نه ماخوذ دے ځکه چه هغه په هر کال کښ واپس (دوه کرته) راځی په خوشحالولو سره نو دلته معنی عرفی مراد ده یا معنی لغوی مراد ده (خوشحالی بار بار) او دا معنی غوره ده او وئیلے شویدی چه مائدۀ په ورځ د اتوار نازل شوے وه د دے وجے نه دوی په ورځ د اتوار باندے عید مناؤ کړو لیکن دا قول خلاف دے د حدیث صحیح نه (مضمون یې دا دے چه یهودو د ځان د پاره د خالی ورځ او نصاراؤ د اتوار ورځ مقرر کړه۔ او الله تعالی موږ ته هدایت اوکړو د پاره د ورځ د جمعے) نو معلومه شوه چه ورځ د اتوار عید جوړول خلاف ده د هدایت د الله تعالی نه۔ لِّاَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا په هغه زمانه کښ حاضرین او روستو راتلونکی، د روستو د پاره د عید کیدلو وجه دا ده چه هغوی به د دے مائدے نه خوری او دا به باقی وی یعنی یا الله دا مائده جاری اوساتے. یا روستنی به دا خبر اوری نو په دین کښ به یې قوت پیدا کیږی۔ وَاٰيَةً مِّنْكَ دلیل د توحید او د صدق رسول به وی۔ وَارْزُقْنَا یعنی دا مائدۀ زموږ د پاره سبب د رزق اوګرځوه

عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ

په تاسو باندے، نو چاچه کفر اوکړو روستو د دینه پتاسو کښ نو یقیناً زه به عذاب ورکړم هغه ته

عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۱۵﴾

دا سے عذاب چه نه به وی ورکړے ما داسے عذاب هیچا ته د خلقو نه .

یا توفیق د شکر کولو راکړه. وَ اَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ د رزق اسباب جوړوونکی اوکسب کوونکی ته هم رازق وئیلے شی په طریقه د مجاز سره د دے وجے نه جمع ئے ذکر کړه او خیر خو الله تعالیٰ دے ځکه چه هغه رزق پیدا کوی او د هغے تقسیم هم د هغه په اختیار کښ دے.

۱۱۵ په دے ایت کښ ذکر د اجابت د دُعا د عیسیٰ علیه السلام دے سره د ذکر د ادب نه په طریقه د تخویف سره. فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا ا په دے کښ اشاره ده چه یو قوم معجزه طلب کړی او هغوی ته نصیحت هم اوکړے شی او د هغے باوجود د هغے معجزے انکار یا بے ادبی کوی نو هغه د سخت عذاب مستحق وی

فائده:- په نزول د مائده کښ اختلاف دے حسن بصری او مجاهد نه ابن جریر او ابن کثیر په صحیح سند سره نقل کړے دی چه هر کله دوی دا سخت تخویف واوریدلو نو دوی مطالبه پریخودله او مائده نازل نه شوه او د دے قول تقویت په دے وجه سره کیدائے شی چه د نزولِ مائده خبر په نصاریٰ کښ مشهور نه دے او نه د هغوی په کتاب کښ شته دے.

دویم قول د جمهور اهل علمو دے چه مائده نازل شویده او ابن جریر دا قول غوره کړے دے په دے دلیل چه الله تعالیٰ وعده کړیوه چه اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا او الله تعالیٰ خپله وعده پوره کوی. او په دے باندے ډیر اثار د سلفو نه دلالت کوی چه یو د هغے نه ترمذی مرفوع سند سره نقل کړیدے (په کتاب التفسیر کښ) چه نازل شوے وه مائده د اسمان نه ډوډئی او غوښه او دوی ته امر کړے شوے وو چه خیانت به نه کوئی او د صبا د پاره به ذخیره نه کوئی نو دوی خیانت اوکړو او ذخیره ئے اوکړله او د صبا د پاره ئے کیخودل شروع کړل نو د دوی شکلونه د شادوګانو او خنزیرانو پشان اوګرځیدل. ترمذی وئیلے دی چه دا د عمار رضی الله عنه نه موقوف هم نقل دے او موقوف اصح دے د مرفوع نه بلکه په دے باب کښ ډیر اثار مفسرینو ذکر کړے دی په هغے کښ یو هم

وَإِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ

او کله چه اوبه وائي الله تعالىٰ اے عیسیٰ ځویه دَ مریم (علیهما السلام)

ءَ أَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَ أُمِّيَ

آیا تا وئیلي دی خلقو ته چه اونیسئ ما او مور زما

إِلٰهَيْنِ مِنْ دُونِ اللّٰهِ قَالَ سُبْحٰنَكَ

حقدار دَ بندګئ دواړه سیوا دَ الله تعالىٰ نه ، او به وائي هغه پاکی ده تا لره (دَ شرک نه)

مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي ق

نه دی جائز ما لره چه او وایم هغه وینا چه نه ده ما لره

بِحَقٍّ ط إِنْ كُنْتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ ط

لائق (نیشته ما له حق دَ هغې)۔ که چرے ما وئیلي وی دا سے نو یقینًا ته عالم ئې په هغې۔

وقف النبي صلى الله عليه وسلم

مرفوع نیشته او په هغوی کښې نکارت دے۔ او قرطبی وئیلي دی چه حدیث دَ ترمذی اگرچه موقوف دے لیکن هغه دلته غوره دے نو فیصله داده چه مائده نازل شوے ده او طعام به دَ هغې نه خوړلے کیدلو لیکن دَ هغې پوره تفصیل بانبِ الله تعالیٰ ښه پوهیږی۔ او اول قول والا چه وئیلي دی چه دَ نصارٰی په کتاب کښې نیشته دَ هغې جواب دادے چه په دے واقعه کښې دَ هغوی دَ مشرانو مسخ ذکر شویده دَ دے وجے نه دوی دا واقعه پټه ساتله او خپلو کتابونو کښې لیکلے نه ده لکه چه یهودیانو واقعه دَ سبت (دَ خالی دَ ورځے) هم پټه ساتله۔

او امام احمد په مسند کښې او حاکم په مستدرك کښې روایت نقل کړیدے چه مشرکینِ مکه نبی صلی الله علیه وسلم ته اُوئیل چه ته دَ خپل رب نه دُعا اوغواړه چه دَ صفا (غر) ته سره زر جوړ کړی نو مونږ به تا باندے ایمان راوړو نو هغه دُعا اُوغوختله نو جبرئیل علیه السلام اُوئیل چه ستا رب په تا باندے سلام وائي او وائي که ته غواړے نو دَ صفا نه به سره زر جوړ کړم خو که بیا چا کفر اوکړو نو داسے عذاب به ورکړم چه په عالم کښې به مې هیچا له نه وی ورکړے او که ستا خوښه وی نو دوی له به

تَعۡلَمُ مَا فِیۡ نَفۡسِیۡ وَلَاۤ اَعۡلَمُ مَا فِیۡ

ته پوهیږې په هغې چه څما په زړه کښې دی او نه پوهیږم څه په هغې څه چه په

نَفۡسِكَ ؕ اِنَّكَ اَنۡتَ عَلَّامُ الۡغُیُوۡبِ ﴿۱۱۶﴾

نفس ستا کښې دی - یقیناً ته خه پوهیږې په پټو خیزونو -

دَ دے په ځائے دَ توبے او رحمت دروازه کولاؤ کړم نو نبی صلی الله علیه وسلم اوئیل چه دروازه دَ توبے او دَ رحمت پرانستلے شوے ده۔

سلالہ دا اعاده دَ هغه اِذۡ قَالَ ده چه په ۱۱۰ کښې ذکر وُو او دینه اعاده بعد عهد وئیلے شی یعنی دا ماقبل مضمون او دَ دے مضمون وخت یو دے۔ دَ دے مقالے په وخت کښې اختلاف دے سدای او قطرب وئیلے دی چه دا روستو دَ رفع دَ عیسیٰ علیه السلام نه آسمان ته په دنیا کښې ده او دا قول ابن جریر دَ دوؤ وجونه غوره کړے دے اول دا چه صیغه دَ ماضی ده دویم دا چه سره دَ اذ نه دَ او دا قول چه اِنۡ تُعَذِّبۡهُمۡ فَاِنَّهُمۡ عِبَادُكَ" په دے کښې طلب دَ مغفرت دَ گناهونو دے چه دَ هغې ځائے دنیا ده۔ دویم قول اکثر مفسرینو وئیلے دی چه دا مخاطبه به په ورځ دَ قیامت کښې وی او ابن کثیر هم په دلیلونو دَ ابن جریر اعتراض دفع کړیدے اول دا چه په قرآن کښې صیغه دَ ماضی ډیر کرته دَ قیامت دَ پاره استعمال شویده دَ پاره دَ تیقن لکه نَادٰی اَصۡحٰبُ النَّارِ اَصۡحٰبَ الۡجَنَّةِ (اعراف) او اذ په معنی دَ اذا سره هم استعمالیږی۔ وَاِنۡ تُعَذِّبۡهُمۡ دا شفاعت نه دے بلکه تفویض (سپارل) دے حکم دَ الله تعالیٰ ته لکه روستو ذکر کیږی۔ او دلیل دا دے چه دا دَ یَوۡمَ یَجۡمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ سره تعلق لری او دا رنګ روستو یَوۡمَ یَنۡفَعُ الصّٰدِقِیۡنَ صِدۡقُهُمۡ هم په دے باندې دلالت کوی۔

سوال: الله تعالیٰ ته خو علم دے په حال دَ عیسی علیه السلام نو دَ دے سوال دَ جواب څه فائده ده؟

جواب: دَ دے یو فائده الزام دَ دلیل دے په نصاریٰ باندے ځکه چه مغوی په عیسیٰ علیه السلام دروغ جوړ کړے وُو او وائی چه هغه موږ ته حکم راکړے دے چه ما ته اله جوړ کړئ او زما دَ موږ نه لکه چه دَ دے یو جواب په سورة آل عمران ۷۹ کښې ذکر دے نو دلته هم جواب دَ عیسیٰ علیه السلام ذکر کوی په تکذیب دَ نصاراؤ کښې۔ دویمه فائده دا ده چه

عیسیٰ علیه السلام ته په معلومه شي چه نصاریٰ اوّ د هغه دین بدل کړے دے دریمه فائده داده چه دا ښکاره دلیل شي په دے خبره باندے چه عیسیٰ علیه السلام د اُمت د حال نه روستو د رفعے او د موت نه خبر نه لري نو غیبدان نه دے لکه چه د ټولو رسولانو حال یې په ۱۰۹ کښې ذکر کړے وو.
وَأُمِّيَ دا لفظ په ځائے د مریم کښې د دے د پاره ذکر کړو چه دلیل شي په نفی د الوهیت د عیسیٰ او د مریم باندے ځکه نسبت د تواله منافی دے د الوهیت سره. مِنْ دُونِ اللّٰهِ دون په معنیٰ د غیر دے دلالت په دے نکوی چه د الله تعالیٰ الوهیت یې پریخودلے دے بلکه د شرکت د پاره استعمالیږی.
قَالَ سُبْحٰنَكَ حدیث د ترمذی کښې راغلے دی چه دا حجت الله تعالیٰ عیسیٰ علیه السلام ته تلقین کړے دے ترمذی وئیلے دی چه دا حدیث حسن صحیح دے. سُبْحٰنَكَ دا تحقیقی جواب دے او اظهار د عقیدے د عیسیٰ علیه السلام دے چه پاکی د هر عیب او د شریك او ولد نه الله تعالیٰ د پاره ثابته ده نو د هغه شریك امکان نه لری. مَا يَكُونُ لِيٓ الخ دا تفریع ده په سبحٰنك باندے او دویم جواب دے ما یکون په معنیٰ د مَا يُتَصَوَّرُ، وَمَا يَنْبَغِي او مَا يُمْكِنُ سره دے. مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ دا په معنیٰ د استحقاق دے یعنی دعوت کول خپل الوهیت ته زما په هیڅ طریقے سره حق نه دے. إِنْ كُنْتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ هر کله چه احتمال وو چه کیدے شي چه عیسیٰ علیه السلام دا سے چرے وئیلے وی لیکن اوس انکارکوی نو رد د دے احتمال کوی په طریق د دلیل برهانی. یعنی صدور د دے قول مستلزم دے علم د الله تعالیٰ لره نو انتفاء د علم د الله تعالیٰ په صدور د دے قول د عیسیٰ علیه السلام نه مستلزم ده انتفاء د صدور د دے قول لره ځکه چه انتفاء د لازم مستلزم ده انتفاء د ملزوم لره (ابوالسعود). تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي دا دلیل د ما قبل ملازمے دے چه الله تعالیٰ په هر څیز عالم دے نو په نفس د عیسیٰ علیه السلام هم عالم دے او په دے جمله کښې د بل احتمال رد دے هغه دا دے چه احتمال نشته چه دا خیال په نفس د عیسیٰ علیه السلام کښې تیرشوی حاصل د رد دا دے چه زما په نفس کښې دا خیال نه دے تیر شوے نو په ژبه ښکاره کول خو ډیره بعیده خبره ده. وَلَآ أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ دا بیان د واقعے او اظهار د خپل قصور علم دے او نفس ذات ته وئیلے شي او د

مَا قُلْتُ لَهُمْ اِلَّا مَآ اَمَرْتَنِيْ بِهٖٓ

نه دي ويئيلي ما دوی ته مګر هغه چه تا حکم کړيدے ماته (د بيان دهغے)

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنْتُ

چه بندګي خاص کړئ الله تعالیٰ لره چه رب زما او رب ستاسو دے او زه وم

عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ ۚ فَلَمَّا

په دوی باندے خبر څو پورے چه موجود وم په دوی کښ پس هر کله چه

تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ ۗ

تا زه واخستم ، نو ته خاص ته ساتونکے ئے په دوی باندے ربه هر حال کښ

وَاَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿۱۱۷﴾

او ته په هر څيز باندے حاضر او ناظر ئے۔

الله تعالیٰ په صفت کښ نفس لفظ ثابت دے د دے تاویل ته حاجت نیشته او تمثیل او تشبیه یئے د مخلوق سره جائز نه دے چا چه په علم او غیب او سر وغیره سره تاویل کړے دے دا خلاف دے د مذاهب د سلف صالحینو نه

اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ دا هم دلیل د ملازمے د چه په دے قول کښ ده " ان کنت قلته فقد علمته "۔

نکته: دا هم جواب د هغه سوال دے أَاَنْتَ قُلْتَ اه په طریقه د ادب سره دے۔

سوال:- "اِلَّا مَآ اَمَرْتَنِيْ" دا استثناء خو جنس د ما قبل نه نه ده چه ما قلت دے نو متصل نه صحیح کیږی؟۔

جواب:- ما قلت په معنی د مَآ اَمَرْتُ سره دے لیکن د ادب د وجے نه او د مناسبت د قلت للناس د وجے نه تعبیر یئے اوکړو په قُلْتُ سره۔

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ، اَن تفسیر دے د مامور به او په دے کښ توحید د الوهیت او د ربوبیت دواړه ذکر دی او دا قول د عیسیٰ علیه السلام نه الله تعالیٰ نقل راوړے دے په سورة آل عمران ۵۱ او مریم ۳۶ او زخرف ۶۴ کښ نو معلومه شوه چه دا اخبار د عیسیٰ علیه السلام نه بالکل رشتیا دے د دروغو هیڅ احتمال پکښ نیشته دے۔ وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ په دیکښ

ذکر دَ براءت دے دَ عیسیٰ علیه السلام دَ هغه اعمالو ته چه نصاراؤ دَ هغه نه روستو پیدا کړی دی. یعنی چه زه موجود ووم نو ما دَ دوی دَ حالاتو رعایت کوؤ په دعوت او تبلیغ سره نو اوس هم صرف دَ هغه عملونو شهادت ورکولے شم. مَا دُمۡتُ فِیۡهِمۡ عام دے دَ مَادمت حَیًّا نه اشاره ده چه بعض حصه دَ ژوندُ ئے په اسمان کښ تیره کړے ده نو دَ هغه وخت دَ عملونو دَ نصاراؤ علم هم ورسره نیشته اګرچه ژوندے وو خولړے وؤ او هیڅ اسباب ئے نه وؤ.

فَلَمَّا تَوَفَّیۡتَنِیۡ کُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِیۡبَ عَلَیۡهِمۡ دلته توفی په عامه معنی سره دے یعنی اخستل دَ څیز پوره برابره خبره ده که روح او بدن ئے په جمع اخستلے وؤ په وخت دَ رفعے دَ عیسیٰ علیه السلام اسمان ته او که په روح اخستلو سره وؤ چه مرګ دے روستو دَ نزول دَ هغه نه زمکے ته په اخره زمانه کښ ځکه چه دَ هغه نزول په اخره زمانه کښ به متواتر احادیثو سره ثابت دے لکه چه دا په سورة العمران ۵۵ کښ ذکر دے. الرَّقِیۡبَ ساتنه کوونکے، عالم دَ هغوی دَ اعمالو او احوالو. وَ اَنۡتَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ شَهِیۡدٌ، کُلِّ شَیۡءٍ کښ اقوال اعمال دَ عیسیٰ علیه السلام او دَ هغه قوم او هر مطیع او هر عاصی او هر څیز داخل دے. په دے کښ اشاره ده فرق دَ صفت دَ الله او دَ بنده ته په شهید سره یعنی الله تعالیٰ مشاهده کوونکے (لیدونکے) او علم لرونکے دَ هر څیز دے او دا معنی دَ بنده په صفت دَ (شهید) کښ نیشته نو بنده ته لیدونکے او علم لرونکے دَ هر څیز نشی وئیلے کیدلے.

تنبیه:- دَ شهید نه تعبیر په حاضر ناظر سره کیدیشی ځکه دا دَ مشاهدے نه او دَ شهادت په معنی دَ علم سره ماخوذ دے نو ناظر او عالم صفت ثابت شو او الله تعالیٰ ته حاضر په اعتبار دَ علم سره وئیلے شی.

فائده:- امام بخاری په تفسیر دَ سورة مائده او په کتاب الانبیاء کښ او دارنګ مسلم په باب فناء الدنیا و بیان الحشر کښ حدیث مرفوع په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما سره راوړے دے چه په هغے کښ داتذکره ده چه دَ قیامت په میدان کښ به څه کسان زما دَ اُمت نه راوستلے شی او کس طرف (جهنم) ته به روان کړے شی زه به اووایم یاربه دوی خو زما سره لږه مرګر تیا کړے وه نو ورته به اُو وئیلے شی إِنَّکَ لَا تَدۡرِیۡ مَا اَحۡدَثُوۡا بَعۡدَکَ (یقیناً تا ته پته نیشته چه دوی ستا نه روستو څه (بدعات) پیدا کړی)

إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ

| که ته عذاب ورکوے دوی ته | نو یقیناً دوی بندګان ستا دی، | او که ته بخنه کوے |
|---|---|---|

لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١١٨﴾

| دوی ته | نو یقیناً | ته | زور اور یے | حکمتونو والا یے۔ |
|---|---|---|---|---|

نو زه به اووایم لکه چه بل صالح بنده وئیلے دی کنت علیهم شهیدا ما دمت فیهم الایة؛ نو دا حدیث صریح دلیل دے چه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم هم د اعمالو او احوالو ته روستو د وفات نه علم نه لری او احادیث د عرض (پیشئ) د اعمالو صحیح ثابت نه دی۔

سوال:۔ د دے حدیث نه مرزائی قادیانی ملعون استدلال کړے دے چه عیسیٰ علیه السلام وفات شویدے او په دے ایت کښ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي په معنیٰ د مرګ سره دے وجه د استدلال دا ده چه زمونږ نبی هم دا ایت په خپل مثال کښ پیش کوی نو زمونږ نبی خو وفات شویدے د وفات نه روستو علم د امت نه لری نو معلومه شوه چه توفیتنی کښ معنیٰ د مرګ مراد ده؟

جواب ۱: موږ مخکښ ذکر کړه چه دلته توفی په عامه معنیٰ سره مراد ده نو معنیٰ د مرګ په کښ هم داخل ده۔ نو تشبیه په اعتبار د یوے معنیٰ سره ده۔

جواب ۲: که دلته توفیتنی په معنیٰ د مرګ سره شی نو هم اشکال نه راځی ځکه چه دا کلام د عیسیٰ علیه السلام په قیامت کښ دے او قیامت نه مخکښ خو په هغه باندے مرګ به راځی روستو د نزول نه نو په دے سره نفی د رفع د هغه نه لازمیږی۔

جواب ۳: عامو مفسرینو چه معنیٰ د توفیتنی په رفع سره کړے ده نو هم جائز ده ځکه چه کیدے شی چه په حدیث کښ تشبیه صرف په دے جمله کښ وی "کنت علیهم شهیدا ما دمت فیهم"۔

۱۱۸ دا هم قول د عیسیٰ علیه السلام دے نو بنا په قول د سدی او د قطرب باندے دا قول په دنیا کښ وی نو معنیٰ دا ده اِنْ تُعَذِّبْهُمْ که ته دوی په کفر باندے باقی پاتے کړے او بیا اخرت کښ عذاب ورکړے

قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ

اوبه وائي الله تعالىٰ دا ورځ ده فائده به ورکوي رشتيا ويونکو ته

صِدْقُهُمْ ؕ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ

رشتيا وئيل (په دنيا کښې) د هغوي. دوي لره جنتونه دي چه بهيږي لاندې

تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ

د هغې نه ويالې هميشه به وي دوي په هغې کښې هميشه.

نو په تا اعتراض نيشته ځکه چه فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ. او اِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ يعني که توفيق د توبې ورکړې نو بخنه ورته د توبې په وجه سره اوکړې نو ته د دې نه عاجز نه يې ځکه چه فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ. ليکن هر کله چه ګکښ ثابت شوه چه قول د سدي ضعيف دے نو بنا په قول د جمهورو مفسرينو دا به په آخرت کښې وي.

سوال:- هر کله چه د دغه نصاراؤ کفر او شرک او دروغ ثابت شول نو د هغوي د پاره څه رنګ سفارش کوي؟

جواب:- ابن کثير او خازن وغيره وئيلي دي چه دا سفارش کول نه دي بلکه تفويض (سپارل) دے مشيت او اراده د الله تعالىٰ ته او براءت دے د عيسىٰ عليه السلام د نصاراؤ نه او دليل دا دے چه د ان تغفر نه روستو غفور رحيم نه دے وئيلے ځکه چه مقصد طلب د مغفرت نه دے.

سوال:- په مبيغ د شرط او جزا د دواړو جملو کښې مناسبت څه دے؟

جواب:- په عبارت کښې تقدير دے يعني اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكَ اِعْتِرَاضٌ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَاَنْتَ الْمَالِكُ الْمُطْلَقُ يا عِبَادُكَ وَهُمْ عَبَدُوا غَيْرَكَ (که ته دوي له عذاب ورکوے نو په تا باندے اعتراض نيشته ځکه چه دوي ستا مريان دي او ته مالک مطلق يې يا دوي بندګان ستا دي او حال دا چه بندګي يې کړيده سيوا ستا نه د بل چا) وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ لَا يَلْحَقُكَ عَجْزٌ بِذٰلِكَ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (که ته دوي ته بخنه کوے (سره د شرک او کفر د دوي نه) نو ته عاجز نه يې ځکه چه په هر څيز زورور يې او حکمت والا) ليکن قانون د الله تعالىٰ دا دے چه اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ (يقينًا الله تعالىٰ هيڅ قسم شرک نه بخي).

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۚ ذٰلِكَ الْفَوْزُ

رضا دے الله تعالیٰ ذ دوی نه او رضا دی دوی ذ هغه نه - دا کامیابی

الْعَظِيْمُ ﴿۱۱۹﴾ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

لویه ده - خاص الله تعالیٰ لره بادشاهی ذ اسمانونو او ذ زمکے ده

وَمَا فِيْهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۲۰﴾

او ذ هغه څه چه په دیکښ دی - او هغه په هر څیز قدرت لرونکے دے -

۱۱۹ - دا بشارت دے متعلق دے ذ حال ذ عیسیٰ علیه السلام سره - هٰذَا
يَوْمُ مراد ذدے نه ورځ ذ قیامت ده ذ دے تخصیص ئے ذدے وجے نه
اوکړو چه په دغه ورځ به پوره جزا ملاویږی. يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ مراد
ذ صدق ذدوی نه رشتیا ویئیل اوکول دی په دنیاکښ ځکه چه دنیا ذ عمل کولو
ځائے دے نو الصّٰدِقِيْنَ نه مراد هغه څوک دی چه همیشه ئے رشتیا
ویئیلے وی نو اول په هغے کښ توحید داخل دے ذدے وجے نه ابن کثیر
ویئیلے دی چه الصادقین نه مراد الموحدین دی او دعوت کوونکی ذ حق دی چه اول
په هغے کښ انبیاء علیهم السلام داخل دی لکه په سورة احزاب ۸ کښ دی
او ذ نفعے نه مراد ثوابونه اخروی دی - یا ذ صدق نه مراد صدق
دے په اخرت کښ لکه چه ذ عیسیٰ علیه السلام بیان کول ر په
اخرت کښ) ذکر شو. لیکن دا صدق ذ دنیا ذ صدق سره موافق دے
نو مراد ذ نفعے نه دا دے چه ذ مؤاخذے او ذ خلقو ذ ملامتیا نه به
بچ شی او ثوابونه به حاصل کړی او هر چه صدق ذ ابلیس دے
په ورځ ذ قیامت لکه په سورة ابراهیم ۲۲ کښ دے نو هغه صدق ذ دنیا
ذ عمل ذ هغه سره موافق نه وو ځکه ورته فائده نه ورکوی -
دارنګ نور کافران هم چه اقرار اوکړی چه ځانونو باندے ذ کفر
او شرك او انکار وغیره نو دغه رشتیا هم نفع نه ورکوی ځکه چه اقرار
ذدوی په دنیا کښ نه وو.
لَهُمْ جَنّٰتٌ اه دا بیان ذ نفعے دے ذ دے وجے نه عطف ئے نه دے ذکر
کړے - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ په سبب ذ طاعت او ذ رشتیا ویئیلو سره ذدوی

په دنيا کښې وَرَضُوْاعَنْهُ دوی په دنيا کښې رضا په قضا د الله تعالیٰ کړے وه نو په آخرت کښې سبب د رضا کثرت نعمتونه دی د الله تعالیٰ د طرف نه. لِلّٰه دا اختتام د سورت دے په دعوىٰ د توحيد سره د پاره د رد د نصارٰؤنو اشاره ده چه عيسىٰ عليه السلام او مور د هغه لره اختيار او قدرت د هر څيز نيشته نو هغوى اِلٰهٔ نه شى کيدلے (دا مضمون خازن او قرطبى ليکلے دے) دا رنګ دا جواب د وهم دے چه مخکښې اُوئيلے شول ينفع ـ لَهُمْ جَنّٰتٌ الخ نو دا جنتونه په څوک ورکوى حاصل د جواب دا دے چه دا کار او قدرت د الله تعالیٰ دے. وَمَا فِيهِنَّ هغه مخلوق چه په آسمانونو کښې دى او که په زمکه کښې دى ملائك انسانان، پيريان، حيوانات، نباتات او جمادات وغيره.

تفسير د سورة مائده په فضل د الله تعالیٰ او کرم د هغه سره ختم شو

(اللهم انفعنا بفضله وکرمك فى الدنيا والآخرة)

سورة الانعام مکیة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰیاتها ۱۶۵ رکوعاتها ۲۰

خاص په نوم دَ الله تعالیٰ امداد غواړو په شورو کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

ټول صفتونه دَ خدائیتوب خاص الله لره دی هغه ذات دے چه پیدا کړیدی اسمانونه او زمکه

ربط دَ سورة انعام دَ مخکښې سورت سره په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښې سورت کښې ترغیب ورکړے په لوظونو پوره کولو چه هغه په باره دَ حلال او حرام کښې وو او ردوو په شرک دَ نصاریٰ باندے نو دے سورت کښې اصل مقصد چه توحید دے دَ هغے تفصیل کوی په دلیلونو سره. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې دعوٰی دَ توحید او رد وو په شرک باندے نو په دے سورت کښې عقلی او نقلی دلیلونه ذکر کوی سره دَ ذکر دَ طریقے او تکالیفو دَ دعوت نه.

دعوٰی دَ دے سورت: توحید ثابت کول دی په دلیلونو عقلی او نقلی سره، او رد دے په ټولو اقسامو دَ شرک او په مشرکانو باندے سره دَ طریقو دَ تعلیم نه - دلیلونه په څلور قسمه دی (۱) استدلال په تصرف سره په اعیانو باندے (۲) استدلال په احوالو دَ اعیانو باندے سره دَ علم محیط نه (۳) استدلال په انقلاب دَ احوالو سره (۴) استدلال په څیزونو دَ خوراک سره - او طریقے دَ تعلیم هم څلور قسمه دی ۱ پوخ والے په توحید باندے ۲ فرق دَ دواړو طریقو (طریقه دَ اهل حق او طریقه دَ اهل باطل) ۳ نفی دَ صفاتو ما فوق البشریة ۴ تفصیل دَ صحیح عقیدے او شپږ عقبات دَ توحید دی په ۵۳ ۵۵ ۱۰۵ ۱۱۳ ۱۲۳ ۱۲۹ کښې.

خلاصه: په سورت کښې دوه حصے دی، اوله حصه تر ۱۱ پورے ده په هغے کښې رد دے په شرک اعتقادی باندے، او په دے کښې شپږ بابونه دی. اول باب تر ۱۱ پورے دے. په دے کښې دعوٰی دَ توحید او په هغے باندے درے عقلی دلیلونه دی، او په هر یو کښې درے درے امور دی، بیا زجر دے په درې طریقو سره، بیا تخویف دنیوی دے په درے طریقو سره، بیا جوابونه دَ درے سوالونو، او اخر کښې تسلی ده په درے طریقو سره.

وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ثُمَّ الَّذِيْنَ

او جوړے کړیدی تیارے او رڼا - بیا هم دا

كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ① هُوَ الَّذِيْ

کافران دَ رب خپل سره برابرکړي نور خلق - خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے

خَلَقَكُمْ مِّنْ طِيْنٍ ثُمَّ قَضٰۤى اَجَلًا وَاَجَلٌ

چه پیدا کړے یئ تاسو دَ خټے نه بیا ئے فیصله کړیده دَ نیټے دَ مرګ - او نیټه چه

مُّسَمًّى عِنْدَهٗ ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ ②

مقرر ده (ربټول مخلوق لره) په علم دَ الله کښ ده بیا هم تاسو شک کوئ -

سل په دے کښ دعوی دَ توحید ده اول دلیل عقلی دے چه هغه درے قسمه دے علوی سفلی اوسطی. الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ مراد دَ دے نه عام دے که محسوسی وی لکه شپه او ورځ یا معنوی وی لکه شرک او توحید جهل او علم. ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اه دا زجر دے منکرینو ته او ثم دَ تعقیب ذکری دَ پاره دے یا دَ استبعاد دَ پاره دے. يَعْدِلُوْنَ دَ عدل نه دے برابری ته وئیلے شی او بِرَبِّهِمْ متعلق دے په یعدلون پورے یعنی دَ خپل رب سره نور مخلوق برابروی یعنی شرک کوی. یا دَ عدول نه دے او بربهم متعلق دے په کفروا پورے یعنی عدول (مخ اړوی) دَ حق نه. ظُلُمٰت جمع ذکر کړے ده ځکه چه دَ هغے اقسام او اسباب او افراد ډیر دی او نُور یو دے.

سلے دا دویم دلیل عقلی دے، او اَجَل نه مراد مرګ دے او دویم اَجَل نه مراد نیټه دَ قیامت ده او په دے کښ هم درے اموره دی. مِنْ طِيْنٍ دَ ټولو انسانانو اصل ماده او اوله ماده دا ده. یا مراد دا دے چه "خَلَقَ اٰبَاكُمْ" یعنی ستاسو پلار ئے دَ خټے نه پیدا کړیدے په لفظ دَ طِيْن کښ اشاره ده چه په انسان کښ استعداد دَ علم او کمال شته په محنت سره لکه چه دَ خټے نه بښه څیزونه جوړیږی په محنت سره. قَضٰۤى اَجَلًا دا دَ ولادت نه تر مرګه پورے ده. وَاَجَلٌ مُّسَمًّى دا دَ مرګ نه تر بعث پورے ده دا یو قول دے دویم دا چه اول اجل نفس نیټه دَ مرګ او دویم اجل ورځ دَ قیامت ده او دا غوره قول دے. تَمْتَرُوْنَ دَ مِرْيَة نه ماخوذ دے په معنی

وَهُوَ اللّٰهُ فِى السَّمٰوٰتِ وَفِى الْاَرْضِ ؕ يَعْلَمُ

او خاص هغه الله تعالىٰ تصرف كوونكے دے په اسمانونو او په ځمكه كښې - پوهه لري

سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُوْنَ ﴿۳﴾

په پټو ستاسو او په ښكاره ستاسو او پوهه لري په هغه څه چه كوئ يې تاسو -

وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ

او نه راځي دوى ته څه نخښه د نخو د رب د دوى نه

اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ﴿۴﴾ فَقَدْ كَذَّبُوْا

مگر وى دوى د هغې نه مخ اړوونكي - پس يقيناً دوى دروغژن كړو

بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ؕ فَسَوْفَ يَاْتِيْهِمْ

حق لره هركله چه راغئ دوى ته - نو زر دے چه راېشي دوى ته

اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۵﴾ اَلَمْ

خبرونه (عذاب) د هغه څه چه دوى به هغې پورے ټوقے كولے - ايا نه

يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ

گوري دوى چه څومره هلاك كړي دي مونږ مخكښ د دوى نه قومونه (پيړۍ)

دَ شک سره يا دَ مِراء نه دے په معنیٰ دَ جگړه كولو سره او ثم دَ استبعاد دَ پاره دے -

۳ دا دريم دليل دے اول درے دليلونه دَ كارسازئ دَ الله تعالیٰ دى - او دا درے

امور دَ علم يې ذكر كړل پټ قول، ښكاره قول او عملونه -

۴ ۵ دا زورنه ده او په دے كښې درے څيزونه ذكر كړي دى. اعراض، تكذيب

استهزاء - مِنْ اٰيَةٍ په معنیٰ دَ دليل يا معجزه يا ايت قرانيه دے - مِنْ اول دَ پاره

دَ استغراق او دويم دَ پاره دَ تبعيض دے . فَقَدْ، فاء دَ پاره دَ تعقيب ده يعني روستو

دَ اعراض نه تكذيب او استهزاء يې اوكړله . اَنْۢبٰٓؤُا په معنیٰ دَ عواقب ده (عاقبتونه

سزاگانے) . يَسْتَهْزِءُوْنَ يعني دوى دَ تكذيب سره استهزاء هم مرگرے كړيده -

مَّكَّنّٰهُمْ فِى الْاَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَّكُمْ

ځاۍ درکړی وو موږ هغوی ته په زمکه کښې (دومره) چه نه دے درکړے موږ تاسو ته

وَاَرْسَلْنَا السَّمَآءَ عَلَيْهِمْ مِّدْرَارًا ۪ وَّجَعَلْنَا

او رالیږلو موږ باران (دَ بره نه) په هغوی باندے پرله پسے (دَ ضرورت مطابق) او ګرځولے دَ موږ

الْاَنْهٰرَ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ

ويالے (نهرونه) چه بهيدلے په دَ لاندے دَ بنګلو دَ دوی نه. تو هلاک کړل موږ دوی

بِذُنُوْبِهِمْ وَاَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ

په سبب دَ ګناهونو دَ دوی. او پیدا کړل موږ روستو دَ دوی نه

قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ۝۶ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا

قوم نور - او که نازل کړے وے موږ په تا باندے کتاب (په یو ځائ)

ـ دايره دنيوی ده په دے کښې درے انعامات ذکر کړے دی، تمکين او بارانونه او نهرونه. او درے احوال ئے ذکر کړل چه هغه دوه کرته ذکر دَ اهلاک دَ او دريم پيدا کول دَ نورو قومونو روستو دَ دوی نه.

قَرْنٍ هغه ډله دَ خلقو چه په يو زمانه کښې وی او دا رنګ يوه موده دَ زمانے چه تقريبًا سل کاله وی۔

مَكَّنّٰهُمْ تمکين نه مراد مکانات بنګلے او بادشاهی او مالداری ده۔

وَاَرْسَلْنَا اشاره ده لکه چه دوی سرمايه دار وو نو دا رنګ جاګيردار هم وو نو اوچے زمکے په بارانونو سره اباد دے شوے۔ مِدْرَارًا پرله پسے نحو دَ حاجت موافق۔

تَحْتِهِمْ دَ دوی دَ بنګلو دَ لاندے او دَ دوی په انتظام او په اختيار کښې دی دَ دے وجے نه تحتهم ئے ذکر کړو۔ فَاَهْلَكْنٰهُمْ اول اَهلكنا په معنیٰ دَ ارادے دَ اهلاک دے او دا فعل دَ هغے دے يا اول اهلاک په سبب دَ شرک سره دے او دويم اهلاک په سبب دَ نورو ګناهونو سره۔

فِیْ قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوْهُ بِاَیْدِیْهِمْ لَقَالَ

(الغخته) په کاغذ ونو کښې نو لګولې به وې په هغې باندې دوی لاسونه خپل، خامخا اوبه وائي

الَّذِیْنَ كَفَرُوْۤا اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۷﴾

کافران نه دې دا مګر جادو دې ښکاره.

وَقَالُوْا لَوْلَاۤ اُنْزِلَ عَلَیْهِ مَلَكٌ ؕ وَلَوْ اَنْزَلْنَا

او دوی وائي ولې نه شي نازیلیدې په دهٔ باندې ملک (فرښته)؟ او که نازل کړې وې مونږ

مَلَكًا لَّقُضِیَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا یُنْظَرُوْنَ ﴿۸﴾

ملک خامخا فیصل به شوې وې د کار د دوی بیا به دوی ته مهلت نشي ورکیدې.

وَلَوْ جَعَلْنٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا

او که جوړ کړی وې مونږ رسول فرښته، نو خامخا جوړ کړې به وې مونږ هغه سړې (په شکل کښې) او خامخا شک به راوستې

ک دا د درې سوالونو جوابونه دی، اول سوال چه یو ځل کتاب راوړهٔ د هغې جواب دې په ک کښې. فِیْ قِرْطَاسٍ لیکلې شوې کاغذ ته قرطاس وئیلې شي. کِتٰبًا په معنی د مکتوب سره دې یا مراد کتاب دې او تقدیر دا دې ملفوفاً (النغبشتې شوې).

سوال: فرؤه باعینهم یئ ولې ذکر نه کړو؟

جواب: سمعانی وئیلې دی چه لمس ډیر ابلغ دې په حصول د علم کښې ځکه چه په مرئی (هغه چه په سترګو لیدې کیدې شي) سحر رائحی او په ملموس (هغه چه په لاس سره مسح کیدې شي) سحر نه رائحی او بله وجه دا ده چه لمس خوړانډو ته هم شامل دې.

ک دا دویم سوال دې چه ملك په دهٔ باندې ولې نه رائحی چه د دهٔ سره پیره ورکوونکې شي لکه په سورة فرقان ک کښې دی. نو د هغې جواب اوشو. لَقُضِیَ الْاَمْرُ مراد د دې نه نزول د عذاب دې لکه چه سورة فرقان ۲۲ او سورة حجر ۸ کښې دی.

عَلَيْهِمْ مَّا يَلْبِسُونَ ﴿٩﴾ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ

په دوی باندے هغه چه اوس دوی کوم شک کوی۔ او یقیناً توقے کړے شوے دی

بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِينَ

په ډیرو رسولانو پورے ستا نه مخکښ نو راګیر کړل هغه کسانو لره

سَخِرُوا مِنْهُمْ مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿١٠﴾

چه توقے (مسخرے) ئے کولے د دوی نه (عذاب) د هغه څه نه چه دوی ورپورے توقے کولے۔

قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوا كَيْفَ

ته اووایه! اوګرځئ په زمکه کښ بیا اوګورئ چه څنګه

كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿١١﴾ قُلْ لِّمَنْ مَّا

وو انجام د تکذیب کوونکو (حق لره)۔ ته اووایه چا لره دے اختیار د هغه څه

ف۹ دا د دریم سوال جواب دے سوال دا چه د رسول (بشر) په ځائے ملک ولے نه راځی؟ جواب اوشو چه هغه به ضرور په شکل د بشر کښ راځی، نو بیا به په تاسو اشتباه راځی۔ وجه دا ده چه د الله تعالیٰ احسان دے چه هرے نوعے د مخلوق ته د هغوی رسول رالیږی دے د پاره چه د هغه نه پوره فائده حاصله کړی۔

لَلَبَسْنَا یعنی اوس په اشتباه کښ دی د رسول نه چه دا بشر دے نو بیا به هم دا سے شبه کښ وی۔

ف۱۰ دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او مراد د دے استهزاء نه دغه سوالونه دی چه بیان شول او د هغے په مثل نور۔ او د استهزاء سره مسخره لازمه ده ځکه سَخِرُوا ورپسے ذکر کړو ځکه چه په استهزاء کښ معنی د سپکوالی پرته ده۔ فَحَاقَ په معنی د نزل، حَلَّ او احاط سره راغلے دے۔

ف۱۱ دا تعلق لری د مخکښ ایت سره۔ سِيرُوا، سیر د قدمونو مراد دے او سیر د مطالعے پکښ داخلیږی۔ ثُمَّ انْظُرُوا نظر نه مراد عام دے علکتل په سترګو ع۱۲ فکر او سوچ کول۔

فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قُلْ لِّلّٰهِ ؕ كَتَبَ عَلٰی

چه په اسمانونو کښې دی او زمکه کښې دی؟ او وايه الله لره دے. لازم کړيدے په

نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ؕ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰی يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

خپل ځان باندے رحم کول. خامخا جمع به کړی تاسو په ورځ د قيامت کښې

لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ

چه نشته هيڅ شک په هغې کښې. هغه کسان چه تاوان کښې يې اچولے دی ځانونه خپل، پس دوی

لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِی الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ؕ

ايمان نه راوړی. او خاص د الله اختيار کښې دی هغه څه چه ارام کوی په شپه کښې (او خوريږی) د ورځے

وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ

او هغه هرڅه اوری په هرڅه پوهه دے. نو ورته اووايه ايا سيوا د الله تعالٰی نه

۱۲ د دے ځائے نه دويم باب دے تر ۳ پورے په دے کښې څلور عقلی دليلونه دی او څلور طريقے د تعليم دی په لفظ د قُلْ سره او څلور زجرونه دی او څلور تسلئ دی او څلور تخويف اخروی او يو تزهيد فی الدنيا او د يو سوال جواب دے. دا ايت دليل عقلی اعترافی سکوتی دے چه اختيار د بره او ښکته د يو الله تعالٰی دے او هغه په ځان باندے رحم لازم کړے دے د پاره د ايمان والو دا سے د دے سورت په ۵۵ او اعراف ۱۵۶ کښې دی او رحم په کافرانو باندے دا دے چه عذاب يې د هغوی نه تر ورځ د قيامت پورے روسته کړے دے ليکن کوم خلق چه ځان يې په نقصان کښې اچولے دے او د توحيد نه منکر دی نو هغوی پس د دليل نه هم ايمان نه راوړی.

سوال: عدم ايمان سبب دے د پاره د خسران او د دے ځائے نه برعکس معلوميږی؟

جواب: دلته خسران نه مراد دا دے چه کار د عقل او د علم يې پريښودلے دے دليلونو د قران ته غور نه کوی او په تقليد کښې اخته شويدی نو دا سبب دے د پاره د عدم ايمان. نو په دے ايت کښې اول دليل عقلی اعترافی دے بيا ترغيب دے ايمان ته بيا تخويف دے بيا زجر دے.

۱۳ دا بل دليل دے. سَكَنَ ارام کوی د شپے او خوريږی وَالنَّهَارِ په ورځ کښې.

أَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ

ځه اونیسم مددګار، پیدا کوونکے دے د اسمانونو او د زمکے او

هُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ۗ قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ

هغه خوراک ورکوی او نشي ورکیدے خوراک هغه ته - ته اووایه یقینًا حکم کړے شوے دے ما ته

أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ وَلَا تَكُونَنَّ

چه یم په ځه اول (رومبے) د هغه چا نه چه توحید مني، او مه کیږه ته د

مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۴﴾ قُلْ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ

د مشرکانو د ډلے نه - ته ورته اووایه یقینًا ځه یریږم که نافرمانی اوکړم ځه

نشر (خوریدل) لفظ دلته پټ دے په دلیل د سورة فرقان ۶۲ سره او تخصیص د سکون ئے د دے وجے نه اوکړو چه رحمت او نعمت په سکون کښ زیات دے د حرکت او د نشر نه لکښ دلیل د مکانیا تو پورے متعلق وو او دا دلیل د زمانیا تو سره تعلق لری - او که سکن په معنی د اوسیدلو سره وی نو بیا نشر ته ضرورت نیشته -

۱۴ دا طریقه د تعلیم دی او جوابونه د سوالونو او دا اول قسم دے مقصد پکښ پښیدل دی په عقیده د توحید باندے - اول سوال زمونږ معبودانو ته مددګار اووایه - جواب اوشو په اول قُلْ سره - دویم سوال دا چه توحید منل څه ضروری خبره نه ده - جواب اوشو په دویم قُل سره چه دا خو مامور به مسئله ده تر دے پورے چه د دے مسئلے د وجے نه براءت کول لازم دی د مشرکانو نه (ولا تکونن من المشرکین) - وَلِيًّا رب، معبود او مددګار - فَاطِرِ په دے کښ اشاره ده چه دا دواړه ئے د جدا جدا مادونه را ویستل په اول راویستلو سره - وَهُوَ يُطْعِمُ روزی ورکول د هغه په اختیار کښ دی - وَلَا يُطْعَمُ په دے سره هغه وهم رد کوی چه والدین هم اولاد ته طعام ورکوی بعض پیران لنګرے ورکوی؟ جواب دا دے چه الله تعالیٰ طعام ته حاجت نه لری او نور مخلوقات خو طعام ته محتاج دی سورة مائده ۷۵ سورة ذاریات ۵۷ ۵۸ - أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ ځکه چه نبی په امت کښ اول مسلمان وی لکه د سورت په ۱۶۳ کښ راځی -

رَبِّیْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿۱۵﴾ مَنْ یُّصْرَفْ

دَ حکم دَ رب خپل، دَ عذاب دَ ورځے لوئے نه۔ هغه څوک چه لرے کړے شو

عَنْهُ یَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ

دَ هغه نه عذاب په دغه ورځ، نو یقینًا رحم اوکړو الله تعالیٰ په هغه باندے۔ او دا کامیابی ده

الْمُبِیْنُ ﴿۱۶﴾ وَاِنْ یَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا

ښکاره۔ او که اورسوی تا ته الله تعالیٰ څه تکلیف نو نیشته

كَاشِفَ لَهٗۤ اِلَّا هُوَ ؕ وَاِنْ یَّمْسَسْكَ بِخَیْرٍ

هیڅ لرے کوونکے دَ هغے سیوا دَ الله تعالیٰ نه۔ او که اورسوی تا ته څه خیر

فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۱۷﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ

نو هغه په هر څه باندے قدرت لرونکے دے۔ او هغه زور آور دے

۱۵ دے کښې دَ دریم سوال جواب دے سوال دا دے چه په نه منلو څه نقصان راځی؟ جواب په دریم قُلْ سره دے چه دَ لوئے عذاب یره ده۔
عَصَیْتُ رَبِّیْ دلته مراد عصیان دے په شرک کولو سره اوخوفُ عذاب عظیم دلالت کوی په گناهِ کبیره کیدلو باندے۔ یَوْمٍ عَظِیْمٍ نوم دے دَ نومونو دَ ورځ دَ قیامت نه
۱۶ په دے کښې عظمت دَ عذاب ته اشاره ده او په دے کښې اوفرمائیل چه دَ هغه عذاب نه بچ کیدل رحم دَ الله دے لکه سورة آل عمران ۱۸۵ او سورة مؤمن ۹ کښې دی۔
۱۷ دا بل دلیل عقلی دے چه ضرر (مرض، فقر وغیره) لرے کوونکے دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک نیشته او خیر ورکوونکے (صحت مال نورحاجتونه پوره کوونکے) دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک نیشته او دا ښکاره رد دے په هغه چا باندے چه اولیاء که مړه وی یا ژوندی وته په امید دَ نفع او ضرر سره دَ رامداد شه چغے وهی او دا یقینًا شرک او کفر دے۔ په دے آیت کښې رد دَ شرک فی التصرف دے لکه په سورة یونس ۱۰۷ کښې او سورة فاطر ۲ کښې دی۔ یَمْسَسْكَ، مس او ضر نکره دلالت کوی چه اگر چه که ضرر قلیل وی یا کثیر وی او دَ مس اسناد یے الله تعالیٰ ته کړے دے ځکه چه عام مشرکان مصیبت دَ طرف دَ

فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ⑱

پورته دے دَ بندګانو خپلو نه او هغه حکمتونو والا خبردار دے۔

قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً ؕ قُلِ اللّٰهُ

ته اووایه څه شے دیر لوئے دے په ګواهئ کښ؟ ته ورته اووایه الله تعالیٰ۔

شَهِيْدٌۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۟ وَاُوْحِيَ اِلَیَّ

ګواه دے په مینځ زما او ستاسو کښ۔ او وحی کړے شویده ماته

هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْ ۢ بَلَغَ ؕ

دَ دے قرآن دے دپاره چه یره درکرم تاسو ته په دے سره او هغه چاته چه رسیدلے ورته دا قرآن

اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰی ؕ

ایا تاسو دا منئ چه بیشکه دَ الله تعالیٰ سره نور دَ بندګئ لائق شته؟

الله تعالیٰ نه ګنړی وَاِنْ يَّمْسَسْكَ بِخَيْرٍ اه په عبارت کښ تقدیر دے یعنی "وَاِنْ يَّمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فيقدر علی اتمامه وان اراد الغير قطعه فهو علی کل شئ قدير فيقدر علی منعه" په سورة یونس کښ وان يردك بخير وئیلے دے ځکه چه فعل دَ مس نه مخکښ اراده دَ الله تعالیٰ وی نو په دے سورت کښ مقصد دلیل دے په رد دَ شرک فی التصرف نو لفظ دَ مس دَ تصرف سره مناسب دے او سورة یونس کښ مقصد اصلاح او پوخوالے دَ عقیدے دے او دَ عقیدے سره دَ ارادے مناسبت دے

ﷲ دا بل دلیل عقلی دے۔ اَلْقَاهِرُ هغه غالب چه چرے نه مغلوب کیږی او یوائے نظام چلوونکے، دا معنی سمعانی ذکر کړے ده او دلیل دَ دے سورت په ﷲ کښ شته. فَوْقَ لفظ دَ متشابهات نه دے، په دے کښ عقیده دَ سلف صالحینو داده چه په ظاهر معنی حقیقی باندے به ایمان لرو او علم دَ حقیقت به الله تعالیٰ ته سپارو او تشبیه دَ مخلوق سره به نه کوو او نه به دَ دے صفت نه انکار کوو۔ نو مراد به دا وی چه دا سے فوقیت او اوچتوالے چه دَ الله تعالیٰ دَ شان سره ځائیږی۔ او هغه فوقیت دَ عرش دَ پاسه دے په سبب دَ صریح نصوصو سره او فوقیت دَ الله تعالیٰ په سورت ﷲ او نحل کښ ذکر دے۔

قُلْ لَّآ اَشْهَدُ ج قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

ته ورته اووايه چه زه خو نه منم. ته اووايه چه يقيناً هغه حقدار د بندګئ يو دے

وَّاِنَّنِیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ⑲ اَلَّذِيْنَ

او يقيناً زه ځان پاک (لرے) ساتم د هغې نه چه شرک کوئ تاسو. هغه کسان

اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ

چه ورکړے دے مونږ هغوی ته کتاب پيژنی دغه نبی لره (په صداقت د توحيد کښ) لکه چه پيژنی

اَبْنَآءَهُمْ ۘ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

ځامن خپل. هغه کسان دی چه تاوانی کړے ئے دی ځانونه خپل [1]

[1] دا هم طريقه د تعليم ده جواب د سوال دے چه تاسو مونږ ته په توحيد باندے او په خپل صداقت باندے هيڅ ګواه پيش نه کړو نو جواب اوشو چه لوئے ګواه په دے خبره الله تعالىٰ دے او قرآن ئے د دے د پاره راليګلے دے.

قُلِ اللّٰهُ د دے نه استدلال شويدے چه د شئ اطلاق په الله تعالىٰ باندے کيږی ليکن حقه خبره داده چه په نقل (قرآن او حديث) کښ دا اطلاق په الله تعالىٰ باندے صراحةً نه دے ثابت صرف منطقی قانون د دے مسئلے د پاره کافی نشی کيدلے. شَهِيْدٌۢ بَيْنِیْ اه شهادت د الله تعالىٰ په اثبات د توحيد او په براءت سره د انداد او اضدادو نه دے (نيشاپوری). وَاُوْحِیَ اِلَیَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اشاره ده چه شهادت د الله تعالىٰ په قرآن کښ ذکر دے. لِاُنْذِرَكُمْ فائده د وحی د قرآن د منکرينو د پاره انذار دے د دے وجے نه ئے بشارت ذکر نه کړو.

وَمَنْۢ بَلَغَ د دے نه معلومه شوه چه محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ترقيامته پورے رسول دے ځکه چه چا ته قرآن اورسی نو د هغه نذير دغه نبی صلى الله عليه وسلم دے او دا دليل دے چه په احکامو د قرآن سره په وخت د نزول کښ او روستو موجود يدونکی ټول مخاطب دی او دا دليل دے په ختم د نبوت سره په محمد صلى الله عليه وسلم باندے.

اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ استفهام د زجر د پاره دے. قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ اوله کلمه کښ توحيد دے او په دويمه کښ براءت د شرک نه. او په دے آيت کښ

ع ۲ / ۸

فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٢٠﴾ ع وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ

پس دوی ایمان نه لری۔ او څوک ډیر لوئے ظالم دے د هغه چا نه

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ط

چه جوړوی په الله تعالیٰ باندے دروغ یا دروغژن ګڼړی ایاتونه د هغه۔

اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٢١﴾ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ

یقیناً نشي بچ کیدے ظالمان۔ او په هغه ورځ چه جمع به کړو دے ټولو لره

جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا

په یو ځائ بیا به او وایو هغه کسانو ته چه شرک ئې کړیدے

نتیجه ده په توحید سره د مخکښې دلیلونو۔

۲۰ روستو د شهادت د الله تعالیٰ نه شهادت د علماؤ ذکر کوی نو دا دلیل نقلی دے د مخکښې کتاب منونکو نه۔ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ دا لفظ د صالحینو کتابیانو د پاره استعمالیږی يَعْرِفُوْنَهٗ ضمیر راجع دے محمد صلی الله علیه وسلم ته سره د صفاتو د هغه نه یا راجع دے قرآن ته (سمعانی)۔ یا راجع دے هغه څیز ته چه نبی صلی الله علیه وسلم راوړے دے (ابن کثیر) اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا په ۱۲ کښې منکرین د قیامت مراد وو او دلته منکرین د رسول او د قرآن مراد دی۔

۲۱ دا زورنه ده شرک کوونکو ته او ذکر د سبب د خسران دے۔ افْتَرٰى په الله تعالیٰ دروغ جوړوی یعنی نسبت د شرک د جواز الله تعالیٰ ته کوی یا دعوٰی د نبوت کوی په دروغه سره۔ اَوْ كَذَّبَ یعنی ایاتونه د توحید نه منی دروغژن ئې ګڼړی یا ایاتونه د قرآن نه منی او دا دواړه ډلے ظالمان دی او دا سے په دے سورت ۹۳ او ۱۴۴ او سورة اعراف ۳۷ او سورة یونس ۱۷ او سورة هود ۱۸ او سورة کهف ۱۵ او سورة عنکبوت ۶۸ او سورة صف ۷ کښې هم دی۔

أَيْنَ شُرَكَآؤُكُمُ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۲۲﴾

چه څه شول مدد ګاران ستاسو هغه چه تاسو پرے ګمان کوو (چه دوی سفارشیان دی).

ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ إِلَّآ أَنْ قَالُوْا وَاللّٰهِ

بیا به نه وی بهانه دَ دوی مګر دا چه وائی په قسم دے په الله

رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ ﴿۲۳﴾ أُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا

چه رب زمونږ دے، نه وو مونږه شرک کوونکی. اوګوره څه رنګ دروغ اووئیل دوی

عَلٰٓى أَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۴﴾

په ځانونو خپلو باندے. او ورک به شی دَ دوی نه هغه چه دوی څه دروغ جوړول.

۲۲ دا بره أخروی ده هغه مشرکانو ته چه نیکان بندګان ئے دَ الله تعالیٰ سره شریک کړے دی په ورځ دَ قیامت به هغوی دَ دوی نه غائب وی او دوی به دَ شرک نه انکار اوکړی. لِلَّذِيْنَ أَشْرَكُوْا شربینی وئیلے دی دا عام دے هغه چا ته چه بندګی ئے دَ بتانو کړے ده یا دَ عزیز او مسیح یا دَ تیارے او رنړا وغیره.
شُرَكَآؤُكُمْ اضافت دَ دے وجے نه دے چه تاسو دوی مسمٰی کړے وُو په شرکاء سره. تَزْعُمُوْنَ، زعم اکثر قول او عقیدے باطلے ته وئیلے شی.
۲۳ وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ اوله معنیٰ دا ده چه قسم په الله تعالیٰ چه مونږ شرک نه دے کړے (دوی به انکار اوکړی بیا به الله تعالیٰ خله دَ دوی بنده کړی او اندامونه به ئے ګواهی ورکړی نو بیا به اقرار کوی). دویمه معنیٰ دا ده چه قسم دے مونږ چه څه کړے دی هغه شرک نه وُو هغه خو وسیله وه او دَ بزرګانو سره محبت وُو. دَ اولے معنی تائید په سورة مؤمن ۷۴ کښې دے او دَ دویمے معنی په سورة نحل ۲۸ کښې. فِتْنَتُهُمْ په معنی دَ قول او دَ عذر او دلیل دے او سمعانی وئیلے دی چه یو انسان مفتون شی په یو محبوب څیز باندے بیا ورته په دے کښې مصیبت اورسی نو دے دَ هغه محبوب نه براءت اوکړی نو اوئیلے شی چه نه وه دَ دهٔ فتنه مګر دا وه.
۲۴ دروغ قصے دَ شرک چه دوی دَ ځان نه جوړے کړے وے هغه به دَ دوی نه هیرے شی یا هغه معبودان چه دوی دَ هغوی عبادت کوؤ سیوا دَ الله تعالیٰ نه

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۚ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ

او بعض د دوی نه هغه څوک دي چه غوږ کیږدي تا ته (خو نه پوهیږي) حکمه چه پیدا کړي دي موږ په

قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ

زړونو د دوی باندې پردې د پوهې د دې قرآن نه او په غوږونو د دوی کښې

وَقْرًا ۚ وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ

دروند والی دی او که اوویني دوی هر قسم معجزه نو ایمان نه راوړي په هغې

حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ

تر دې پورې چه راشي تا ته (نزدې)، جګړه کوي تا سره وائي دا

كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾

کافران نه دې دا قرآن مګر قیصې دي د زړو خلقو۔

هغه به د دوی نه غائب شي۔

۲۵ دا آیت زورنه ده چه قرآن ته غوږ کېدل په اراده د تکذیب او استهزاء سره نو په مقصد د هغې (چه توحید دې) نه پوهیږي ځکه چه د ضد د وجې نه زړونه او غوږونه او سترګې یې د حق نه بندلاوي۔ او قرآن بیان کوونکي سره جګړه کوي او قرآن ته زړې دروغ قصې وائي۔ وَجَعَلْنَا اشاره ده چه دا بندلول د حواسو د دوی الله تعالیٰ کړې دي نو څوک یې بدلولې نه شي او دیته جعل تکویني (تقدیري) وئیلې شي۔ وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ اه دا اشاره ده روند والي ته د حق نه چه د سترګو آفت دې دا سے په سورة کهف ۵۷ کښ هم دي۔

حَتَّىٰ إِذَا اه یعني اول خو د لرې نه غوږ کیږدي بیا د عناد د وجې نزدې کیږي د پاره د جنګ کولو۔ يُجَادِلُونَكَ مجادله د ځلې بحث کول او مناظرې کولو ته وئیلې شي۔ أَسَاطِيرُ جمع د اسطورة ده لیکلې شوې ته وئیلې شي اوس هم د قرآن په باره کښې د منکرینو خیال دې چه دا د قصو کتاب دې دا رنګ بعض وائي چه د دې د نزول د پاره جدا جدا قصې دي نو دا په هغه قصو پورې خاص دې په بل څیز باندې چسپان نشي کیدلې۔

وَهُمۡ يَنۡهَوۡنَ عَنۡهُ وَيَنۡـَٔوۡنَ عَنۡهُ ۚ

او دوی منع کول کوی دَ هغه نه او لرے کیږی دَ هغه نه ،

وَإِن يُهۡلِكُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمۡ وَمَا يَشۡعُرُونَ ﴿٢٦﴾

او نه هلاکوی دوی مگر ځانونه خپل او دوی نه پوهیږی۔

وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذۡ وُقِفُواْ عَلَى ٱلنَّارِ فَقَالُواْ

او که او وینے ته هغه وخت چه اوبه دروله شی دوی دَ اُور په خواکښ پس وائی به

يَٰلَيۡتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ

هائے افسوس دَ زمونږ چه واپس کړے شوے موږ ه (دُنیا ته) او نه به دروغژن کړو موږ ه ایتونه دَ رب خپل او وُ به

مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿٢٧﴾ بَلۡ بَدَا لَهُم مَّا كَانُواْ

دَ مؤمنانو نه۔ بلکه ښکاره شو دوی ته هغه څه چه

٢٦ دا هم زورته دہ عطف دے په ما قبل باندے دَ دے یو معنیٰ دا دہ چه دَ قران نه نور خلق منع کوی او پخپله هم لرے کرځی بله معنیٰ دا دہ چه دَ دے پیغمبر دَ تکلیف ورکولو نه خلق منع کوی لیکن پخپله ئے نه منی لکه ابوطالب چه وؤ او دَ هغه اشعار شربینی او سمعانی وغیرہ نقل کړے دی۔

٢٧ دا یرہ اُخروی دہ او ذکر دَ افسوس دے په قران او په توحید پسے۔
وَلَوۡ تَرَىٰٓ جزا ئے پټه دہ یعنی (ضرور او به وینے ناکاره حال دَ دوی)۔ عَلَى ٱلنَّارِ په لفظ دَ علیٰ کښ اشارہ دہ چه او درول دَ دوی ډیر قریب دی اُور ته۔ او وُقِفُوا هغه پیش کیدل دی چه ورسرہ معنیٰ دَ خبر یدلو وی په حقیقت باندے۔
يَٰلَيۡتَنَا نُرَدُّ په دے کښ تمنا دَ واپس کیدلو دہ دنیا ته او دا په ډیرو ایاتونو کښ ذکر دہ لکه سورۃ الم سجدہ ١٢ فاطر ٣٧ سورۃ مؤمنون ٩٩۔ وَلَا نُكَذِّبَ په زور دَ باء سرہ په تقدیر دَ ان سرہ جواب دَ تمنا دے او دا سے لفظ دَ نکون هم دے یعنی اذا نرد فلا نکذب (کله چه واپس شو بیا به تکذیب نه کوو)۔

يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا

پټول دوي مخکښې د دې نه . او که واپس شول دوي دنيا ته خامخا او به کړي

لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۲۸﴾ وَقَالُوْۤا

هغه کارونه چه منع شوي دي دوي د هغې نه او يقيناً دوي خامخا دروغژن دي . او وائي دوي

اِنْ هِیَ اِلَّا حَیَاتُنَا الدُّنْیَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِیْنَ ﴿۲۹﴾

نه ده دا مګر ژوند دې زمونږه نيړدې او نه يو مونږه دوباره پورته کړې شوي .

وَلَوْ تَرٰۤی اِذْ وُقِفُوْا عَلٰی رَبِّهِمْ ؕ قَالَ اَلَیْسَ

او که او وينې ته هغه وخت چه پيش به شي دوي رب خپل ته . او به وائي آيا نه دې

هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰی وَرَبِّنَا ؕ قَالَ

دا (ژوند) حق . دوي به او وائي هاؤ ولې نه قسم دې په رب زمونږ . او به وائي الله تعالیٰ

فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۰﴾ ع

پس اوڅکئ عذاب په سبب د هغې چه تاسو کفر کوؤ .

قَدْ خَسِرَ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ

يقيناً تاوان کښې پريوتل هغه کسان چه دروغژن ګڼړي پيښي د الله تعالیٰ .

۲۸ دا تعلق لري د مخکښې ايت سره چه افسوس د دوي د زړه د يقين په وجه نه دې . بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ معنیٰ دا ده ښکاره شو دوي ته هغه شرک چه پټوو دوي مخکښې د دې نه په دې قول واللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِیْنَ يعني ښکاره شو په ګواهۍ د اندامونو سره . بله معنیٰ دا ده ښکاره شو تعبدار وته هغه (حق) چه پټوؤ مشرانو باغيانو د دې نه مخکښې دا قول د زجاج دې . دريمه معنیٰ دا ده چه ښکاره شو دوي ته هغه عذاب چه پټ وؤ د دوي نه مخکښې دا قول د مبرد دې .

۲۹ دا زورنه په انکار د بعثت سره ده او دا علت د د پاره د کاذبون . هِیَ ضمير راجع دې حياة معروفه ته .

۳۰ روستو دوه آياتونه د دې سره متعلق دي د پاره د اثبات د بعثت دي سره د تخويف نه -

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا

ترهغې پورې چه راشي دوی ته قيامت ناساپه دوی به او وائي

يٰحَسْرَتَنَا عَلٰى مَا فَرَّطْنَا فِيْهَا ۙ وَهُمْ

هائې افسوس دے زمونږ په کوتاهئ په باره ‌د قيامت کښې او دوی به

يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ؕ

پورته کړی بېټې د ګناهونو خپلو په شاګانو خپلو باندے

اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ

خبردار بد دے هغه بوج چه دوی يې پورته کوی. او نه دے ژوندن دنيوی

اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ؕ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ

مګر لوبې او مشغله ده. او خامخا کور روستنے (جنت) غوره دے

لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۳۲﴾ قَدْ نَعْلَمُ

هغه چارو چه ځان پې کوی ردشرک نه) ايا نو عقل نه لرئ تاسو. يقيناً پوهيږو مونږ

ملـ۳۱ سَاعَةُ قيامت ته ځکه وائي چه حساب به په هغې کښې زرکيږی. دا هـم اثبات د قيامت دے سره د زجر او تخويف اخروی نه.

بَغْتَةً هغه دے چه وخت مقرر يې معلوم نه دے اګرچه علامات يې معلوم وی

يٰحَسْرَتَنَا حسرت افسوس کول په فوت شوے څيز پسے او سخت دردمند کيدل او يا حَسْرَتَا کښې ډيره مبالغه ده په نسبت د انا متحسرٌ.

فَرَّطْنَا فِيْهَا ضمير دنيا ته راجع دے نو فِيْ ظرفيه دے يا راجع دے ساعة ته او فِيْ شانيه دے.

وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ اه هرکله چه د تفريط نسبت دوی ګمراهانو مشرانو ته کوؤ او وئيل يې چه ګناه زمونږ د هغوی په غاړه دے نو الله تعالیٰ دا وهم د دوی رد کړو او دا کنايه ده د لزوم د ګناهونو نه په دوی پورے.

ملـ۳۲ دا تزهيد في الدنيا دے د بے رغبتئ د دُنيا نه او ترغيب دے اخرت ته. په دے جمله کښې درے توجيه دی، اول دا چه لکه څنګه چه د لوبو موده لږه وی

إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ

چه خامخا خفه کوی تا لره هغه خبرې چه دوی یې وائي پس یقیناً دوی

لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ

دروغژن نه ګڼي تا او لیکن دا ظالمان د اياتونو د الله تعالیٰ نه

يَجْحَدُونَ ﴿٣٣﴾ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ

انکار کوی ۔ او یقیناً دروغژن وګڼلے شویدی ډیر رسولانو نه

مِّن قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا

مخکښې ستا نه نو صبر کړیو دوی (رسولانو) په هغې چه دوی نه دروغژن وګڼلے کیدل

وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا وَلَا مُبَدِّلَ

او دوی ته به وګیلے کیدل تردے چه راغئ دوی ته مدد زموږ او نیشته هیڅ بدلوونکے

دارنګ ژوند د دنیا لره دے دویم دا چه سامان د ژوند هغه چه اخرت پورے نه طلب کیږی په شان د لهو لعب دے چه هیڅ انجام او فائده یې نیشته دریم دالهو ولعب باطل او دهوکے ته وائي یعنی دنیا انسان لره د اخرت نه غافل کوی. لعب هغه څیز ته وائي چه هیڅ فائده په کښې نه وی. لهو هغې ته وائي چه زړهٔ پورے مشغوله کیږی. دویم فرق دا دے چه لعب هغه بے فائدے څیز دے چه مقصد پکښې زړه خوشحالی حاصلول وی، او لهو کښې خوشحالی مقصد نه وی بلکه زړه مشغولول وی. خَيْرٌ غوره ځکه دے چه باقی او همیشه دے.

۳۳ دا تسلی ده نبی ته اوله خبره داده چه دوی ستا تکذیب نه کوی بلکه دوی د الله تعالیٰ د اياتونو (یعنی توحید) انکار کوی. قَدْ نَعْلَمُ دا عنوان د محبت او د تسلئ دے. الَّذِي يَقُولُونَ مراد د دے هغه اقوال د منکرینو دی چه مخکښې د هغوی نه نقل شول په ۲۹ ۲۵ کښې او دارنګ سب وشتم نبی صلی الله علیه وسلم ته. فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ د دے یو توجیه داده چه دوی ستا تکذیب په زړه کښې نه کوی صرف په ژبه باندے د ضد د وجې نه انکار کوی. دویم دوی تا ته کاذب نه وائي بلکه صادق او امین وائي لیکن د قران نه انکار کوی لکه چه د ابوجهل نه نقل دے چه هغه وئیل چه والله مونږ ستا تکذیب نه کوو

لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِىْ
دَ کلمو (وعدو دَ امداد) دَ الله تعالیٰ او یقیناً راغلی دی تا ته بعض خبرونه

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳۴﴾ وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ
دَ پیغمبرانو . او که گران وی په تا باندے

اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِىَ
مخ اړول دَ دوی نو که ته طاقت لرے دَ دے چه طلب کړے

نَفَقًا فِى الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِى السَّمَآءِ
یو سورنگ په زمکه کښ یا اندریابه اسمان ته

فَتَاْتِيَهُمْ بِاٰيَةٍ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ
پس چه راوړے ته دوی ته څه نخه . او که غوښتے الله تعالیٰ خامخا جمع کړے به یے وُدوی لره

عَلَى الْهُدٰى فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۳۵﴾
په هدایت باندے ، پس مه کیږه ته . دَ ناپوهو نه .

بلکه تکذیب دَ هغه څیزکو وچه تا راوړے دے . بِاٰيٰتِ اللّٰهِ دَ دے نه مراد ایاتونه دَ توحید دی لکه چه سورة یونس ۱۵ ته معلومیږی .

۳۴ دا دویمه تسلی ده یعنی دویمه خبره داده که دوی ستا تکذیب کوی نو مه خفه کیږه الله تعالیٰ به در سره امداد اوکړی لکه چه تیر شوے رسولانو سره مدد کړے شوے دے . عَلٰى مَا كُذِّبُوْا علی په معنی خپله سره دے یا په معنی دَ مع دے ما مصدریه دے . اُوْذُوْا ایذاء عامه ده دَ تکذیب نه او ایذاء قولی عملی ټولوته شامل ده . لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ لکه په سورة یونس ۱۳ اوصافات ۱۷۲ کښ ذکر دی . وَلَقَدْ جَآءَكَ یعنی تفصیل دَ نصرت په واقعاتو دَ مرسلینو کښ اوګوره .

۳۵ دا دریمه تسلی ده او دا ایت دلیل دے چه په معجزه کښ دَ نبی صلی الله علیه وسلم اختیار او قدرت نیشته . حاصل دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلم ډیر حرص کوونکے وو په هدایت دَ ګمراهانو باندے که چرے قادر وے

(الثلث)

وقف منزل

وقف غفران

إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ ؕ وَالْمَوْتَىٰ

يقينًا قبلوي (حق لره) هغه کسان چه اوري او کافران (چه پشان د مړو دي)

يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴿٣٦﴾ وَقَالُوا

پورته به کړي الله تعالیٰ دوی لره بیا به هغه ته اوګرځولے شي . او وائي دوی

لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ۚ قُلْ إِنَّ اللَّهَ

ولے نشي نازلیدلے په دهٔ باندے نخه دطرف د رب د دهٔ نه . ته اووایه یقینًا الله تعالیٰ

قَادِرٌ عَلَىٰ أَن يُنَزِّلَ آيَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ

قدرت لري په دے چه نازل کړي نخه او لیکن زیات خلق د دوی

چه د سورنګ د زمکے یا اسمان نه د ختلو په ذریعه معجزه حاصلیدلے شوے نو دے نبي به دا کار کړے وو لیکن د هغه په قدرت کښ نیشته. نَفَقًا فِي الْأَرْضِ أَوْ سُلَّمًا اه مطلب دا دے چه منکرینو چه معجزات طلب کول نو هغه د زمکے او د اسمان سره تعلق لري لکه په سورة اسراء ښ ۹۰ تا ۹۳ کښ. فَتَأْتِيَهُم بِآيَةٍ نه روستو فاعل پټ دے. وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ اه دا هم په تسلئ د رسول کښ داخل ده چه اے نبي هدایت په مشیت د الله تعالیٰ سره دے ستا په اختیار کښ نه دے نو په دے خفګان مه کوه. لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ یعني دوی ټولوله به یے توفیق د هدایت ورکړے وے. مِنَ الْجَاهِلِينَ هغه خلق چه ملا زمه د مشیت او د هدایت نه مني دا رنګ هغه څوک چه تکذیب او د انکار د خلقو په وجے سره بے صبري اوکړي دا کار د جاهلانو دے. فَلَا تَكُونَنَّ کښ مقصد بچ ساتل د نبي دي د حال د جاهلانو نه.

ښ۳۶ دا هم تسلي ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته. په دے ایت کښ علت د علام هدایت د منکرینو ګچه هغه د ضد او عناد د وجے نه نه اوریدل د حق دي. وَالْمَوْتَىٰ مراد د دینه هغه کافران عنادیان دي چه نه اوریدلو کښ پشان د مړو دي. د دے تشبیه نه معلومه شوه چه مړي نه اوري دا سے په تفسیر خازن او نیشاپوري او سراج المنیر وغیره کښ لیکلي دي. يَسْتَجِيبُ مفعول پټ دے یعني دعوة الایمان.

يَسْمَعُونَ سماع د انابت او د فهم حاصلولو مراد ده.

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ
نه پوهیږي. او نشته هیڅ ژندۍ سر په ځمکه کښې
وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ
او نه مرغۍ چه الوځي په وزرو خپلو مګر ډلې دي ستاسو پشان
مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ
نه دې پرېښې موږ په دې کتاب کښې د هیڅ ضروري مسئلې (دَدین) نه بیا په رب خپل ته
يُحْشَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا
جمع کړے شي. او هغه کسان چه دروغژن کړي آیاتونه زموږ

۳۷ دا زورنه ده اوسوال اوجواب دے. اٰيَةٌ دَ دینه هغه معجزات مراد دی چه کافرانو طلب کول، داعطف دے په ماقبل باندے یعنی موتٰی (کافران) نه اوري بلکه طلب دَ معجزے کوي. لَا يَعْلَمُوْنَ عاقبت دَ انکار دَ معجزاتِ مطلوبه چه هلاکت دے. دارنګ لَا يَعْلَمُوْنَ یعنی نه پیژنی اختیارمَن دَ معجزاتو.

۳۸ دَ دے آیت نه ترس۷۳ پورے دریم باب دے په دےکښې لس عقلي دلیلونه دی اولس آداب دی چه په هغےکښې بعضِ طریقے دَ تعلیم دی. ۵۰ ۵۱ ۵۲ ۵۴ ۵۶ ۵۷ ۵۸ ۶۱ اوتخویف دنیوی ۴۷ اودوه عقبات دَ تبلیغ ۵۲ ۵۵ کښې اوڅلور تخویف اخروی اونتیجه دَ دلیلونو. په دَ دے آیت ۳۸ کښې دلیل عقلي دے دادلیل دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے تعلق لري دَ ان الله قادرسره یا اشاره ده چه نورومعجزاتو ته حاجت نیشته بلکه حالات دَ دواب اومرغانو پوره دلیل دے په قدرت او علم دَ الله تعالیٰ باندے لفظ دَ فی الارض او بجناحیه دَ تاکید دَ پاره اودَ دفع دَ وهم دَ مجاز دَ پاره دے چه دابّة کله صرف انسان ته وئیلے شي دارنګ طَآئِرٍ کله قاصد ته وئیلے شي نومعلومه شوه چه دغه معانی مراد نه دی. اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ مماثلت په ډیرو حالاتوکښې دے یعنی خلق، رزق، موت، معرفت دَ الله تعالیٰ اوتسبیح توحید، حاجات، علم په نفع اوضرر، ځان بچ کول دَ ځایونو دَ هلاکت نه اودشمن پیژندل، توالد، تناسل. فِي الْكِتٰبِ اه مراد دَ دینه لوح محفوظ (کتاب التقدیر) دے نو اشاره شوه تقدیر دَ هرڅیز ته. یا مراد دَ دے نه قرآن دے.

صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ ؕ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ
دوی کاڼه دی او ګونګیان دی په تیارو کښې دی - هغه څوک چه اوغواړی الله تعالیٰ

يُضْلِلْهُ ؕ وَمَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ
بے لارے کړی هغه لره - او هغه څوک چه اوغواړی الله تعالیٰ نو بوځی کړی هغه لره په لار

مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۳۹﴾ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ
نیغه باندے - ته ورته اووایه خبر راکړئ ماته که راشی تاسو ته

عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ
عذاب د الله تعالیٰ یا راشی تاسو ته قیامت آیا سیوا د الله تعالیٰ نه

سوال: په قرآن کښې خو هر څه نیشته؟
جواب: نیشا پوری وائي نیشته هیڅ علم مګر په قرآن کښې د هغے اصل شته۔ یا مراد د دے نه هغه څیزونه دی چه هغے ته په دین کښې احتیاج دے او سنت د نبی هم راجع دے قرآن ته یا مراد د دے نه د ایمانیاتو ذکر دے۔
اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ پشان ستاسو دی په مخلوقیت په حاجت د رزق کښې او په ټولو حاجتونو کښې الله تعالیٰ ته عاجزی کوونکی۔ مَا فَرَّطْنَا یعني قرآن کریم کښې ایمانیات په تفصیل سره بیان شوی دی۔ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ د دے یو مطلب دا دے چه دا انسانان به پورته کړے شي په ورځ د قیامت کښې۔ دویم مطلب دا دے چه دا څاروی او مرغان وغیره به پورته کړے شي په ورځ د قیامت، او د دوی کوړنے قصاص به واخستے شي او بیا به فنا شي په دے باره کښې ډیر احادیث ابن کثیر ذکر کړے دی۔ دریم مطلب دا دے چه دا څاروی مرغان وغیره به مړه شي۔ او حشر نه مراد د دوی فنا ده۔
۳۹ دا زورنه ده چه دواب او مرغان خپلو مصالحو ته هدایت موږی لیکن کافران هدایت نه موږی۔ او مخکښې آیت کښې عموم د علم د الله تعالیٰ ذکر شو نو په دے آیت کښې عموم د مشیئت د الله تعالیٰ ذکر کوی۔ فِي الظُّلُمٰتِ عطف نه دے کړے اشاره ده چه صرف صُمٌّ او بُكْمٌ مانع د هدایت نه دے بلکه ورسره دخول په ډیرو ظلماتو کښې سبب د ګمراهئ دے۔

تَدْعُوْنَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٤٠﴾ بَلْ اِيَّاهُ

بلئ تاسو که تاسو رشتینی یئ (چه دوی لائق د بلیئے دی) - بلکه خاص الله تعالیٰ لره

تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ

بلئ تاسو نو لرے به کړی هغه تکلیف چه بلنه کړیوی تاسو هغے ته که اوغواړی الله تعالیٰ

وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ﴿٤١﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ

او هیر شی ستاسو ته هغه چه تاسو یئے الله تعالیٰ سره شریک کنړئ - او یقینا لیږلے دی موږ رسولان

اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَآءِ

دیرو امتونو ته مخکښ ستا نه پس اونیول موږ هغوی په سختو د مال

وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿٤٢﴾ فَلَوْلَآ

او مرضونو سره دے د پاره چه دوی عاجزی اوکړی الله تعالیٰ ته - پس ولے نه وه

٤٠ په دے ایت کښ بل دلیل عقلی دے او په دے کښ رد د شرک فی الدعاء دے او ذکر د جهالت د مشرکانو دے چه دوی سره د دے نه چه الله تعالیٰ لره خاص بلی په مصیبتونو کښ او بیا هم ورسره شرک کوی لکه سورۃ یونس ۲۲ او اسراء ٦٧ کښ دی. اَرَءَيْتَكُمْ همزه د استفهام تعجبی دے او رَاَيْتَ په معنی د ابصرت او عرفت دے او مفعول ئے پټ دے او تا ضمیر فاعل دے او کُمْ حرفِ خطاب دے او اعراب نه غواړی صرف بیان د حال کوی حاصل معنیٰ دا ده ابصرت او عرفت الحالة العجيبة فاخبرنی عنها (که تاسو خبر یئے د عجیبه حال نه نو ما لره خبر راکړئ) . صَادِقِيْنَ چه دا اصنام اِلٰهَ دی.

٤١ د دینه معلومه شوه چه مشرکان هم بعضِ حالاتو کښ د الله تعالیٰ نه دعاء غواړی او امداد شه وائی. اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ خاص کوی تاسو هغه لره په دعا سره لکه چه نورو ځایونو کښ لفظ د مخلصین راغلے دے لکه په سورۃ یونس ۲۲ کښ. فَيَكْشِفُ اشاره ده چه الله تعالیٰ د مشرک دعا د هغه د عجز او تضرع د وجے نه کله کله قبلوی او دا په هغه باندے امتحان دے.

٤٢ دا تخویف د دنیوی عذاب دے او ذکر د ابتلاء دے په نعمتونو او عذابونو سره - او ربط د دے ایت د مخکښ سره دا دے چه څوک الله تعالیٰ ضرر په مشکلاتو کښ

إِذْ جَآءَهُمْ بَأْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ

کله چه راغئ دوی ته عذاب زموږ چه عاجزي یې کړې وې، لیکن سخت شول

قُلُوْبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا

زړونه د دوی او ښائسته کړیو دوی ته شیطان هغه عملونه چه دوی

يَعْمَلُوْنَ ﴿٤٣﴾ فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا

به کول. پس هر کله چه هیر کړه دوی هغه خبره (توحید) چه یاد شوی وه دوی ته نو را پرانستلی موږ

عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ۗ حَتّٰى إِذَا فَرِحُوْا

په دوی باندې دروازې د هر څیز تر دې چه دوی لویئ او کړه

بِمَا أُوْتُوْا أَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ

په هغه څه چه ورکړې شوې وو دوی ته اونیول موږ دوی ناسایه پس دغه وخت دوی

رالیږلی او بیا هم شرک کوی نو دے برابر دے په ګناه کښې او عذاب کښې د هغه چا سره چه په هیڅ حال کښې الله تعالیٰ ته یادوی. اَرْسَلْنَآ دلته رُسُلاً پټ دے مِنْ قَبْلِكَ د دے نه روستو فکذبوا پټ دے. بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ فرق دا دے چه مالی سختئ فقر، قحط، لوږه وغیره ته باساء وئیلے شی او مرضونو د بدن ته ضرّاء وئیلے شی کله کله د یو بل په معنی باندے استعمالیږی (قرطبی).

يَتَضَرَّعُوْنَ تضرع یعنی سوال کوی په تذلل او عاجزئ سره چه د هغے سره توبه د شرک او د ګناهونو نه هم وی.

۳ؐ په دے کښې د هغوی بد حال ذکر دے چه سختئ په هغوی باندے څه اثر اونکړو او د هغے دوه موانع یې ذکر کړې دی. فَلَوْلَآ د زورنے د پاره دے په معنیٰ د نفی سره محل د هغے تضرعوا دے او په لفظ د لولا کښې اشاره ده چه د دوی هیڅ عذر نه وو سیوا د عناد نه (نیشاپوری).

قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ، قسوة د قلب دا دے چه تذکیر د قرآن او د دلیلونو په هغے باندے هیڅ اثر نه کوی. وَزَيَّنَ الخ یعنی شرک ور ته په صورت د توحید او بدعت ور ته په صورت د سنت ښکاره کړی.

مُّبْلِسُوْنَ ﴿۴۴﴾ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ

| نا امیده وو د هرخیرنه۔ نو پریکړے شو جرړے د هغه قوم چه |
|---|

ظَلَمُوْا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۵﴾

| ظلم ئې کړیو او ټول صفتونه د خدائیوب خاص الله لره دي چه پالونکے د خلقو دے۔ |
|---|

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ

| ته دوئ ته اووایه! آیا پوهیږئ تاسو که واخلي الله تعالیٰ غوږونه ستاسو او سترګے ستاسو |
|---|

وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ

| او بند کړي زړونه (عقلونه) ستاسو۔ څوک دے ذمه وار سیوا د الله تعالیٰ نه |
|---|

۴۴ دا آیت دلیل دے په دے خبره باندے چه د شرک او بدعت او فسق سره چه د دُنیا مزے ډیرے شي امداني ډیرے وي نو دا استدراج او مهلت دے دا کرامت نه دے۔ نَسُوْا مراد د دینه پریښودل قصدًا دي په داسے طریقه چه په شان د هیر شوے وي۔ مَاذُكِّرُوْا توحید او ایمان مراد دے۔ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ او لفظ د فتح کښ اشاره ده چه مخکښ "بأساء وضراء" کښ په دوی دروازے د خیر بندے شوے وے هغه ئې ورته پرانستلے او په دے کښ برکت او اطمینان نه وی او مؤمنانو ته چه د وجے د ایمان او تقوی نه دروازے پرانستلے شي نو په هغے کښ برکات وی لکه په سورة اعراف ۹۶ کښ دی۔ اِذَا فَرِحُوْا د دے نه مراد فرح بطر دے یعنی تکبر کول د حق منلو نه لکه چه قارون کړے وُ سورة قصص ۷۶ او دیته ابتلاء بالنعم وئیلے شي۔ مُّبْلِسُوْنَ د ابلاس د معانی دی افسوس، حزن او نا اُمیدی (امام راغب)۔ دلته یو معنیٰ دا ده چه نا اُمیدی کوی د هر خیر نه، دویمه معنیٰ دا ده چه خپیمانه او غمژن وی۔

۴۵ دا آیت دلیل دے چه په هلاکت د ظالمانو باندے د الله تعالیٰ حمد لوستل پکار دی۔ دَابِرُ نه مراد آخر او نسل دے یعنی د ظالمانو نسل الله تعالیٰ ختم وی وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ اهلاک د داسے کافرانو د ایمان والا د پاره لوئے نعمت او رحمت دے د دے وجے نه الحمد لله وئیل پکار دی۔

يَأْتِيكُمْ بِهِ ۗ انْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ ثُمَّ

چه راوړي تاسو ته (دا طاقتونه) - اوګوره څنګه قسم قسم بیانوو ایاتونه بیا هم

هُمْ يَصْدِفُونَ ۝۴۶ قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ

دوی مخ اړوي ډهغې نه۔ ته ورته اووایه خبر راکړئ تاسو که راشي تاسو ته

عَذَابُ اللَّهِ بَغْتَةً أَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ

عذاب د الله تعالیٰ د شپې یا د ورځې نه هلاکیږي (په دې عذاب)

إِلَّا الْقَوْمُ الظَّالِمُونَ ۝۴۷ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ

مګر قوم ظالمان (مشرکان)۔ او نه لیږو موږ رسولان

ملګه دا بل دلیل عقلي دے مخکښې عام تکالیف ذکرکړے وُو اودلته یئے خاص
مصیبتونه ذکرکړل۔ مطلب دا دے چه د غوږونو او د سترګو او د زړونو ذمه وار
د جوړولو یو الله تعالیٰ دے بل څوک دا تکلیفونه نشي لرے کولے۔ دا ایت
دلیل دے په دے خبره باندے چه اِلٰهٌ په معنی د کارجوړوونکي او حاجت
پوره کوونکي راځي. قُلُوْبِ نه مراد دلته عقلونه دي بندولو د عقل نه مراد
لیوے کول دي۔ اَرَءَيْتُمْ دا لفظ د لږ تعجب او ارءيتکم د ډیر تعجب په ځائے
کښې استعمالیږي نو اَرَءيتکم سره عام عذاب ذکر وُو اودلته خاص مصیبتونه
ذکردي۔ يَأْتِيكُمْ بِهٖ داجمله بیان اوتعریف د اِله دے اودا سے په سورة نمل
کښې د ملګه نه ترملګه پورے او قصص ملګه ملګه کښې هم شته۔ بِهٖ ضمیر په تاویل
د ماخوذ او مختوم سره یا په تاویل د هر واحد سره راجع دے۔ نُصَرِّفُ تصریف
" په مختلف قسمونو عباراتو سره مضمون ذکرکول" نو قران کښې ذکر د توحید
اورسالت وغیره په عقلي دلیلونو او نقلي اوزجر او تخویف وغیره سره دے۔
ملګه دا بل دلیل عقلي دے چه د عذاب اختیار منډ الله تعالیٰ دے۔ په ملګه کښې
دوه قسمونه د عذاب ذکر وُو دنیوي او اخروي او دلته نور دوه قسمونه ذکر
کوي" ناڅاپه او سره د خبرونه" یا "د شپے او د ورځے" او دلته تقدیر د عبارت دا سے
دے فَمَنْ يُهْلِكُ بِهٖ۔ اوجواب د هغې هَلْ يُهْلَكُ الخ یعنی اهلاک په مشرکانو پورے
خاص دے او چا چه مشرکانو نه براءت نه وي کړے نو په هغوی باندے تبعًا اهلاک راځي۔

إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ فَمَنْ آمَنَ وَأَصْلَحَ

مگر زیری ورکوونکی او یره ورکوونکی نو چا چه ایمان راوړو او تابعداری اوکړه

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٤٨﴾

نو نه به وی هیڅ یره په هغوی باندے او نه به دوی خفه کیږی۔

وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ

او هغه کسان چه دروغژن گڼړی آیاتونه زمونږ، جوخت به شی په دوی پورے عذاب

بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿٤٩﴾ قُل لَّا أَقُولُ لَكُمْ

په سبب د دے چه دوی نافرمانی کوله۔ ته ورته اووایه! نه وایم ځه تاسو ته چه

عِندِي خَزَائِنُ اللَّهِ وَلَا أَعْلَمُ الْغَيْبَ

ځما په اختیارکښ دی خزانے د الله تعالیٰ او نه پوهیږم ځه په غیب (پټوخیزونو) باندے

وَلَا أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا

او نه وایم تاسو ته چه ځه ملک (فرښته) یم، تابعداری نه کوم مگر

۴۸ دا جواب د سوال دا دے چه دوی پیغمبر علیه السلام ته وئیل چه مونږ ستا خبره نه منو نو په مونږ باندے عذاب راوله یا معجزات راوړه۔

د جواب حاصل دا دے چه عذاب او معجزات راوستل د پیغمبرانو په اختیار کښ نه دی د هغوی کار ثواب او عذاب بیانول دی۔ بیا دا آیت زیرے دے مؤمنانو د پاره۔

۴۹ دا آیت یره د عذاب اخروی ده۔ او کَذَّبُوْا په مقابله د اٰمن او اصلح کښ دے یَمَسُّهُمْ دلته مس په معنی د الحاق او اصابت سره دے یعنی او به رسیږی او جوخت به شی عذاب په دوی پورے۔

مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ۭ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى

ذَهغه څه چه وحی کیدیشی ما ته. ته ووایه اوایا برابر دے ړوند

وَالْبَصِيْرُ ۭ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ۝ وَاَنْذِرْ بِهِ

او لیدونکے. ایا پس فکر نه کوئ تاسو. او ویره ورکړه په دے وحی سره

الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ

هغه کسانو ته چه ویریږی ذَدینه چه جمع به کړیشی رب خپل ته

لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ

نیشته دوی لره سیوا ذَ الله تعالیٰ نه دوست (بچوونکے) او نه سفارشی

نت دغکښ ایت کښ ذَ رسولانو صفات ثبوتیه ذکر شول یعنی مبشرین او منذرین نو اوس صفاتِ سلبیه ذکر کوی. په دے کښ اداب او طریقے ذَ تعلیم دی او ذَ سوالونو جوابونه دی. اول سوال دا دے چه ته نبی یئے نو خپل ملګری مالدار کړه. دویم سوال دا دے چه ته پیغمبر یئے نو مونږ ته ذَ خزانو ځایونه اوښایه او ذَ پټو خبرونه خبر راکړه. دریم سوال دا دے چه ته نبی یئے نو خوراک څښاک ولے کوے. څلورم سوال که ته دا سے نشے کولے نو بیا خو مونږ او تاسو برابر یو جوابات په ترتیب سره اوشو دا سے په سورة هود ۳۱ کښ هم دی. حاصل ذَ جواب دا دے چه زه نه دعوٰی ذَ الوهیت کووم او نه ذَ ملکیت بلکه هغه دعوٰی کووم چه ذَ بشریت سره مناسب ده چه وحی او رسالت دے۔

فائده: ذَ الوهیت دوه جامع صفتونه دی یو تصرف او اختیار او قدرت ذَ خزانو ذَ اسمانونو او ذَ زمکو او دویم علم الغیب یعنی علم بے ذَ اسبابونه او دا دواړه ذَ نبی نه منتفی دی اول په اوله جمله سره او دویم په دویمه جمله سره۔

وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ عطف دے په محل ذَ عندی باندے او لا مکرر دے ذَپاره ذَ تاکید ذَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ. اَعْلَمُ الْغَيْبَ. یا عطف دے په لا اقول باندے۔

سوال: ذَ اول او دریم سره اقول ذکر کړے دے او ذَ علم سره ئے نه دے ذکر کړے؟

جواب: اول وصف او دریم خو بالکل ممتنع دی ذَ شان ذَ بشر سره نو هغه صرف په اِدّعا سره کیږی او دویم وصف یعنی وجه امکان کیدا سے شی چه علم

لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُونَ ۝ وَلَا تَطۡرُدِ الَّذِينَ يَدۡعُونَ

دے دپاره چه همیشه پرهیز شي (د عذاب نه). او مه شړه هغه کسان لره چه بلي دوي

رَبَّهُمۡ بِالۡغَدَاةِ وَالۡعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجۡهَهُ

رب خپل صباځي او بیګاځي غواړي دوي مخ د الله تعالی.

مَا عَلَيۡكَ مِنۡ حِسَابِهِمۡ مِّنۡ شَيۡءٍ

نیشته په تا باندے د حساب د دوي نه هیڅ ذمه واري

وَمَا مِنۡ حِسَابِكَ عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ شَيۡءٍ

او نیشته دے ستا د حساب نه په دوي باندے هیڅ ذمه واري

د بعض مغیبا تو دے.

سوال: لا اقول انی ملك نه دلیل نیولے شي په فضیلت د ملائیکو په انبیاؤ باندے؟

جواب: دا نفي د ملکیت د بعض صفتونو ده چه د هغوي پشان قدرت نه لرم او د خوراک څښاک او نکاح نه د هغوي پشان مستغني نه یم او دینه فضیلت جزئیه وثابیږي شي د دے نه کلي فضیلت نه معلومیږي. اِنۡ اَتَّبِعُ اه سوال: دا حصه دلالت کوي چه د نبي صلی الله علیه وسلم مجتهدات وو.

جواب: اجتهاد یې کوؤ په وخت د ضرورت کښ لیکن اتباع د هغے یې بغیر د وحي نه کوله. اَلۡاَعۡمٰی وَالۡبَصِيۡرُ متبع د وحي بصیر دے او مخالف د هغے اعمیٰ دے دارنګ جاهل او عالم او ګمراه او هدایت والا.

سلك داهم بیان د ادب دے چه د قرآن بیان کولو کښ ضرور فائده شته نو د دوي د سوالونو او د ضد د وجے نه بیان مه پریږده. اَلَّذِيۡنَ يَخَافُوۡنَ خوف د اعتقاد مراد دے نو مراد د دے نه اهلِ کتاب او هغه مشرکان دي چه قیامت مني او اشاره ده چه ایمان په آخرت ذریعه ده د پاره د فائدے اخستلو د قرآن نه. لَيۡسَ لَهُمۡ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيۡعٌ اشاره ده چه سره د خوف د حشر نه مشرک او کافر وي د دے وجے نه د هغوي د پاره شفاعت نیشته. لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُوۡنَ په دیکښ اشاره ده فائدے د انذار کولو ته په قرآن سره. په دلیل دے چه انذار خاص دے په وحي بیانولو پورے.

فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۲﴾

پس که ته دوی اوشړے نو شے به د ظلم کوونکو نه۔

وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا

او دغسے همیشه موږ ازمایو بعض د دوی په بعضو سره عاقبت داچه او وائي دوی (منکرین)

۵۲ داهم ادب دے او جواب د سوال دے، چه موږ به هله ستا ملګرتیا کوو چه داغریبان خلق د ځان نه اوشړے جواب اوشومه شره دا ظلم دے۔ ربط ایت دا دے چه مخکښې د تقوٰی د پیدا کولو د پاره طریقه ذکر کړه نو اوس د متقیانو اِکرام ذکر کوی۔ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ دعا ذکر ده او مراد تر ینه ټول عبادات دی او دعا په هغې کښې اهم عبادت دے اشاره ده چه هر کله یو انسان کښې توحید فی الدعاء والاستعانت موجود وی نو ټول ایمان یې مضبوط وی یا مراد د دعا نه ذکر د الله تعالیٰ دے۔ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ مراد د دے نه ورځ او شپه ده ذکر د جزء او مراد تر ینه کل دے۔ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ سمعانی لیکلی دی چه وجه صفت د الله تعالیٰ دے بغیر د کیفیت (او په غیر د تاویل او تمثیل نه) او محاوره هم دا سے شته خلق بویل ته وائي چه ما ستا د مخ لحاظ اوکړو ستا مخ م اوکړو ستا مخ ته م اوکتل۔ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ الخ دا جواب د قول د مشرکانو دے هغوی وئیل چه دے غریبانو په تابانده ایمان حقیقی نه دے راوړے منافقت کوی حاصل جواب دا دے چه ظاهری علامات د دوی د اخلاص دی او د باطن حساب کول په تا باندے نیشته هغه الله تعالیٰ ته سپارلے شوید ے۔ او دویمه جمله وَمَا مِنْ حِسَابِكَ الخ صرف د تاکید د پاره راوړلے ده یا مراد د حساب نه مواخذه ده او هر کله چه مواخذه د دواړه طرف نه نیشته د دے وجے نه دواړه جملے یې ذکر کړے۔ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ سوال؛ د دے نه معلومه شو چه نبی صلی الله علیه وسلم ظلم کړے دے؟

جواب[۱]: نبی صلی الله علیه وسلم نه شړل کړے دی او نه یې د هغې اراده کړیده او معنی خو په طریقه د تعلیق سره ده یعنی که چرے ته دوی اوشړے نو د ظالمانو نه به شے۔

جواب[۲]: بعض مفسرینو لیکلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم هم د طرد (شړل) د هغوی کړے وُو په دے اراده سره چه نور کافران په اسلام کښې

أَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيۡهِم مِّنۢ بَيۡنِنَآ أَلَيۡسَ

آیا دا هغه کسان دي چه احسان کړیدے الله تعالیٰ پر دوي باندے د مینځ زموږ نه نو آیا نه دے

اللّٰهُ بِأَعۡلَمَ بِٱلشَّٰكِرِينَ ﴿٥٣﴾ وَإِذَا جَآءَكَ

الله تعالیٰ خه پوهه په شکر کوونکو باندے. او کله چه راشي تا ته

ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا فَقُلۡ سَلَٰمٌ

هغه کسان چه ایمان لري په آیاتونو زموږ نو ورته اووایه سلامتیا دے وي

عَلَيۡكُمۡۖ كَتَبَ رَبُّكُمۡ عَلَىٰ نَفۡسِهِ ٱلرَّحۡمَةَ أَنَّهُۥ

په تاسو باندے، لازم کړیدے رب ستاسو په خپل ځان باندے رحم کول،

أَنَّهُۥ مَنۡ عَمِلَ مِنكُمۡ سُوٓءَۢا بِجَهَٰلَةٖ ثُمَّ

(هغه دادے) چاچه عمل کړے وي ستاسو نه بد عمل په ناپوهۍ سره بیا

داخل شي نو دا هم ګناه نه دے او بل داچه دا اجتهادي خطائي شوي ده. او رازي وئیلي دي چه کوم ځای د انبیاؤ علیهم السلام په باره کښي ظلم استعمال شوے دے نو هغه په معنی د خطاء اجتهادي یا خلاف اولیٰ سره دے هیڅ قسم ګناه نه دے.

۵۳ دا د تبلیغ د عقبا تو نه اوله عقبه ده. یعني مشرکین او موحدین په یو بل باندے امتحان دے په موحدینو باندے اول امتحان دادے چه مشرکان پرے اعتراض کوي چه د حق پرستئ احسان صرف په تاسو باندے اوشو بل څوک نیشته. جواب دادے چه الله تعالیٰ خپل بندګان ښه پیژني.

شَٰكِرِينَ نه مراد بیان کوونکي د مسئلے دي. وَكَذَٰلِكَ کاف د باره د تشبیه دے یعني هرکله چه مالدارو کافرانو غریبان مسلمانان سپک اوګڼل په مکه کښي نو داسے په هره زمانه کښي کیږي لکه په زمانه د نوح علیه السلام کښي (سورة هود ۲۹) او سورة فرقان ۲۰ او دا لفظ د کذلك دلالت کوي په همیش والي د دے عادت باندے چه اوس زمانه کښي هم موحدینو ته داسے امتحان پیش کیږي. لِيَقُولُوٓاْ لام د عاقبت دے. أَهٰٓؤُلَآءِ اه مراد د دوي استفهام انکاري دے چه ایمان راوړل څه احسان نه دے کنه موږ د دے احسان ډیر حقدار یو لکه سورة احقاف ۱۱ کښي دي. الشَّٰكِرِينَ یعني هغه څوک چه په

تَابَ مِنْ بَعْدِهٖ وَاَصْلَحَ فَاَنَّهٗ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۵۴﴾
توبه اوباسی روستو دَ دینه او نیک عمل اوکړی تو یقیناً الله تعالیٰ بخونکے دَ رحم کوونکے دَے.

وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ
او دغسے تفصیلی بیانوو مونږ ایاتونه (دَ توحید) او دے دَپاره چه ښکاره شی

سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۵۵﴾ قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ
لار دَ مجرمانو. ته اووایه یقیناً څه منع کړے شوے یم

هغوی کښی اهلیت دَ اسلام شته نو الله تعالیٰ هغوی له توفیق دَ ایمان ورکوی.
سکه دا بیان دَ ادب دے چه کله دا بیان کوونکی دَ حق ستړے ستومانه راشی نو ته هغوی ته دَ خوشحالئ خبرے اوکړه او هرکله چه مخالفینو په دوی باندے طعن کړے وؤ چه تاسو ترا وسه پورے په شرک او کفر وغیره کښی وئے نو اوس مونږ ته مسئلے کوئ؟ نو دَ هغې جواب دے په دے لفظ دَ كَتَبَ رَبُّكُمْ الایة کښی دَ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ دَ دے سلام نه مراد سلام تحیه نه دے بلکه خبر راغلے او دعا ده دَ سلامتیا دَ دین او دَ دنیا. آیة دا تفسیر دَ رحمت دے یعنی روستو دَ توبے نه بخنه کول رحمت دے.
سوال: سنت دَ سلام خو دا دے چه راتلونکے به سلام کوی په حاضر باندے او دلته حکم برعکس دے.
جواب: دلته امر دے په رسولو دَ سلام دَ الله تعالیٰ دوی ته یا په معنی دَ دعا دے (الله تعالیٰ دِ تاسو ته سلامتیا درکړی) یا دا خصوصیت دَ دغه صحابو دے یا په معنی دَ مرحبا وئیلو سره دے او سلام په قرآن کښی په ډیرو معانو سره دے.
۱ په معنی دَ تحیه معروف لکه سورة نور ۶۱. ۲ سلام دَ استیذان سورة نور ۲۷
۳ سلام دَ الله تعالیٰ په انبیاؤ او په صالحینو لکه سورة نمل ۵۹ او سورة صافات ۷۹
۴ سلام دَ اعراف والو دَ سورة اعراف ۴۶ ۵ سلام دَ اهل جنت په معنی دَ مبارکئ دَ سلامتیا لکه سورة یونس ۱۰ ۶ سلام دَ مقاطعے لکه سورة مریم ۴۷. ۷ سلام په کافرانو باندے سورة طٰهٰ ۴۷ ۸ په معنی دَ سالم سورة انبیاء ۶۹ ۹ کلمه دَ سلامتیا سورة فرقان ۶۳ ۱۰ صفت دَ الله تعالیٰ سورة حشر ۲۳.
سهٔ۵ دا دویمه عقبه دَ تبلیغ ده یعنی دوی اعتراض کوی چه بله مسئله تاله نه درځی

أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

دَ دینه چه بندګی اوکړم دَ هغه کسانو چه رابلئ تاسو هغوی سیوا دَ الله تعالیٰ نه

قُلْ لَا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَا

ته اووایه! تابعداري نه کوم ځه دَ خواهشاتو ستاسو ، یقینًا ګمراه به شم دغه وخت او نه به یم

أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿٥٦﴾ قُلْ إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ

ځه دَ هدایت والو نه . ته ورته اووایه! یقینًا ځه په ښکاره دلیل باندے یم

مِنْ رَبِّي وَكَذَّبْتُمْ بِهِ ۚ مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ

دَ طرف دَ رب خپل نه او تاسو دروغژن ګڼړئ هغے لره. نیشته ځما سره هغه څیز چه په تلوار سره غواړئ تاسو

بِهِ ۚ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ يَقُصُّ الْحَقَّ ۖ وَهُوَ

هغے لره. نه دے اختیار مګر الله تعالیٰ لره دے بیانوی حق لره او هغه

خَيْرُ الْفَاصِلِينَ ﴿٥٧﴾ قُلْ لَوْ أَنَّ عِنْدِي

غوره دے دَ فیصله کوونکو نه . ته اووایه که چرے وے ځما په اختیار کښ

همیشه دا یوه مسئله دَ توحید کوے یعنی ته جاهل یئے ؟ جواب دا دے چه دا مسئله

بار بار ځکه بیانوؤ چه دَ توحید او دَ شرک لارے جدا جدا معلوم شی.

وَلِتَسْتَبِينَ دَ دے نه مخکښ معطوف علیه پټ دے لیظهر لك الحق ولتستبين

۵۵ دا هم اَدب او طریقے دَ تعلیم دی او دَ سوالاتو جوابونه دی.

اول سوال: بندګی دَ غیر الله جائز ده ولے نه کوئ .

جواب اوشو: چه زه منعه کړے شوے یم.

دویم سوال: زمونږ دَ دین تعبداری ولے نه کوئ ؟

جواب اوشو: دا خواهشات دی او سبب دَ ضلال او دَ ترک هدایت دے په

دے ایت کښ ذکر دے دَ سبیل المجرمین چه عبادت دَ غیر الله دے.

نُهِيتُ نهی په قران کښ په صریحی نهی سره او په عقلی نقلی دلیلونو سره ذکر

ده او دا سے په سورة مؤمن ۶۶ کښ هم دی.

۵۷ دا دَ دریم سوال جواب دے چه ستا په خبره باندے څه دلیل شته ؟

مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ

هغه څیز چه تاسو یې تلوارے غواړئ هغے لره، خامخا فیصله به کړے شوې وے په مینځ زما

وَبَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۸﴾

او په مینځ ستاسو کښ- او الله تعالیٰ خه پوهه دے په ظالمانو باندے-

وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ۭ

او خاص د هغه سره دی کونجیانے د غیب (پټو څیزونو) نه پوهیږی په هغے مګر هغه (الله تعالیٰ)

وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۭ وَمَا تَسْقُطُ

او پوهیږی (علم لری) په هغه څه چه او چه کښ دی او په لوندة کښ دی- او نه پریوځی

جواب دا چه دلیل شته لیکن تاسو ئې ته منع دا بیان د نهیت دے چه نهی په بینه سره شوې ده او مراد د بینة نه قران دے۔ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ مراد د دینه عذاب د دنیا دے لکه په سورة انفال ۳۲ کښ دی یا قیامت دے لکه سورة شوریٰ ۱۸ کښ دی۔ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا حکم تکوینی او تشریعی دواړه مراد دی دا سے په سورة یوسف ۴۰، ۶۷ کښ هم دی۔ يَقُصُّ الْحَقَّ، قص تفصیلی بیان ته وئیلے شی یا یقص په معنیٰ د یقضی دے لکه چه بل قراءت کښ راغلے دی هرکله چه حکم او قضا مستلزم ده فیصلے لرة د دے وجے نه الفاصلین ئې اوئیلو۔

۵۸ دا څلورم سوال جواب دے چه هرکله مونږ په باطله یو نو په مونږ عذاب ولے نه راولے کیدیشی چه تا ته ئې اختیار د عذاب درکړے وی۔ جواب او شوکه ما سره اختیار وے نو ما به زر فیصلے کړے وے۔

سوال: په حدیث د مسلم کښ ذکر دی چه د طائف نه په واپسئ کښ ملك الجبال نبی صلی الله علیه وسلم ته ښکاره شو که ته غواړے چه ستا دا مخالفین د غرونو تر مینځ او چقووم۔ نو معلومه شوه چه د نبی صلی الله علیه وسلم په اختیار کښ عذاب وو؟۔

جواب: په وخت د طلب کولو د منکرینو کښ عذاب لرة د نبی صلی الله علیه وسلم په اختیار کښ نه وو۔ او حدیث کښ دا نیشته چه هغوی عذاب طلب کړے وو دا خو صرف ملك الجبال عرض کړے دے (ابن کثیر)۔

مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِىْ ظُلُمٰتِ

هيڅ يو پاڼه مګر هغه په علم د الله تعالىٰ کښې ده او نه په يو هغې يو دانه په تيارو

الْاَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ اِلَّا فِىْ كِتٰبٍ

د زمکه کښې او نه لونده او نه وچه مګر په کتاب

مُّبِيْنٍ ﴿۵۹﴾ وَهُوَ الَّذِىْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ

ښکاره کښې دی۔ او خاص الله تعالىٰ هغه ذات دے چه اوده کوی تاسو د شپے

وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ

او پوهيږي په هغه کارونو چه کوئ يې تاسو د ورځے بيا راپورته (راويخوی) کوی تاسو

۵۹ هرکله چه اوښيلے شو چه د نبی صلی الله علیه وسلم سره اختيار د عذاب نيشته نو سوال راځے چه اختيار خو ورسره نيشته ليکن علم د وخت د عذاب به ورسره وی نو په دے ايت کښې د هغے خبرے جواب دے په ايت کښې په اوله جمله کښې علم کلی محيط په جميع مغيبا تو بانده اجمالی ذکر شو بيا يې تفصيل ذکر کړو چه موجودات دوه قسمه دی اعيان او اعراض نو اعيان دوه قسمه دی برّی او بحری او اعراض هم دوه قسمه دی اوصاف او حرکات اوصاف دوه قسمه دی رطب او يابس او حرکات هم دوه قسمه دی حرکت د اوچت نه زمکے ته او حرکت د سطح د زمکے نه داخل د زمکے ته نو په دے کښې ټول موجودات داخل شول۔ مَفَاتِحُ جمع د مَفْتَح ده خزانے ته وئيلے شی يا جمع د مِفتح ده نو چابيانو ته وئيلے شی او حديث د بخاری کښې چه فرمائيلے دی مفاتح الغيب خمس نو دا د حصر د پاره نه دی بلکه تپوس کوونکو صرف دا پنځه تپوسونه کړے وو نو دا د هغے جواب دے۔ اَلْبَرِّ د بر (اوچه) نه د انسان فائدے ډيرے دی او د انسان علم د اوچے سره ډير متعلق دے ځکه يې هغه مخکښې ذکر کړو۔ مَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ په دے کښې ډير عموم دے چه صرف علم د ورقے نه بلکه د هغې د حرکت علم هم د الله تعالىٰ سره دے۔ رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ هر ژوندے او مړ انسان او جن بلکه ټول څيزونو ته شامل دے۔ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ په دے کښې دوه قولونه دی اول علم الله دويم لوح محفوظ۔ دے ايت کښې بل دليل عقلی دے او په دے کښې نفی د علم غيب د غير الله نه'

فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ

په بله ورځ کښې دَ دے دَ پاره چه پوره کړیشي نیټه مقرره ، بیا خاص هغه ته پیڅښې ستاسو ده

ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۶۰﴾

بیا به خبر درکړی تاسو لره په هغه عملونو چه تاسو یئے کوئ۔

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ

او هغه (الله تعالیٰ) زوراور دے پورته دے دَ بندګانو خپلونه او رالیږی

عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ۭ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ

په تاسو باندے ساتونکی ملائیک (څوکیداران). تر دے چه کله راشي یو تن ستاسو ته

الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ ﴿۶۱﴾

مرګ ساه اخلی دَ هغه نه ملائیک زمونږ او دا ملائیک هیڅ کوتاهی نه کوی ریځکم دَ الله تعالیٰ کښې

ثُمَّ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ۭ

بیا به پیش کړیشي الله تعالیٰ ته چه مولا دَ دوی حق دے۔

۵۹ دے ایت کښې دلالت دے چه دَ ټولو کلیاتو او جزئیاتو علم صرف دَ الله تعالیٰ سره دے

ټک دا بل دلیل عقلی دے چه ستاسو اوده کیدل او بیداریدل په اختیار دَ الله تعالیٰ کښې دی نو مخکښې عموم دَ علم ذکر کړو اوس عموم دَ قدرت ذکر کوی۔

يَتَوَفّٰىكُمْ توفی دَ یو څیز پوره اخستل دی او اطلاق یئے په خوب او په مرګ دواړو باندے کیږی لکه په سورة زمر ۴۲ کښې سمعانی وئیلی دی چه دلته مراد قبض دَ نفس متمیزه متصرفه دے. بِالنَّهَارِ دَ دے نه تیره شوے ورځ مراد دے او فیه ضمیر نه مراد راتلونکے ورځ ده اَجَلٌ مُّسَمًّى مراد دَ دے نه دَ هر انسان نیټه دَ مرګ ده۔

ټلا دا هم دلیل عقلی دے چه زوراور الله تعالیٰ دے، او مرګ هغه راولی تاسو دَ مرګ نه نشئ بچ کیدلے او دے ایت نه معلومه شوه چه ملائیک دَ مرګ ډیر دی، ملك الموت علیه السلام بعض کسانو له ځی دَ ساه اخستلو دَ پاره هغه هر ځائے حاضر ناظر نه دے. مخکښې ایت کښې توفی دَ خوب ذکر شوه.

په دے [۶۱] ایت کښې توفی د موت ذکر کوی. وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ اه قهر په څیز باندے غلبے ته وئیلے شی او غلبه په یو څیز باندے اوچتوالی لره مستلزم ده ځکه د قهر سره فوق ذکر کوی او قهر د الله تعالیٰ په مختلف طریقو سره دے قهر د معدوم په ایجاد سره دے او قهر په موجود باندے په فناء کولو سره دے قهر د نور په ظلمت سره دے او په عکس سره او قهر د شپے په ورځ سره او بر عکس یعنی ټولو قسمونو د انقلابی تصرف ته قهر وئیلے شی دا سے په [۱۸] کښې هم تیر شو فرق دا دے چه هلته تصرف د نفع او ضرر ذکر کړو نو ورپسے ذکر کړو چه دا یو قسم اثر د قهر د الله تعالیٰ دے او دلته مخکښې تصرف د اوده کولو او را ویخولو ذکر کړو نو ورپسے او فرمائیل چه دا بل اثر د قهر د الله تعالیٰ دے. وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً داهم یو صورت د قهر د الله تعالیٰ دے یعنی غلبه په حفاظت کولو سره او مراد د دے نه هغه ملائیک دی چه ذکر دی په سورة رعد [۱۱] کښې او دا سے په سورة انفطار [۱۰] کښې هم دی.
تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا دا سے په سورة اعراف [۳۷] او سورة نساء [۹۷] کښې هم ذکر دی.
سوال: په دے ایاتونو کښې نسبت د توفی ډیرو ملائیکو ته کړے شوے دے او په سورة الم سجده [۱۱] کښې ملك الموت ته نسبت دے او په سورة زمر [۴۲] کښې الله تعالیٰ ته نسبت دے؟
جواب: نسبت خو الله تعالیٰ ته په اعتبار د امر او اذن او اختیار د الله تعالیٰ سره دے او هرچه نسبت دے ډیر ملائیکو ته د دے یو توجیه دا ده چه دوی اعوان (مرکری) د ملك الموت دی چه ملك الموت روح قبض کړی نو دوی ئے تر بینه واخلی او بورته ئے اوړی یا د ملك الموت په امر سره دا ملائیک په خلقو باندے تقسیمیږی.
بله توجیه دا ده چه رسل جمع په معنیٰ د مفرد سره ده. او په نسبت د ملك الموت کښې هم توجیهات دی اوله توجیه دا ده چه ملك الموت یو خاص مقرر شوے دے (په خلقو کښې په عزرائیل سره مشهور دے اگرچه دا نوم په نصوصو صحیحه کښې معلوم شوے نه دے) او د هغه په امر سره نور ملائیک کار کوی. دویمه توجیه دا ده چه مراد د ملك الموت نه جنس ملك الموت دے نو د جمع سره ئے تعارض نه راځی.

أَلَا لَهُ الْحُكْمُ وَهُوَ أَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ ﴿۶۲﴾

خبردار خاص هغه لره اختیار دے او هغه زر حساب کوونکے دے۔

قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

ته ورته اووایه! څوک بچ کوی تاسو د تیارو د وچے او د دریابونو نه

تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۚ لَئِنْ أَنْجٰىنَا

چه بلئ تاسو هغه په عاجزئ سره او په پټه سره، که بچ ئے کړو مونږ

مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۶۳﴾ قُلِ

د دے (مصیبت) نه خامخا شو به مونږ د شکر گذارو نه۔ ته ورته اووایه

سلا ۶۲ دے ایت کښ اثبات د قیامت دے او د الله تعالیٰ درے صفات دی۔ مَوْلٰهُمُ دلته په معنی د مالك او متصرف دے نو کافرانو ته ئے هم نسبت کیدلے شی او په سورۃ محمد سلا کښ مَوْلَا په معنی د ناصر دے په دغه معنی سره نفی دے د کافرانو نه۔ الْحَقِّ د هغه ولایت یقینی دے او دارنګ همیشه دے۔ أَلَا لَهُ الْحُكْمُ یعنی روستو د رد نه فرمائی چه اختیار د فیصلے کولو صرف الله تعالیٰ لره دے بل چا ته ئے دا اختیار نه دے سپارلے په سلا کښ احکام دنیویه مراد دی او دلته حکم اخروی مراد دے او د فیصلے سره حساب هم شامل دے د دے وجے نه ئے په عطف سره ذکر کړو۔ أَسْرَعُ اه په حدیث سره ثابت ده چه الله تعالیٰ به د ټول مخلوق په دومره وخت کښ حساب اوکړی چه د دنیا د ورځو نه به سحر نه ترغرمے پورے وخت وی۔

سلا ۶۳ دا بل دلیل عقلی دے چه په ډیرے سختئ کښ تاسو هم الله تعالیٰ ته رامداد شه وایئ نو دارنګ په هر تکلیف کښ د هغه نه مدد غواړئ او د هغه بندګی خاص کړئ۔ ربط د دے ایت دا دے چه دا دلیل دے په دے خبره چه کافران هم الله تعالیٰ مولا حق ګنړی حکم د هغه د پاره منی په دلیل د دے چه دوی په سختو کښ صِرف الله تعالیٰ ته رامدد شه وائی۔ ظُلُمٰتِ مراد حقیقی تیارے دی چه په صحرا یا ځنګل کښ تیارے د شپے او د وریځے کښ راګیر شی او په دریاب کښ په تیارو د شپے او د وریځو او په تیارو د سیلئ او په چپو کښ راګیر شی۔

اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ

الله تعالىٰ به بچاؤ دركوي تاسو ته د هغه مصيبت نه او د هر غم نه بيا هم

اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ﴿٦٤﴾ قُلْ هُوَ الْقَادِرُ

تاسو شرك كوئ . ته اووايه الله تعالىٰ قادر دے

عَلٰٓى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ

په دے چه راوليږي په تاسو باندے عذاب د بره طرف ستاسو نه

اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا

يا لاندے د خپو ستاسو نه يا به گډ (ړوحاتي) كړي تاسو ډلي مختلف خيال والا ډلے

يا مراد د ظلمات نه سختئ او تكليفونه دي په اوچه يا په درياب كښ چه په انسان باندے داسے هيبت راولي چه بيا ئے نظر هم نه لري پشان د تيارو-

تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً مراد د تضرع نه معنى مشهوره ده يا په معنى د علانيه دے او جهر په ژبه او خفية په زړه كښ نو مراد ترينه دواړه طريقے دي ښكاره او پټ يا مطلب دا دے چه په يو وخت كښ تضرع په ژبه او پټ والے (اخلاص) په زړه كښ وي-

الشّٰكِرِيْنَ سمعانى او شربيني وئيلے دي چه شكر پيژندل د نعمت د سرة د اداكولو د حق د منعم نه - يا نسبت د نعمت دے منعم حقيقى ته سرة د خرچ كولو د نعمت نه په رضا د منعم كښ-

۶۴ دا جواب دے د مخكښ سوال او دليل دے چه الله تعالىٰ د هر مصيبت نه نجات وركوونكے دے نو تاسو ولے هغه سره شريك جوړوئ-

كَرْبٍ هغه غم دے چه ساه ورسره ډوبه شي يعنى نهايت غم . او د دے ايتونو په شان په سورة يونس ۲۲ او بنى اسرائيل ۶۷ او عنكبوت ۶۵ او روم ۳۳ او نحل ۵۴ كښ دي-

وَّيُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ ۗ اُنْظُرْ

او او به څکوي بعض ستاسو ته جنګ د بعضو - اوګوره

كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿۶۵﴾

څه رنګ قسما قسم بیا توؤ مونږ دلیلونه د دے د پاره چه دوی پوهه شي -

۶۵ دا بل دلیل عقلی دے د عذاب اختیار د یو الله تعالیٰ سره دے او دا رنګ دا یره دنیوی ده. ربط دا دے چه هرکله د یو تکلیف نه الله تعالیٰ تاسو ته نجات درکړی او بیا تاسو شرک کوئ نو الله تعالیٰ قادر دے چه په بله طریقه په تاسو عذاب را اولیږی. اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ خطاب مشرکانو کافرانو ته دے بدا د حسن بصری نه نقل دے. یا امت د محمد صلی الله علیه وسلم د پاره خطاب دے لکه چه د مجاهد نه روایت دے لیکن بنا په روستنی قول باندے اول دواړه عذابونه الله تعالیٰ دے امت نه معاف کړیدی په سبب د دُعا د نبی صلی الله علیه وسلم ابن کثیر د دے ایت په تفسیر کښ اولس احادیث په دغه یو مضمون سره ذکر کړے دی.د یو حدیث مضمون دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دے ایت د نزول په وخت کښ د اسمانی عذاب نه او د زمکے (د خسف) د عذاب نه د ټول امت د پاره پناهی اوغوختله او ئیل ئے اعوذ بوجهك او هغه قبوله شوه بیا د اختلاف د عذاب نه پناهی اوغوخته نو هغه قبوله نه شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل هٰذَا اَيْسَرُ او اَهْوَنُ (دا اسان دے).
مِّنْ فَوْقِكُمْ سیلئ، صیحه، کانړی ورول، طوفان لکه په قوم نوح، عاد، ثمود، قوم لوط او اصحاب فیل باندے وو. اَرْجُلِكُمْ غرق او خسف لکه فرعون او قارون باندے او ابن عباس او مجاهد نه مفسرینو نقل کړیدے چه مراد د اول نه امراءِ سوء دی او د دویم نه نافرمانه خدمتګاران او اولاد دی. او زمخشری وئیلی دی چه بریښنه باران بندول او د زمکے نه بوټی بندول دا فوق او تحت عذاب دے. شِيَعًا هغه مختلف ډلے چه د خواهشاتو تابع وی لکه چه حدیث کښ ثابت دی چه په دے امت کښ به درے اویا ډلے پیدا کیږی د یو نه علاوه به ټول د خواهشاتو تابع وی او دا هم مستقل عذاب دے. او دا سبب د بل عذاب دے چه يُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ مراد ترینه قتل وقتال دے په کورنئ کښ. لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ معلومه شوه چه قسما قسم ایاتونو د قران او دلیلونو سره فقاهت حاصلیږی.

وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ؕ قُلْ لَّسْتُ

او دروغژن گڼړی دے لره قوم ستا او حال دا چه دا حق دے - ته اووایه نه یم ځه

عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ﴿٦٦﴾ لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ وَّ

په تاسو باندے ذمه وار. د پاره د هر خبر وخت مقرر دے او

سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٧﴾ وَاِذَا رَاَيْتَ الَّذِيْنَ

زر دے چه تاسو به پوهه شئ. او کله چه ته اووینے هغه کسان چه

يَخُوْضُوْنَ فِیْۤ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ

(ناروا) بحث کوی په آیاتونو زمونږ کښ نو مخ اړوه د دوی نه

حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِیْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ؕ وَاِمَّا

تر دے چه مشغول شی دوی په نورو خبرو کښ او که چرے

يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ

هیر کړی ستا نه شیطان نو مه کینه روستو د

الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٦٨﴾

یاداشت نه د قوم ظالمانو سره -

سلا۶۶ دازورنه ده نه منونکوته او ضمیر د بِهٖ قرآن یا عذاب یا تصدیق الآیات ته راجع دے - بِوَكِيْلٍ هغه څوک چه کار او اختیار ورته سپارلے شوے وی نو تکذیب له منع کول کولے شی۔

سلا۶۷ دا جواب د سوال دے چه دوی انکارکوی نو عذاب وربانداے ولے نه راځی؟ جواب دا دے چه د هغے مقرر نیټه ده - نَبَاٍ هغه خبر چه په قرآن کښ موجود وی د دنیا عذاب یا د آخرت عذاب یا د قرآن عام کول.

سلا۶۸ دا ادب دے چه کله په یو مجلس کښ د شرک او بدعت او فسق خبرے کیږی نو دغه مجلس کښ شریک کیدل منع دی، صرف د هغوی د نصیحت د پاره تلل جائز دی - ربط دا دے چه مخکښ ذکر کړل مستحقین د عذاب په سبب د تکذیب

# وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِمْ

او نشته په هغه کسانو چه ځان ساتی (د شرک نه) د حساب د هغوی نه

سره او چه ورسره استهزاء او طعن مرکرے کړی نو د هغوی حال اوس ذکر کوی۔ دا رنګ تکذیب کوونکی یو خو طعن او استهزاء کوونکے دی دویم دین لره لهو لعب ګرځوونکے دی نو د اول قسم ذکر په دے ایت کښ کوی او د دویم قسم ذکر به په بل کښ کوی۔

وَإِذَا رَأَيْتَ رویة (لیدل) د سترګو او علم دواړو ته عام دے۔ الَّذِينَ يَخُوضُونَ خوض په لغت کښ په اوبو کښ ننوتلو (غوپه کیدلو) ته وئیلے شی او بیا استعمالیږی په مشغوله کیدلو په لغو او عبث خبرو یا کارونو کښ۔ بل قول دا دے چه خوض خلط (ګډ وډ کولو) ته وئیلے شی۔ قرطبی د مجاهد نه نقل کړے دے چه مراد د دینه هغه څوک دی چه استهزاء کوی په قرآن پورے۔ ابن عربی وئیلی دی چه په دیکښ اهل کبائر داخل دی۔ سمعانی وئیلے دی چه داخل دے په دے کښ هر بحث چه په ایاتونو الهیو کښ وی او د کتاب وسنت سره موافق نه وی۔ او ابن کثیر وئیلے دی چه مراد په دے خطاب سره هر فرد د افرادو د دے امت دے چه نه به کینی د هغه چا سره چه تحریف کوی په ایاتونو د الله تعالیٰ کښ او د هغے غلط تفسیر کوی۔ او قرطبی د دے د لاندے ټول بدعتیان داخل کړے دی او د هغوی په بدئ کښ ئے ډیر روایات ذکر کړے دی۔ فِي آيَاتِنَا مراد د دے نه قرآن دے او ټولو احکامو او دینی مسئلو ته شامل دے۔ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ضمیر مذکر ایاتونو ته په اعتبار د قرآن سره راجع دے یعنی داسے بحث کوی چه په هغے کښ استهزاء او طعن د قرآن او د دین نه نه وی او تحریف او غلط تاویلات نه وی۔ نو بیا ورسره کینئ او تفسیر د خوض او د اعراض په سورة نساء ۱۴۰ کښ ذکر دے۔

وَإِمَّا يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ یعنی هیر کړی عمل په دے قول باندے چه "فَأَعْرِضْ" او "لَا تَقْعُدُ" او دا دلیل دے په دے خبره باندے چه په نبی صلی الله علیه وسلم باندے نسیان راتلے شی او دا مسئله سره د اختلاف نه قرطبی لیکلے ده۔

بَعْدَ الذِّكْرَىٰ ذکری په معنیٰ د یاد داشت کے د حکم د الله تعالیٰ په اعراض سره یا په معنیٰ د نصیحت کولو او منع کولو د خوض فی الایات نه دے۔

مِنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۶۹﴾

څه شے۔ او لیکن نصیحت کول دي (په دوی باندے) دے دپاره چه دوی بچ شي۔

وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا

او پریږده هغه کسان چه جوړ کړي دے دین خپل لوبے او مشغله

وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ بِهٖٓ

او دهوکه کښې اچولے دي دوی لره ژوند دنیوی او بیان کړه قرآن

اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ لَيْسَ لَهَا

چه راګیر نشي یو نفس په سبب د عمل خپل نه به وي دهٔ لره

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ وَاِنْ تَعْدِلْ

سیوا د الله تعالیٰ نه دوست بچ کوونکے او نه سفارشي، او که جرمانه ورکوي

كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ

هره جرمانه نه به شي اخستے کیدے د هغه نه۔ دغه کسان هغه دي

ؔ۶۹ دا هم متعلق دے د مخکښې ایت سره چه د مؤمنانو په ذمه باندے تبلیغ او نصیحت کول دي دے خلقو ته هر کله چه د هغوی مجلس کښې شریک شي په مجبورئ سره۔ په دے ایت کښې دوه توجیه دي اول دا چه مشرکان ستاسو مجلس ته راشي او خوض کوي نو په تاسو باندے ګناه نیشته۔
دویم دا چه یتقون معنی دا ده چه ځان بچ کوي د شرکت د مجلس د هغوی نه نو په هغوی باندے د مشرکانو د کارونو هیڅ حساب نیشته لیکن صرف په هغوی باندے تذکیر او نصیحت کول دي۔

أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ

چه گیر به شي په سبب د عملونو خپلو، دوی د پاره څښکل دي د ګرمو اوبو نه

وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴿٧٠﴾

او عذاب دردناک دے په سبب د هغے چه دوی کفر کوي.

قُلْ أَنَدْعُوا مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُنَا

ته ورته اووایه! آیا رابلو سیوا د الله تعالیٰ نه هغه څوک چه نه فائده راکولے شي

نګ دا بل ادب دے په باره د دویم قسم خلقو کښې چه دین یې لهو ولعب ګنړلے دے او دا ایت هم مکښې ادب سره متعلق دے چه د دغه خلقو سره قطع تعلق اوکړه او بیا یره اخروی ده. اِتَّخَذُوا دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا یو معنی دا ده چه دین توحید او سنت پوره تو قے کوی او عبث یې ګنړی پشان د لوبو کولو یا ځان مشغولو لکه کمیونسټ وائي چه دا دین صرف د افیون پشان دے. دویمه معنی دا ده چه کوم شے چه لوبے دی د هغے نه یې دین جوړ کړے دے. لکه عرسونه په قبرونو د اولیاؤ یا قوالی او ګړا اکول وغیره چه بعض متصوفو او ملنګانو د بته دین وئیلے دے.
دریمه معنی دا ده چه لعب او لهو دنیا ده، یعنی دین یې د دنیا د پاره ذریعه ګرځولے ده د دُنیا جاه یا مال پرے ګټي لکه بعض سیاسیان د دے زمانے چه د قرآن او د اسلام په نوم ځان کرسئ ته اورسوی او بیا د دین تپوس نه کوی. دا رنګ اجرتیان چه قرآن لوستل او د دین کار د دنیا حاصلولو په نیت سره کوی. څلورمه معنی دا ده چه دین اختر ته وائي یعنی اختر په لهو ولعب او خواهش پرستئ کښې تیر کړی او سنت طریقه پکښې نه کوی دا رنګ په سورة اعراف ۵۱ کښې دے او دا معانی ټیشا پوری په خپل تفسیر کښې لیکلے دی. لفظ د لعب په لهو باندے په څلور آیاتونو کښې مخکښې راوړے دے لکه په دے سورت کښې ۳۲ سورة محمد ۳۶ سورة حدید ۲۰ او دا ایت، او په دوه آیاتونو کښې لهو مخکښې ذکر کړے شوے دے لکه سورة عنکبوت ۶۴ اعراف ۵۱ فرق د لهو او لعب په ۳۲ کښې ذکر شویدے او هرکله چه په دے سورت ۳۲ کښې لعب مخکښې ذکر کړے دے نو د هغے د موافقت د وجے نه په دے ایت کښې هم مخکښې ذکر کړو او اشاره ده چه دلته دریمه معنی غوره ده او سورة اعراف کښې اولا رد وی په هغه چا باندے چه لهو (بربنډ طواف) یې دین ګنړلو نو د هغے

وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ

او نه ضرر راکولے شي مونږ ته، او واپس شو مونږه په پوندو خپلو روستو د

اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ كَالَّذِى اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ

هغې نه چه هدایت کړے دے مونږ ته الله تعالیٰ (او شو به) پشان د هغه چا چه بے لارې کړے وی هغه له شیطانانو

فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ ۠ لَهٗٓ اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗٓ

په زمکه کښې چه حیران وی، د هٔ لره په ملګری وی بلی به د هٔ لره

اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ؕ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ

هدایت ته چه راشه مونږ ته (زونه به راځی). ته ورته او وایه چه یقینًا هدایت د الله تعالیٰ هغه

الْهُدٰى ؕ وَاُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٧١﴾

صحیح دین دے. او حکم کړے شوے دے مونږ ته چه اخلاص د کوؤ صرف رب العالمین ته -

د مناسبت د وجے نه اعراف ۵ کښې لهو لعب ذکر کړے شوے دے. او هرکله چه دلته دریمه توجیه غوره وه (چه دین یې د دنیا د پاره ذریعه جوړه کړیده) د دے وجے نه وړیسے غَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ذکر کړے دے وَذَكِّرْ بِهٖٓ ضمیر قرآن ته راجع دے او په دے کښې اشاره ده چه په ذَرْهُمْ پریږدئ دلوکښې ترک د دعوت مراد نه دے بلکه بے پرواه کیدل او انتظار د عذاب د هغوی مراد دے. اَنْ تُبْسَلَ د دے په معنیٰ کښې مختلف تعبیرات دی. ۱ حبس یعنی بندیدل، راګیرول، کانړه کیدل. ۲ فضیحت (شرمیدل) ۳ محروم کیدل د ثواب نه ۴ سوېزدل او کلام په اصل کښې کراهِيَةً یا لِئَلَّا تُبْسَلَ دے. شَفِيْعٌ داخاص دے په مشرک کافر پورے یا مراد دا چه بغیر د اذن د الله تعالیٰ نه سفارشی به نه وی نو عام دے. وَاِنْ تَعْدِلْ دا سے په سورة بقره ۴۸ ۱۲۳ کښې هم دی او دا سے په سورة آل عمران ۹۱ او مائدة ۳۶ کښې دی.

۷۱ دا نتیجه د تیرشوؤ دلیلونو ده او رد د شرک فی الدعا دے او په دے سره نور اداب او طریقه د تعلیم ذکر کوی او جواب د سوال دے که دنیا پرست مشرکان او وائی چه دنیا پرستی هغه چا ته نقصان ورکوی چه د هغوی ولی او شفیع د الله تعالیٰ نه سیوا نه وی (موحدا وی) نو راشئ د الله تعالیٰ نه سیوا ولی او شفیع

وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ۚ وَهُوَ الَّذِیْٓ

او دا حکم شوی مونږ ته چه پابندی کوئ د مانځه او یره کوئ د هغه نه۔ او الله تعالیٰ هغه ذات دے

اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝ وَهُوَ الَّذِیْ خَلَقَ

چه هغه ته به جمع کړے شئ تاسو۔ او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی

او نیسئ او هغه ته رامه دشه وائی نو کامیاب به شئ نو د هغه جواب دے په دے ایت کښ کښ د ما نه ولی او سفارشی مراد دے۔

وَنُرَدُّ عَلٰٓی اه دا عطف د مسبب دے په سبب باندے یعنی دعا د غیر الله سبب د ارتداد دے۔ كَالَّذِی اسْتَهْوَتْهُ اه دا حال دے چه شو به په داسے حال کښ مونږ مشابه د هغه چا سره۔ اسْتَهْوَتْهُ د هویة نه ماخوذ دے په معنی د کندے سره یعنی چه غورځولے وی شیطانانو په کنده کښ یا د هوی نه ماخوذ دے په معنیٰ خواهش دے یعنی ګرځولے وی شیطانانو تابع د خواهشاتو او بخاری وائی یعنی ګمراه کړے وی هغه لره شیطانانو۔ حَیْرَانَ حال دے یعنی داسے حیران وی چه صحیح لار نه پیژنی۔ لَهٗ اَصْحٰبٌ یعنی د مرګرو خبره هم نه منی حاصل د مثال دا دے چه یو سړے د مرګرو سره بهر وتلے وی نو پیریان او شیطانان ترینه لار روکه کړی نو مرګری ئے صحیح لارے ته رابلی او شیطانان ئے ګمراه کوی د لارے نه نو صحیح لارے ته نشی راتلے نو دا رنګ هغه څوک چه غیر الله ولی او شفیع ګنړی او حاجتونو کښ ورته رامه دشه وائی نو مؤحدین ئے توحید ته رابلی لیکن ګمراهانو پیرانو مُلیانو د هغه په دماغو قبضه کړیده نو هغه د توحید خبرے ته غوږ هم نه ږدی۔

قُلْ جواب سوال دے۔ سوال دا چه هغه مشرک وائی چه زما لار د هدایت ده زه بله لار نه منم ۶ - جواب دا دے قُلْ اِنَّ هُدَی اه۔ وَ اُمِرْنَا دا هم جواب دے د هغوی د دعوے هغوی وائی زمونږ پیرانو مونږ ته دا لار خودلے ده مونږ د هغوی تابع یو جواب اوشو وَاُمِرْنَا اه۔ او دے ایت نه معلومه شوه چه بلنه د غیر الله په حاجتونو کښ مرتد کیدل دی۔ مشرک په وخت د حاجت کښ پریشان وی چه کوم درګاه ته لاړشم کله یوله ځی او کله بل له ځی۔ او د مؤحد د پاره یو در د الله تعالیٰ دے په هر حالت کښ۔

سلا دا ذکر د حق د الله دے په توحید سره، دا عطف دے په لنسلم باندے په تاویل سره یعنی ولنقیم الصلوٰة یا امرنا ان اسلموا وان اقیموا الصلوٰة دا هم عملی

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ وَيَوْمَ يَقُوْلُ

اسمانونه او زمکه د حق ښکاره کولو د پاره. او (اختیار کړه) د هغه ورځې چه او به وائي

كُنْ فَيَكُوْنُ ڛ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۭ وَلَهُ الْمُلْكُ

اوشه نو اوبه شي - وینا د هغه حقه (رښتیا) ده. او خاص هغه لره بادشاهي ده د

يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ ۭ عٰلِمُ الْغَيْبِ

هغه ورځې چه پوکے به او کړے شي په شپېلۍ کښې . هغه عالم دے په هر پټ

وَالشَّهَادَةِ ۭ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۷۳﴾

او ښکاره باندے. او هغه حکمتونو والا دے خبردار دے.

فرق دے په مینځ د فریقینو کښې یعنی اصحاب د توحید امرکوی او دارنګ مامور دی په اقامة الصلوة او په تقوی سره او په عقیده د حشر سره او دعا کوونکی د غیر الله دا حقوق الٰهیه نه ادا کوی.

۷۳ دا بل دلیل عقلی د توحید دے چه پیدا کول د دنیا او ورانول د دنیا دواړه د الله تعالیٰ په اختیار کښې دی کارساز هم دے او غیب دان هم دے.

وَهُوَ الَّذِیْ عطف دے وَهُوَ الَّذِیْٓ اِلَیْهِ تُحْشَرُوْنَ باندے. بِالْحَقِّ سمعانی وئیلی دی چه په معنی د اظهار حق دے (یعنی دلیل د توحید) یا په معنی د کلام حق د (رښتینی). او دا دلیل دے چه کلام د الله تعالیٰ مخلوق نه دے بلکه سبب د خلق دے. وَیَوْمَ عطف دے په السموات الخ باندے (یعنی تقدیر ئې کړیدے د ورځې د قیامت) یا لفظ د اذکر پټ مراد دے. کُنْ فَیَکُوْنُ مراد ترینه مړه کول او بیا ژوندی کول د خلقو دی په کلمه د کن سره.

فائده: په دے ایت کښې د قراؤ اختلاف دے د بعضو په نیز وقف د ایت دے په فیکون باندے او د بعضو په نیز ایت نیشته.

قَوْلُهُ الْحَقُّ فاعل دے د فیکون د پاره. یا مبتدا او خبر دی. ابن کثیر وئیلی دی چه دا جمله او وروستو صفتونه د پاره د لرب العالمین دی په ملک کښې. او مراد د قول نه کلمه د کن ده یا ټول کلام د الله تعالیٰ دے. وَلَهُ الْمُلْكُ یو توجیه دا ده چه دا مستقل کلام (جمله) دے عطف دے په قوله الحق باندے

وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيْمُ لِأَبِيْهِ اٰزَرَ أَتَتَّخِذُ

او کله چه اُوئیل ابراهیم (علیه السّلام) پلار خپل ته چه (توم ئې) آزر وو، آیا گنړے ته

أَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ إِنِّيْٓ أَرٰىكَ وَقَوْمَكَ

بُتان حاجت پوره کوونکی (حقدار د بندگئ) یقیناً زه وینم تا لره او قوم ستا

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۷۴﴾ وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ

په گمراهئ ښکاره کښ - او د غسے اوخودل مونږه

او يَوْمَ يُنْفَخُ بدال دے د يوم يقول نه - يا ظرف متعلق دے په الملك پورے او تخصيص د ملك په هغه ورځ پورے په طريقه د سورة مؤمن ۱۶ سره دے. يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ، نفخ فى الصور په قرآن کښ لس کرته ذکر ده او دا ئې اول آيت دے هر کله چه دا سورت د تفصيل د عقيدے د پاره دے نو د دے وجے نه په دے کښ اول محل بانديے دا مسئله ذکر کړه او نفخ فى الصور د اهل تحقيق په نيز بانديے دوه کرته ده اول د فنا د پاره او دويم د بعث بعد الموت د پاره او په دے آيت کښ نفخ د واړو ته عام ده. صُوْر په اصل کښ قرن (ښکر) ته وئيلے شى او مراد د دے نه هغه قرن (شپيلئ) ده چه اسرافيل عليه السلام به په هغے کښ په حکم د الله تعالىٰ سره پوکے کوى د پاره د فنا د مخلوق بيا د پاره د دوباره ژوندا او په دے باره کښ ډير صحيح احاديث ابن کثير په تفسير کښ ليکلے دى او چا چه وئيلے دى چه صور جمع د صورت ده او معنى دا ده چه ارواح به په صورتونو د ابدانو کښ او پوکلے شى او ژوندى به کړے شى په دے باندے ابن کثير قرطبى او شربينى وغيرهم رد کړے دے چه دا د قرآن او حديث او اجماع الامت نه خلاف تفسير دے.

۷۴ د دے آيت نه شلورم باب دے ترنه پورے په دے کښ دليل نقلى دے د ابراهيم عليه السلام نه تفصيلاً او د اولس انبياؤ عليهم السلام نه اجمالاً يعنى د الله تعالىٰ د يو والى مسئله لکه څنګه چه په عقلى دليلونو سره ثابته ده نو دا رنګ په ژبه د ابراهيم عليه السلام او د نورو انبياؤ نه ثابته ده او مشرکين مکّه دعوىٰ کوله چه مونږه د ابراهيم عليه السلام په دين باندے يو نو د ابراهيم عليه السلام دين بيان شو. أَصْنَامًا د ستورو شکلونه او د نيکانو

# اِبْرٰهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

ابراهیم (علیه السلام) ته (دلیلونه) د بادشاهئ د اسمانونو او د زمکې (چه دلیل پرې اونیسي)

بتانو کانو شکلونه یې جوړکړي وو او د هغوی ارواح یې مددګار ګڼړل۔ اصنام جمع د صنم ده ابن جریر وئیلے دی هر هغه شکل چه د لرګی یا کټي وغیره نه جوړ کړې شي چه په شکل د انسان یا بل څه څیز سره وی او هغه شکل ته هم وئیلے شي چه په دیوال وغیره باندے په شکل د انسان وغیره سره جوړ شي او هر معبود من دون الله ته هم وئیلے شي۔ قوم د ابراهیم علیه السلام ستوری معبود ګڼړل او د هغوی بتان یې جوړکړي وو او وئیل یې چه مونږ هرکله د دے بت عبادت کوؤ نو په دے سره روح د هغه ستوري خوشحالیږي او زمونږ حاجتونه پوره کوی نو د ورځے د هغه بتانو او د شپے یې د ستورو عبادت کوؤ۔ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ ظاهر د قران دلیل دے چه ازر نوم د پلار د ابراهیم علیه السلام دے او تاریخ والو لیکلے دی چه د هغه نوم تارخ وو نو د قران په مقابله کښې تاریخ ته هیڅ اعتبار نیشته هاں کیدا شي چه ازر یې نوم وی او تارخ یې لقب وی او څوک چه وائي چه دا نوم د معبود دے او عبادت کښې لفظ د عابد ازر پټ دے او دارنګ څوک وائي چه ازر یې د تره نوم وو او تره ته پلار هم وئیلے شي نو دا قولونه د قران د ظاهر نه خلاف دی۔

اَتَتَّخِذُ اٰ دا دلیل دے چه صنم (بت او فوټو) جوړول ناجائز دی او هرکله چه د هغے عبادت کوی او د هغے دا سے تعظیم کوی لکه د الله تعالیٰ نو دا خو عین شرک دے۔ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ سوال: دا خو سخت الفاظ دی په دعوت کښې خو نرم کلمات وئیل پکار دی؟

جواب: نیشاپوري وئیلے دی چه اول بیان د هغه په سورة مریم کښې ذکر دے چه ډیر نرم دے او هرکله چه په هغے سره هدایت ته رانغے نو روستو یې ورته دا الفاظ وئیلے دی او دلیلونه یې ورته پیش کړي دی او پلار یې په دعوت کښې مخکښې کړے دے ځکه دا حق شرعي دے او د پلار حق مخکښې ادا کول پکار دی بل دا چه ازر د هغه مشرکانو مشر وو او هغه خلق به یې شرک ته رابلل د دے وجے نه دهٔ ته مخکښې دعوت اوکړے شو۔

وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ ﴿۷۵﴾ فَلَمَّا جَنَّ

او دے د پاره چه شی دے د یقین کوونکو نه۔ نو هرکله چه او غوړیده

عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا ۚ قَالَ هٰذَا رَبِّىْ ۚ

په ده باندے شپه اوئې لیدلو یو ستورے، ده اوئیل آیا دا زما رب دے،

فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ﴿۷۶﴾

نو هرکله چه پټ شو هغه، نو اُوئیل ده خه نه خوخوم زه ائیتوب د پاره) پټیدونکی۔

۷۵ دا آیت دلالت کوی په دے باندے چه ابراهیم علیه السلام د شرک رد په دلیلونو سره کړے وو. وَكَذٰلِكَ کاف د پاره د تشبیه دے یعنی لکه چه خودلے وۀ مونږ هغه ته ضلال د شرک یا په معنی د علت دے یعنی د دغه شرک د رد د وجے نه خودلے وۀ مونږ ده ته دلیلونه۔ نُرِیْ مراد د دے رویتِ علمی دے لکه په سورۃ سبا ۴۶ او سورۃ یونس ۱۰۱ کښ دی او سورۃ اعراف ۱۸۵ کښ۔ مَلَكُوْتَ اه دا مبالغه د مِلك ده او د مجاهد او سعید بن جبیر نه شربینی نقل راوړے دے چه مراد د دے نه آیات (دلیلونه) د آسمانونو او د زمکے دی یعنی عقلی آفاقی دلیلونه د توحید۔ وَلِيَكُوْنَ اه د دے نه مخکښ معطوف علیه پټ مراد دے "لیستدل" د پاره د دے چه دلیل اونیسی د پاره د رد د مشرکانو په هغې سره۔ الْمُوْقِنِيْنَ یقین عبارت دے د هغه علم نه چه حاصل شی په دلیل سره او هیڅ شبه پاتے نه شی۔

۷۶ د کوم ستورے عبادت چه دوی کوو هغه ښکاره شو. هٰذَا رَبِّىْ په طریقه د تپوس انکاری سره دے یعنی آیا دا رب کیدے شی؟ نه، دا قول د قطرب دے لکه سورۃ انبیاء ۶۳ کښ۔ یا دا معنیٰ ده چه دا رب دے په عقیده ستاسو کښ لکه په سورۃ حم سجده ۴۷ کښ او دا چه وئیلے شویدی چه ابراهیم علیه السلام په عقیدے سره وئیلے وۀ چه دا رب دے او بیا روستو ئې توحید اوپیژندو یا دائې په طریقه د شک سره وئیلے دی دا دواړه خبرے باطلے دی ځکه چه انبیاء علیهم السلام د شرک نه یقینًا پاک دی او د هغوی عقیده د توحید نه چرے نه خالی کیږی. او دا خبره قرطبی او شربینی او ابن کثیر په تفصیل سره لیکلے ده او دوی وئیلے دی چه جائز نه ده چه په نبی باندے داسے وخت راشی چه هغه د توحید نه خالی وی۔ نو معلومه شوه چه دا بیان ابراهیم علیه السلام په طریقه

فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا رَبِّىْ ۚ

پس هر کله چه اولیده دهٔ سپوږمئ ځلیدونکے دهٔ اُوئیل ایا دا ځما رب دے

فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِىْ رَبِّىْ

نو هر کله چه پټه شوه، دهٔ اُوئیل که نه وے کړے خودنه ما ته رب ځما (د توحید)

لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ ﴿٧٧﴾ فَلَمَّا

خامخا وے یم ځهٔ دَ قوم ګمراهانو نه - پس هر کله چه

دَ دلیل سره قوم ته پیش کړے وو اوپه دے باندے لفظ دَ فا په فلما کښ دلالت کوی چه روستو دَ رد دَ شرک اوکَ دلیلونو خودلو ته دا استدلال ئے کړے دے دا رنګ دلیل په دے باندے وحاجه قومه او تلك حجتنا آتینها ابراهیم اودا رنګ سورة انبیاء ۵ کښ ئے اوکوے قصے چه دلته بعض مفسرینوکَ ابراهیم علیه السلام په باره کښ لیکلے دی هغه اسرائیلیات دی۔ اَفَلَ پټیدل او ښکاره کیدل عوارض دی او په چاچه عوارض راځی نو هغه اِله نشی کیدے دا رنګ په چاچه ژوند پسے مرګ راځی او قبر کښ پټیدلے شی نو هغه هم حاجت روا نه شی کیدے۔ دلیل نیول په افول سره فائده ورکوی خواصو، اوساطو او عوامو لره خواص خلق کَ دے نه معلوموی امکان لره او هر ممکن محتاج وی او محتاج معبود نه شی کیدے۔ اوساط خلق معلوموی کَ دے نه حرکت او هر متحرک حادث وی او حادث اِله نشی کیدے او عوام فهم کوی کَ دے نه پټیدل او په پټیدلو سره ټور لا رشی او تیدیلی راشی او دا سے حالت دَ اِله دَ پاره نشی کیدلے اودا استدلال تمام ممکناتو حوادثو ته شامل دے که انسانان دی که جنات او که ملائیک دی، ژوندی دی او که مړهٔ دی او بتان وغیره کَ دے وجے نه افلین ئے جمع دَ ذوی العقولو ذکر کړے دهٔ۔

ئے دا دلیل نیول دی په احوالو دَ قمر سره اودا دا سے شپه وه چه په هغے کښ دَ کوکب (ستورے دَ ما ښام) نه روستو سپوږمئ ښکاره شوه۔ بَازِغًا بزغ په اصل کښ شق ته وئیلے شی نو سپوږمئ او نمر کله چه راښکاره کیږی نو تیارو لره او چوی په ځیلے رڼا سره نو مراد ترینه شروع کیدل دَ طلوع دَ هغے دی لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِىْ دلیل دَ افول خو مخکښ ذکر شوے دے اوس پدے جمله کښ

رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّىْ

اولیدلو دهٔ نمر ځلیدونکے ، دهٔ اُوئیل ایا دا ځما رب دے ؟

هٰذَآ اَكْبَرُ ج فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ

دا لوئے دے (ستاسو په گمان) نو هر کله چه پټ شو هغه ، دهٔ اُوئیل اے قومه ځما !

اِنِّىْ بَرِىْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ﴿۷۸﴾ اِنِّىْ وَجَّهْتُ

یقیناً زهٔ جدا یم د هغے نه چه تاسو ئے شرک کوئ . یقیناً ما برابر کړے دے

حکم د عبادت د ستورې او سپوږمئ ذکر کوی چه هغه ضلال او گمراهی ده او دا دلیل دے چه ابراهیم علیه السلام د دے نه مخکښ په هدایت باندے وو مشرک او شک کوونکے نه وو او اشاره ده چه انبیاء علیهم السلام هم په هدایت کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی۔

ﷲ بَازِغَةً مؤنث ئے ذکر کړو ځکه چه شمس مؤنث دے۔

سوال : هر کله چه شمس مؤنث وو نو هٰذَا ئے مذکر ولے ذکر کړو؟

جواب ۱ دا مؤنث سماعی دے علامت د تانیث پکښ نیشته نو په دے کښ تانیث او تذکیر دواړه جائز دی۔

جواب ۲ کسائی وئیلے دی چه دا په تاویل د هذا الطالع سره دے۔

جواب ۳ دا په تاویل د هذا الضوء سره دے۔

جواب ۴ په رعایت د خبر سره دے۔

هٰذَآ اَكْبَرُ اکبر غټ دے په اعتبار د رڼا سره او په اعتبار د جسم سره ځکه چه علماؤ د هیئت په عقلی دلیلونو سره ثابت کړے دے چه نمر د زمکے نه یوسل شپیته چنده غټ دے۔ او دا رنگ دا لوئے وو په الوهیت کښ په نیز د مشرکانو باندے۔

يٰقَوْمِ اِنِّىْ بَرِىْٓءٌ الخ دلته هم دلیل افول دے چه مخکښ ذکر شویدے او براءت د شرک او د مشرکانو نه په هغه دلیل باندے بنا او تفریع ده۔

فائده : د ستورې او د سپوږمئ عبادت کول د شپے وو په هغے کښ شرک کول ښکاره نه وو نو هلته ئے اکتفاء او کړه په لَآ اُحِبُّ او په لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِىْ باندے او د نمر عبادت کول د ورځے وو چه په هغے کښ شرک کول ښکاره وو نو د هغے سره ئے براءت د شرک نه ښکاره ذکر کړے دے۔

وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

مخ (رخان) خپل هغه ذات ته چه پیدا کړیدی اسمانونه او زمکه

حَنِيْفًا وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٧٩﴾ وَحَاجَّهٗ

کلک یم په توحید بانندے او نه یم زه د مشرکانو د ډلے نه. او جګړه اوکړه دهٔ سره

قَوْمُهٗ ۭ قَالَ اَتُحَاۗجُّوْٓنِّيْ فِي اللّٰهِ وَقَدْ

قوم د دهٔ. دهٔ اوئیل ایا تاسو جګړه کوئ ما سره په باره د الله تعالیٰ کښ او یقینًا

هَدٰىنِ ۭ وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖٓ

خودنه ئے کړیده ماته (په دلیلونو سره). او نه یریږم زه د هغې نه چه شریکان جوړوئ تاسو د هغه سره

اِلَّآ اَنْ يَّشَاۗءَ رَبِّيْ شَيْــــًٔا ۭ وَسِعَ رَبِّيْ

مګر که اوغواړی رب زما څه شے. راګیر کړیدے رب زما

فائده ۲: نیشاپوری وئیلی دی چه کوکب اشاره ده عالم الاجسام ته او قمر اشاره ده عالم النفوس ته او شمس اشاره ده عالم د عقولو مجردو ته چه دا ټول حق دار د الوهیت نشی کیدلے.

ملک روستو د براءت د شرک نه ذکر د توحید دے لکه لا اله الا الله کښ او په دے کښ اظهار د عقیدے د توحید دے او علت دے د براءت عن الشرک د پاره. اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ قرطبی وئیلی دی چه مراد د دے نه قصدت بعبادتی وتوحیدی دے (قصد م کړے دے په خپل عبادت او توحید سره) او ذکر د وَجْهِ مراد ترینه ټول بدن او روح دے. فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ او دا شامل دے ستورو او نمر او سپوږمئ ته چه هغه ټول مخلوق دی.

حَنِيْفًا حنف په اصل کښ میلان او استقامت دواړو ته وئیلے شی یعنی اعراض کوونکے د هر باطل دین نه او پوخ په دین توحید باندے دا سے شریبی ذکر کړے دی. مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ دا براءت دے د جماعت د مشرکانو نه روستو د براءت د شرک نه.

كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۭ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۸۰﴾

هر خيز په علم خپل كښې ايا تو نصيحت نه قبلوئ تاسو ـ

وَكَيْفَ اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُوْنَ

او څه رنګ او ويريږم زه د هغه څه نه چه تاسو يې شريكوئ د الله سره او نه ويريږئ تاسو (د الله نه)

اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ

او يقيناً تاسو شريكان جوړ كړيدي د الله تعالىٰ سره هغه څوك چه نه يې دے نازل كړے

بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ۭ فَاَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ

په هغې سره په تاسو باندے هيڅ دليل ـ نو كوم يو د دواړو ډلو نه

اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۱﴾

زيات حقدار دے د بچ كيدلو د عذاب نه، كه چرے تاسو پوهيږئ ـ

ﮩ۸ معلومه شوه چه ابراهيم عليه السلام د دے قوم سره د شرک په رد كښې مناظره كړے وه دا سے مناظرے كول جهاد دے. وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ د هغوئ طرف نه صِرف مجادله وه حجت ورسره نه وو محاجه يې ورته په اعتبار د ظاهر سره وئيلے دی د هغوی جګړه په توحيد كښې وه. وَقَدْ هَدٰىنِ مراد د دينه هغه دليلونه دی چه مخكښې په ملكوت السمٰوٰت آه كښې هغې ته اشاره وه.

وَلَآ اَخَافُ آه دا جواب د قول د هغوی دے چه هغوی وئيلے وو چه زمونږ د دے معبودانو نه يره اوكړه هسے نه چه په ليونتوب او مرضونو كښې دے اخته كړی لكه چه په سورة زمر ﺁﻳﺖ۳۶ او سورة هود ﺁﻳﺖ۵۴ كښې دی. اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ دا استثناء منقطع ده يعنی رب زما چه څه مصيبت او غواړی نو هغه قادر دے او دا جمله يې د دے د پاره ذكر كړه چه انسان ته د هغه په ژوند كښې د الله تعالىٰ د طرف نه څه مرض او مصيبت ضرور رسيږی نو مشرک خلق د هغې نسبت خپلو معبودانو ته كوی چه دا مصيبت ورته زمونږ معبودانو رسولے دے نو د وهم د دفع كولو د پاره يې دا استثناء اوئيل لكه په سورة اعراف ﺁﻳﺖ۸۹ كښې. وَسِعَ رَبِّيْ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا په دے كښې اشاره ده هغه حكمتونو ته چه د الله تعالىٰ په كارونو كښې پټې پرتې دی.

ﮩ۸۱ دوی ورته اوئيل چه د دے معبودانو زمونږ نه غلے كينه كنی نو دوی به درله

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ

هغه کسان چه ايمان ئې راوړے دے او نه ئې دے گډ کړے دَ ايمان خپل سره

بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۸۲﴾

هيڅ شرک دغه کسان دوی دپاره امن دے (بچکيدل دی دَ عذاب نه) او دوی هدايت والا دی.

وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى

او دغه دليل دَ توحيد زمونږ دے ورکړے وو مونږ دا ابراهيم (عليه السّلام) ته په مقابله

قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ

دَ قوم دَ هغه کښې. پورته کوو مونږ درجے دَ هغه چا چه او غواړو مونږه

تکره درکړی نو هغه ورته جواب اوکړو او دا په طريقه دَ مخاطبه سره دے يعني تاسو دَ قادر ذات نه يره نه کوئ نو زه ستاسو دَ عاجز معبودانو نه ولے يره اوکړم اَشْرَكْتُمْ سمعانی وئيلی دی چه اشراک ديته وئيلے شی چه غير الله لره جمع کړی دَ الله تعالیٰ سره په هغه څيز کښې چه نه وی جائز مگر صرف الله تعالیٰ لره.
مَا لَمْ يُنَزِّلْ اٰه دا قيد دَ مزيد تقبيح دَ پاره دے يعني په دے باندے حجت نيشته نو څه رنګ به نازل کړی او دا دليل دے چه دَ اثبات دَ داسے مسئلے دَ پاره دليل منزله ضروری دے قياسونه په دے کښې هيڅ حجت نه دے او دا سے قيد په سورة العمران ۱۵۱ او سورة يوسف ۴۰ او سورة نجم ۲۳ سورة اعراف ۳۳ سورة حج ۷۱ او سورة روم ۳۵ کښې هم دے. اَلْفَرِيْقَيْنِ مراد ديته موحدين او مشرکان دی. اَلْاَمْنِ مراد دَ دے نه امن مطلق دے دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه په دنيا او اٰخرت کښې. اَمن دلته بے فکرئ ته نشی وئيلے لکه چه په سورة اعراف ۹۹ کښې دے.
۸۲ دا دَ مخکښې ايت جواب دے يا دَ ابراهيم عليه السلام دَ طرف نه يا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه. ظُلْمٍ نه مراد په دے ايت کښې شرک دے لکه حديث دَ بخاری کښې راغلے دی او په سورة لقمان ۱۳ کښې دی. دَ دے ايت نه معلومه شوه چه دَ بعض خلقو دَ ايمان سره شرک گډ وی مثلاً الله تعالیٰ منی، رسول منی، کتاب منی ليکن ورسره دَ الله تعالیٰ نه سيوا بل څوک لکه نبی، ولی وغيره هم حاجت روا

إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿۸۳﴾ وَوَهَبْنَا لَهُ

یقیناً رب ستا حکمتونو والا دے پوهه دے په هر څه۔ او او بخلو مونږ ده ته

إِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ ۚ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوحًا

اسحاق او یعقوب (علیهما السلام)۔ هر یو ته خودنه کړې وه مونږه (د توحید) او نوح (علیه السلام) ته

هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ

خودنه کړې وه مونږه مخکښ د دینه۔ او د اولاد د نوح (علیه السلام) نه (توحید خودلے وو مونږه) داؤد (علیه السلام) ته

وَسُلَيْمٰنَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسٰى

او سلیمان (علیه السلام) ته او ایوب او یوسف او موسیٰ

وَهٰرُونَ ۚ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿۸۴﴾

او هارون (علیهم السلام) ته۔ او دغسے بدله ورکوو مونږه خائسته عمل کوونکو ته۔

مشکل کشا اختیارمند او غیب دان پښان د الله تعالیٰ گنړی نو د دهٔ ایمان ته اعتبار نیشته بلکه دے مشرک دے لکه په سورۃ یوسف ۱۰۶ کښ دی۔

۸۳ دا آیت دلیل دے په دے خبره باندے چه دا تیر شوے کلام د ابراهیم علیه السلام رد قال هذا ربی نه تر مهتدون پورے) دا په طریقه د حجت سره په قوم باندے پیش کړے وو۔ اٰتَيْنٰهَا په طریقه د وحی سره دے۔

عَلٰى قَوْمِهٖ یعنی د پوهے د ابراهیم علیه السلام د پاره نه دے بلکه استدلال دے په مقابله د قوم کښ۔ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ دا سے په سورۃ یوسف ۷۶ کښ هم دی۔ فرق دا دے چه په سورۃ یوسف کښ علم د تدبیر او سیاست او دفع کول د مضرتِ دنیویه سبب د رفع د درجاتو دے او په دے سورت کښ علم د حجت او استدلال او دفع د مضرتِ اخرویه سبب د رفع گرځولے شوید ے۔

۸۴ دا د اوولس انبیاؤ علیهم السلام ذکر دے په دے وجه چه توحید د دے ټولو عقیده وه او دوی د دے د تبلیغ د پاره غوره کړے شوے وۀ نو دا اجماعی او اتفاقی مسئله ده نو دا دلیل نقلی دے۔ بیا د دے انبیاؤ علیهم السلام جدا جدا صفات وۀ ابراهیم او اسحاق او یعقوب او نوح علیهم السلام د پیغمبرانو پلاران وۀ۔ داؤد علیه السلام او سلیمان علیه السلام باد شاهان وۀ

وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيسٰى وَإِلْيَاسَ ؕ كُلٌّ

او زکریا او یحیٰی او عیسٰی او الیاس (علیهم السلام) ته ۔ دا ټول وو

مِّنَ الصّٰلِحِينَ ﴿٨٥﴾ وَإِسْمٰعِيلَ وَالْيَسَعَ

دَ کاملو نیکانو نه ۔ او اسماعیل او الیسع

وَيُونُسَ وَلُوطًا ؕ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى

او یونس او لوط (علیهم السلام) ته ۔ او دے ټولو ته غوره والے ورکړے وو مونږ ه په

الْعٰلَمِينَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ اٰبَآئِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ

خلقو باندے ۔ او بعض دَ پلارانو دَ دوی نه او دَ اولاد دَ دوی نه

ایوب علیه السلام او یوسف علیه السلام دواړو باندے ډیر تکلیفونه راغلی وو، موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام معجزات ډیر پیش کړے دی، ذکریا علیه السلام او یحیٰی علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام او الیاس علیه السلام دوی ډیر عابدان زاهدان وو۔ اسماعیل علیه السلام او الیسع علیه السلام او یونس علیه السلام او لوط علیه السلام دَ دوی ملګری مؤمنان ډیرکم وو په یونس علیه السلام باندے روستو ډیرو خلقو ایمان راوړو نو دَ دے ایت حاصل دادے چه دے پیغمبرانو په حال دَ مشرئ کښې او په حال دَ بادشاهئ کښې او په حال دَ مصائبو کښې او په حال دَ سختنه کښې او په حال دَ زهد او په حال دَ کموالی دَ مرګرو کښې احسان (کلکوالے) په توحید باندے کړے وو۔ هَدَيْنَا مراد دَ دینه وحی دَ توحید او کلکوالے دے په توحید باندے۔ ذُرِّيَّتِهٖ دا ضمیر راجع دے نوح علیه السلام ته نه ابراهیم علیه السلام ته ځکه چه یونس او لوط علیهم السلام دَ اولاد دَ ابراهیم علیه السلام نه نه وو۔ وَأَيُّوبَ په دهٔ باندے صرف ابتلاء وه يُوسُفَ باندے نعمت او بلاء دواړه جمع شوے وو۔ وَكَذٰلِكَ لکه چه ابراهیم علیه السلام ته رفع دَ درجاتو ملاؤ شوه دارنګ دغه جزا هغه چا ته ورکیږی چه احسان (پوخ والے په توحید باندے) کوی. دَ نَجْزِي نه مراد نبوت نه دے ځکه چه نبوت په کسب سره نه ملاویږی۔

۸۵ داځلور انبیاء دَ کمال زهد او دَ عبادت دَ وجے نه دَ صالحینو نه شمار شول او کمال صلاح کول دَ ما ینبغی او اجتناب کول دَ مالا ینبغی نه (شربینی)۔

۸۶ داځلور انبیاء غیر مشهور وو نو خلقو دَ دوی فضیلت نه پیژندلو نو ځکه

وَإِخْوَانِهِمْ وَاجْتَبَيْنَاهُمْ وَهَدَيْنَاهُمْ

او د رونړو د دوی نه او غوره کړیوو مونږه دوی او رسولي وو مونږ دوی

إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٨٧﴾ ذَٰلِكَ هُدَى

لارے تیغې نه - دا حق لار د

اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ

الله تعالیٰ ده هدایت کوی پدے سره چاته چه او غواړی د بندګانو خپلو نه

وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٨٨﴾

او که چرے شرک کړیوے دوی خامخا برباد شوے به وے د دوی نه هغه عملونه چه دوی کول -

د دوی فضیلت یئے ذکرکړلو د دے نه دلیل نیولے شوید ے په تفضیل د انبیاؤ سره په ملائیکو باندے - فائده ع۱ عیسیٰ علیه السلام په ذریت د نوح یا ابراهیم کښ شمار شو او حال دا چه د هغه پلار نه وؤ نو معلومه شوه چه اولاد د لوڼړو هم په اقاربو کښ داخل دی او تفصیل د اختلاف قرطبي ذکر کړے دے -
فائده ع۲ الیَسَع صاحب د الیاس علیه السلام وؤ او د زکریا علیه السلام نه مخکښ وؤ او هغه ته ابن اخطوب بن العجوز وئیلے شی او نور تفصیلی احوال ئے معلوم نه دی.
۸۷ د دے دا مطلب نه دے چه د دے ټولو پیغمبرانو پلاران او ځامن او رونړه وو بلکه چه د چا وؤ نو په هغوی کښ بعض کسانو لره دا مقام ورکړے شو ځکه چه مَنْ د پاره د تبعیض دے - او دا عطف دے په کلا فضلنا یا په نوحا باندے او پدے کښ د قرابت د انسان درے شعبے ذکر دی او دوی ته عصبات وئیلے شی - وَاجْتَبَيْنَاهُمْ جبی په اصل کښ جمع کولو ته وئیلے شی او مراد ترینه خوښول او غوره کول دی او غوره څیز انسان د ځان سره راجمع کوی. نو اجتباء کښ اشاره ده د هغوی صفاتو ذاتیو لازموته - او هَدَيْنَاهُمْ کښ اشاره ده علومو د نبوت او صفاتو متعدیو ته - او معلومه شوه چه صراط مستقیم د انبیاؤ لار ته وئیلے شی -
۸۸ دے ایت نه معلومه شوه چه په شرک سره د نبی عمل برباد کیدے شی نو د بل چا د عمل څه حیثیت دے - ذَٰلِكَ کښ اشاره ده هغه هدایت ته چه په

أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحُكۡمَ

دا هغه کسان دی چه ورکړی وو مونږ دوی ته کتابونه او پوهه د دین

وَٱلنُّبُوَّةَۚ فَإِن يَكۡفُرۡ بِهَا هَٰٓؤُلَآءِ فَقَدۡ

او پیغمبری - پس انکار کوی د دے مسئلے نه دا کسان نو یقینًا

وَكَّلۡنَا بِهَا قَوۡمٗا لَّيۡسُواْ بِهَا بِكَٰفِرِينَ ﴿٨٩﴾

توفیق ورکړے مونږه د دے هغه قوم ته چه نه دی د دے نه انکار کوونکی -

أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُۖ فَبِهُدَىٰهُمُ

دا هغه کسان دی چه خود نه کړے الله تعالیٰ دوی ته نو د لارے د دوی

ٱقۡتَدِهۡۗ قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًاۖ

تابعداری کوه - ته او وایه نه غوارم ستاسو نه په دے باندے څه بدله -

هدینا او وهدینا هم کښې ذکر دے او اشاره ده چه انبیاء هم په هدایت کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی - وَلَوۡ أَشۡرَكُواْ په دے کښې ذکر کوی قباحت د شان د شرک او معلومه شوه چه مخکښې ذکر شوے هدایت په معنیٰ د پوهوالی دے په توحید باندے او دا رنګ بنیاد د هدایت توحید دے - وَلَوۡ دا شرط دے او وقوع د شرط ضروری نه وی او دا سے په سورة زمر ۶۵ کښې هم ذکر دے -

۸۹ په دے کښې تفصیل د هدی الله دے - د ٱلۡكِتَٰبَ نه مراد جنس کتب دی او دا مستلزم د دے نه دے چه ټولو ته کتابونه ورکړے شوے وی بلکه روستنی ته چه د مخکنی کتاب په میراث کښې ورکړی دیته هم اتیناهم شامل دے - وَٱلۡحُكۡمَ الله تعالیٰ هر نبی ته د کتاب نه علاوه زیاتی وحی هم ورکوی چه هغے ته حکمة او سنت وئیلے شی - فَإِن يَكۡفُرۡ بِهَا الخ اشاره ده چه کوم دین الله تعالیٰ رالیږلے دے نو د هغے په حفاظت کښې څه خاص خلقوته محتاج نه د هَٰٓؤُلَآءِ د دینه مراد موجوده کافران دی او قَوۡمٗا نه مراد مخکنی انبیاء او ملائیک او انصار او مهاجرین او د هرے زمانے مؤحدین دی او دا اقوال قرطبی وغیره ذکر کړے دی.

إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْعَالَمِينَ ﴿٩٠﴾ ع

نه دے دا مگر نصیحت دے د پاره د خلقو۔

ف: دا آیت دلیل دے چه د ټولو پیغمبرانو دین یو دے صرف بعض فروعو کښې فرق وي۔ دا رنګ اجرت نه اخستل په دین باندے د ټولو انبیاؤ طریقه ده. أُولَٰئِكَ اه دا دلیل دے په عصمت د انبیاء علیهم السلام د ضلال نه او اشاره ده چه هدایت په طریقه د انبیاء علیهم السلام کښې حصر دے۔ فَبِهُدَاهُمُ مراد د دے تمام اصول عقائد او اخلاق او طریقه د دعوت د انبیاء علیهم السلام دی او فروعو کښې هغه مراد دی چه د هغوی په دین پورے خاص نه دی. او په دے کښې اشاره ده چه د مخکنو انبیاؤ فضائیل او اخلاق زمونږ په نبي صلی الله علیه وسلم کښې راجمع دی ځکه په هُدَاهُمُ کښې د نوح علیه السلام صبر او په دعوت کښې د ابراهیم علیه السلام طریقه د استدلال او د حجت او د اسحاق او د یعقوب علیهما السلام صبر په مصائبو او د داؤد و سلیمان علیهما السلام شکر د نعمتونو او د ایوب علیه السلام صبر په مرضونو او د یوسف علیه السلام صبر په حسد د بد خواهانو او د موسیٰ او د هارون علیهم السلام کثرت معجزات او د لوے طاغي سره مقابله کول او د زکریا و یحیی، عیسیٰ او الیاس علیهم السلام زهد في الدنیا او د اسماعیل علیه السلام صدق او د یونس علیه السلام تضرع په سختئ کښې دے ټولو امورو ته په هُدَاهُم کښې اشاره ده او دا ټول فضائیل الله تعالیٰ په آخري نبي کښې راجمع کړے دی نو دلیل شو چه آخري نبي د ټولو انبیاؤ نه افضل دے. اِقْتَدِهْ، اقتداء موافقت د روستني شخص ده د مخکني سره په قول او عمل کښې سره د دلیل مستقله نه او اتباع موافقت دے په عمل کښې فقط د وجے د دلیل د مخکني نه او تقلید خو بے دلیله په چا پسے تلل دی۔

سوال: امر په اقتداء سره دلالت کوي چه زمونږ نبي افضل نه دے؟

جواب: د اقتداء چه کومه معنی ذکر شوه هغه صرف په روستو والي دلالت کوي هغه په افضلیت د سابق باندے دلالت نه کوي لکه اقتداء د نبي صلی الله علیه وسلم په ابوبکر رضی الله عنه پسے په مونځ کولو کښې یا اقتداء د صحابه کرامو په تابعینو پسے په مونځونو کښې۔ فائده: دا دلیل دے چه شرع د

وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا

او قدر نه دے کړے دوی د الله تعالی لائق قدر د هغه کله چه اوئیل دوی

مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَیْءٍ ؕ

نه دے نازل کړے الله تعالی په هیڅ بنده باندے هیڅ څیز۔

قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِیْ جَآءَ

ته ووایه چا نازل کړے دے کتاب هغه (کتاب) چه راوړے دے

بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا وَّهُدًى لِّلنَّاسِ

هغے لره موسی (علیه السلام) رڼا او هدایت د پاره د خلقو (بنی اسرائیلو)

تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِیْسَ تُبْدُوْنَهَا

او کړځوئ تاسو هغه ټکړے ټکړے ښکاره کوئ تاسو بعض د هغے نه

مخکنو انبیاؤ زمونږ د پاره شرع ده کله چه نسخ د هغے یا تخصیص ثابت نه وی د دے وجے نه په حدیث د بخاری سره ثابت ده چه ابن عباس رضی الله عنهما د اثبات د سجدے د سورة ص د پاره په دے ایت سره دلیل نیولے دے۔

قُلْ لَّآ اَسْئَلُكُمْ هر کله چه په هٰذَا اهم کښ لوئے مقصد طریقه د دعوت ده نو په دے دوه جملو کښ دوه ارکان د دعوت ذکر کوی اول اخلاص او دویم امانت لکه د انبیاؤ په صفت کښ ناصح امین ذکر دے۔

قُلْ لَّآ اَسْئَلُكُمْ چه په انبیاء علیهم السلام باندے تبلیغ فرض عین دے نو د دے وجے نه په هغوی باندے اجرت اخستل په هغے باندے حرام دی او چه فرض عین نه وی نو په هغے باندے په اجرت اخستلو کښ اختلاف دے او دا کلمه د ټولو انبیاؤ په هدایت کښ ذکر ده سورة شعراء ۱۰۹ ۱۲۷ ۱۴۵ ۱۶۴ ۱۸۰۔

ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِیْنَ مراد د دے نه انس او جن دی ترقیامته پورے نو معلومه شوه چه قران او رسالت زمونږ د نبی صلی الله علیه وسلم ترقیامته پورے دے۔

وَتُخْفُونَ كَثِيرًا ۚ وَعُلِّمْتُم مَّا لَمْ تَعْلَمُوٓا۟

او پټوئ ډیرے او خودلے شویدے تاسوته هغه شے چه نه پیژندلو

أَنتُمْ وَلَآ ءَابَآؤُكُمْ ۖ قُلِ ٱللَّهُ ۖ ثُمَّ

تاسو او نه پلارانو ستاسو - ته ووایه الله تعالیٰ ! بیا

ذَرْهُمْ فِى خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ ﴿٩١﴾

پریږده دوی په مشغولا ډ دوی کښ چه لوبے کوی -

۹۱ ډ دے ایت نه تر ۱۰۱ پورے پنځم باب دے په دے کښ درے زجرونه دی ۹۱ ۹۳ نه کښ او ترغیب دے قرآن ته ۹۲ کښ، او تخویف اخروی دے ۹۴ کښ، او پنځه عقلي دليلونه دی او تفریع ډ بیان ډ توحید ده په څوارلس جملو سره: وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ، ربط دا دے چه دوی (منکرینو) وئیل چه ته ډ انبیاؤ اقتداء کوے نو ډ مشرانو (مشرکانو) او کتابیانو اقتداء ولے نه کوے؟ حاصل جواب دا دے چه دوی ډ الله تعالیٰ قدر نه کوی نو دوی لائق ډ اقتداء نه دی او دا ایت زورنه ده په انکار ډ کتاب ډ الله تعالیٰ او دا ډ الله تعالیٰ بے قدری او بے عزتی ده او انکار دے ډ رحمت ډ الله تعالیٰ نه چه هغه انزال ډ کتاب او ډ بعثت ډ رسول دے او دا ئے په سورة حج ۷۴ کښ هم دی هلته ډ بے قدرئ نه مراد شریک کول ډ کمزورے مخلوق دی ډ الله تعالیٰ سره چه قدیر دے په هر څیز باندے او په سورة زمر ۶۷ کښ هلته مراد انکار دے ډ عظیم قدرت ډ الله تعالیٰ نه.

مَا قَدَرُوا په معنی ډ معرفت او په تعظیم او صفت کولو دے حَقَّ قَدْرِهِ اضافت ډ حق مصدر ډ فعل سابقه ته ډ پاره ډ معنی ډ کمال دے. اِذْ قَالُوا دا تفصیل ډ بے قدرئ دے دا ئے په سورة یٰسٓ ۱۵ کښ هم دے. مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الخ دا دوی سلب کلی کړے وه نو ډ هغې جواب په ایجاب جزئي سره کافی دے او دا الزامی جواب دے او نقض دے ډ قول ډ دوی. نُوْرًا دلیلونه دی، هُدًى حکمتونه دی تُبْدُوْنَهَا کوم چه ډ دوی ډ طبیعت برابروی نو هغه به ئے ښکاره کول او کوم چه ډ دوی ډ خواهش نه خلاف وؤ نو هغه به ئے پټول. او دے ایت نه معلومه شوه چه کتاب ډ الله تعالیٰ بے ضرورته ټکړے ټکړے کول منع دی دا ئے قرطبی لیکلے دی وَعُلِّمْتُمْ اشاره ده چه په کتاب ډ الله تعالیٰ سره هغه

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ

او دا کتاب نازل کړے مونږه برکت والا ، تصدیق کوونکے دے

الَّذِیْ بَیْنَ یَدَیْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰی

د هغه کتابونو چه مخکښ د ده نه دی . او د دپاره چه او یروے ته اهل د کلو (مکے معظمے) والا

وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ وَالَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ

او هغه خوک چه چاپیره د دینه دی . او هغه کسان چه ایمان لری

بِالْاٰخِرَةِ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ عَلٰی صَلَاتِهِمْ

په آخرت باندے ایمان لری په دے کتاب باندے او دوی په خپلو مونځونو باندے

یُحَافِظُوْنَ ﴿۹۲﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰی

ساتنه کوی . او څوک ډیر لوئے ظالم دے د هغه چانه چه جوړوی

علمونه حاصلیږی چه مخلوق د هغے علم نه لری او دا عطف دے په تُبْدُوْنَهَا باندے اللّٰه، دا مفرد مراد نه دے بلکه فعل پټ ورسره دے یعنی انزل اللّٰه ابن کثیر دلته رد کړیدے په ذکر مفرد والو باندے. ثُمَّ ذَرْهُمْ دا عطف دے په قل باندے زجر دے منکرینو ته روستو د الزام نه په هغوی باندے. یَلْعَبُوْنَ دا جواب امر نه دے بلکه حال دے یا استیناف دے مراد د دینه استهزاء او مسخرے کول دی. سوال: د دے ایت په تفسیر کښ مفسرینو واقعه د مالک بن صیف ذکر کړیده او هغه د یهودیانو امام او عالم وو او حال دا دے چه سورة مکیه دے؟ جواب: بعضو وئیلی دی چه دا ایت پکښ مدنی دے یا مالک بن صیف مکے ته تلے وو نو هلته دا واقعه پیش راغلے وه او دا سمعانی ذکر کړیده او دا پنا ده په قراءت د خطاب سره په تجعلونه کښ یا جواب دا دے چه ما قدروا اللّٰه کښ مشرکین مکه مراد دی او هر کله چه هغوی تقلید کوو د علماؤ د یهودو نو دوی ته او ئیلے شو قل فاسئلوا اهل الکتاب او دا بنا دے په قراءت د غائب باندے.

۹۲ دا ترغیب دے. قرآن ته په بیان د پنځه صفاتو سره روستو د ذکر د تورات ته یعنی چه هغه کتاب منزله تاسو منئ نو دا قرآن هم منزل او منئ.

مُبٰرَكٌ نیشاپوری وئیلی دی چه خیرئے ډیر دے او نفع ئے ډیره ده او سبب د

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا أَوْ قَالَ أُوْحِيَ إِلَيَّ وَلَمْ

په الله تعالیٰ باندے دروغ ، یا وائي وحی کړے شویده ماته او نه وی کړے شوے

يُوْحَ إِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ قَالَ سَأُنْزِلُ مِثْلَ

وحی هغه ته هیڅ. او هغه څوک چه وائي چه زه را اولیږم پشان

مَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ ؕ وَلَوْ تَرٰٓى إِذِ الظّٰلِمُوْنَ

د هغې چه رالیږلے دے الله تعالیٰ. او که او وینے ته هغه وخت چه ظالمان به

فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا

په سختو د مرګ کښې وی او ملائک به اوږدوونکے وی

أَيْدِيْهِمْ ۚ أَخْرِجُوْٓا أَنْفُسَكُمُ ۖ الْيَوْمَ

لاسونه خپل (وائي به) را وباسئ ساه ګانے خپلے ، نن ورځ

د بنه کارونو او منع کوونکے دے د منکراتو نه او طریقه د الله تعالیٰ جاری ده چه څوک د قرآن د علم تفتیش کوی او په هغې باندے تمسک کوی عزت به حاصل کړی په دنیا کښې او سعادت به حاصل کړی په آخرت کښې او دا تجربه شویده او صحیح ثابت شویده.

مُصَدِّقُ اه ځکه چه مشتمل دے په توحید او پاکی د الله تعالیٰ د شرک نه او بشارت او انذار باندے او دغه مضمون دے د مخکنو کُتبِ الٰهیو.

وَلِتُنْذِرَ دا عطف دے په معنیٰ د مبارک باندے.

أُمَّ الْقُرٰى شربینی وئیلی دی چه دا قبله د ټولو کلو ده او مجمع د هغوی ده او اعظم شان والا ده یا دا چه ټوله زمکه د دے نه غوړیدلے ده یا اول بیت دے د خلقو د عبادت د پاره.

وَالَّذِيْنَ اه د دے وجه دا ده چه څوک ایمان په آخرت باندے لری نو د عاقبت فکر کوی د هغې وجے نه ایمان په نبی او په قرآن لری.

وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ دلته خاص ذکر کړو ځکه چه دا علامت د ایمان دے.

تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ

بدله دركيدېشي تاسوته په عذاب د ذلت سره په سبب د هغې چه تاسو

تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ

جوړولے په الله تعالىٰ باندے ناحق (د شرک بدعت) خبرے او وئ تاسو

عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۹۳﴾ وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا

چه د اياتونو د هغه نه مو لوئی کوله ـ او يقيناً راغلئ تاسو موږ ته

فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

يواځے لکه چه پيدا کړيوئ موږ تاسو اول ځل

سلـ۹۳ روستو د صداقت د قرآن نه زورنه په درے قسمه ظلمونو سره ده چه هغه د مخالفت د قرآن سره تعلق لری اول افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا په تحريف كولو سره لفظاً او معناً او په نسبت كولو د شرک الله تعالىٰ ته. دويم سره د افتراء نه دعوٰى د نبوتِ كاذبه كوى. دريم دعوٰى كوونكے د مقابلے د قرآن او دا مستلزم دے دعوے د قدرت د الوهيت سره او دا سے سورة انفال سلـ۳۱ كښې دى.

اَلظّٰلِمُوْنَ دا شامل دے دغه درے قسمه ظالمانو ته او قرطبي وئيلے دى چه داخل دى په دے كښې هغه څوک (صوفياء) چه اعراض كوى د قرآن او سنت او د طريقے د سلف صالحين نه او دعوٰى كوى د علم د احكامو په صفايئ د زړه خپل سره او دليل نيسى په علم د خضر عليه السلام سره نو دا زندقه او كفر دے. غَمَرَاتِ الْمَوْتِ حال د زنكدن دے مخكښې د جال د برزخ او قيامت نه بَاسِطُوْا اَيْدِيْهِمْ لاسونه به يئے اوږد كړے وى د هغې د ارواحو قبض كولو د پاره او اَخْرِجُوْا په طريقه د زورنے سره دے چه شا بئ خپل ارواح را او باسئ او را و يستلے به يئے نه شى. بله معنٰى دا ده چه اوږد كړے به وى لاسونه د پاره د وهلو د هغوى، اَخْرِجُوْا چه بچ كړئ ځانونه خپل د عذاب نه. اَلْيَوْمَ د دينه مراد عذاب برزخى دے يا عذاب د محشر دے. غَيْرَ الْحَقِّ اول دواړو قسمونو ته راجع دے. وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ دا دريم قسم ته راجع دے. اَلْهُوْنِ هر كله چه دغه درے واړه دعوے د تكبر د وجے نه دى نو سزا يئے په سخت اهانت سره ده.

وَتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ج

او پریخودو تاسو هغه (نعمتونه) چه درکړی وو مونږ تاسو ته روستو د شاګانو ستاسو نه

وَمَا نَرٰی مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ

او نه وینو مونږ تاسو سره سفارشیان ستاسو هغه چه

زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا ط لَقَدْ

تاسو خیال کوو چه دوی ستاسو په مال اولاد کښ برخه والا دی۔ یقینًا

تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ

پریکړے شو تعلق ستاسو او ورک شو ستاسو نه هغه چه تاسو

تَزْعُمُوْنَ ﴿۹۴﴾ اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ

ګمان کوو۔ یقینًا الله تعالیٰ څیرونکے دے د دانو

ع ۱۱ / ۱۷

۹۴ په دے کښ ذکر دے زوال د اسبابو د استکبار چه هغه دریے دی اول د لے تابعداران مریدان وغیره۔ دویم مالونه جائیداد صفتونه وغیره۔ دریم پیران متبوعین مددګاران۔ وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا داعطف دے په اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ باندے یا کلام مستقل د الله تعالیٰ دے او دا په وخت د برزخ کښ ویلے شی یا دا یږا حروی ده په بیان د پنځه حالاتو۔ فُرَادٰی بغیر د مال او اولاد او نوکرانو تابعدارانو مریدانو شاګردانو وغیره نه۔ مَا خَوَّلْنٰكُمْ خول هغه نعمتونه چه الله تعالیٰ انسان ته ورکړے دی په دنیا کښ مریان او مالونه جائیداد، بادشاهی، سلطنت او کار خانے وغیره وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ یعنی پشان د هغه څیز چه شا ته پاتے شی نو د هغے نه انتفاع نشی اخستلے کیدلے بلکه چه شا ته ګوری نو ستړے کور شی۔ شُفَعَآءَكُمْ اٰه هغه معبودان بزرګان پیران وغیره چه دوی د هغوی نه حاجتونه غوختل په دے عقیدہ چه چه دوی د الله تعالیٰ سره برخه لری په صفتونو او عبادتونو کښ۔ فِيْكُمْ یعنی ستاسو په مالونو او اولاد کښ د هغوی نذر و نیاز وو۔ او دے ایت کښ رد دے په شفاعت شرکیه باندے د نیکانو په باره کښ۔ بَيْنَكُمْ مراد د دے نه تعلق د محبت د بزرګانو دے په محبت شرکیه سره یعنی تعلق د پیری مریدی به ختم شی او دا خلاف دے د زعم د مشرکانو نه۔ بَيْنَكُمْ بین د اضدادو نه دے فصل او وصل دواړو ته

وَالنَّوٰى ۭ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ

او دَ اډوکو. راوباسي ژوندے دَ مړ نه

وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ۭ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ

او راویستونکے دے مړ دَ ژوندي نه - دا (صفتونو والا) الله دَے ستاسو

فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿٩٥﴾ فَالِقُ الْاِصْبَاحِ ۚ

نو چرته ګرځولے شئ تاسو. (او پس دَ پیدا کیدو) خیرے کوونکے دَ صبا دے.

وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

او جوړه کړیده شپه دَ آرام دَپاره او نمر او سپوږمۍ

وئیلے شي او دا په نصب (زور) سره دَ یعني مراد کُمْا بینکم من الوصل لکه په سورة بقره ۱۹۶ کښې او په رفع (پیخ) سره فاعل دَ تقطع دے. وَضَلَّ دا ترقي ده کَماقبل نه یعني که بالفرض تقطع اونشي نو هم مقصد دَ دوی برباد دے. ضَلَّ په معنی دَ روکیدلو او برباد کیدلو دے اوما کنتم تزعمون نه مراد عقیده دَ شرک او دَ شفاعت ده یا په معنی دَ غائب کیدلو دے او ما کنتم تَزْعُمُوْنَ نه مراد شرکاء دي.

۹۵ دا دلیل عقلي دے په توحید او په اثبات دَ بعث باندے. حَبّ دانے دَ غلے او نوٰی دَ میوو دَ پاره وی حَب جمع دَ حبة ده او نوٰی جمع دَ نواة ده هرے دانے او اډوکو ته شامل دے او فَالِقُ نه مراد دا چه هغه په زمکه کښې سیرے کړي (اوچوي) نو تیغ ترینه راوباسي یا روستو دَ پیدائیش دَ دانے او اډوکی نه دَ هغې په مینځ کښې چود جوړوونکے دے. يُخْرِجُ دا تفسیر دَ ماقبل دے دَ دَوجے نه عطف ئې نه دے کړے ځکه چه مراد دَ حي او میت نه تازه او شنه بوټي دَ اُوچو دانو نه پیدا کول دي او په عکس سره. عالم دَ جاهل نه او په عکس سره. مؤحد دَ مشرک نه او په عکس سره. اوژوندے انسان او حیوان دَ نطفے نه یا دَ اګئ نه او په عکس سره دا ټول په دے کښې داخل دي. وَمُخْرِجُ اه دا عطف دے فالق باندے ځکه چه یخرج الحي اه تفسیر وو دَ فالق او مخرج المیت تفسیر دَ فالق نه دے دَ دے وجے نه په اسم فاعل سره ذکر کړو او دا هم جائز دے چه عطف شي په یخرج باندے ځکه چه دا اسم مشابه دے دَ فعل سره

حُسْبَانًا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۹۶﴾

دَپارہ دَ حساب ۔ دا اندازہ دَ زور اور ذات دہ چہ پوھہ دے ۔

وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ النُّجُوْمَ

او خاص اللہ تعالیٰ ھغہ ذات دے چہ پیدا کړیدی تاسو لرہ ستوری

لِتَهْتَدُوْا بِهَا فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ؕ

چہ لار معلوموئ پہ ھغے سرہ پہ تیارو دَ وچہ او دَ دریاب کښې ۔

قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۹۷﴾

یقینًا پہ تفصیل سرہ بیان کړیدی مونږہ دلیلونہ ھغہ قوم لرہ چہ پوھیږی ۔

وَهُوَ الَّذِيْ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ

او خاص اللہ تعالیٰ ھغہ ذات دے چہ پیدا کړی یئ تاسو دَ نفس

وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ ؕ قَدْ فَصَّلْنَا

یو نہ نو تاسو لہ ځائ دَ ارام دے او ځائ دَ سپارنے دے ۔ یقینًا تفصیلاً بیان کړیدی مونږہ

بیا ھرکلہ چہ حی اشرف دے دَ میت نہ نو ھغہ یئ پہ لفظ دَ فعل سرہ ذکر کړو چہ دلالت کوی پہ اعتناء دَ فاعل دَ فعل بانددے ۔ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ دا نتیجہ دَ دلیل دہ یعنی دا تصرف کوونکے طبیعت او دھر (زمانہ) او مادہ او ولی او بزرگ نہ دے بلکہ اللہ تعالیٰ دے ۔

۹۶ دغکښې دلیل او احوال دَ زمکے وۀ او س دلیل پہ احوال سماویہ سرہ ذکر کوی ۔ فَالِقُ الْاِصْبَاحِ څیرونکے دَ شپے دے پہ صبا ښکارہ کولو سرہ ۔ یعنی "فَالِقُ ظلمة اللیل بالاصباح" او اصباح مصدر دے یا اصباح پہ معنی دَ صباح دے او خالق پہ معنی دَ مظھر دے (ریښا پورې) ۔ وَجَعَلَ او ھرکلہ چہ دغکښې اسم فاعل کښې معنی فعلی مراد وہ نو صحیح دے پہ ھغہ باندے عطف دَ فعل ۔ سَكَنًا وقت السکون ۔ حُسْبَانًا یعنی گرځی دوی پہ حساب سقري سرہ یا دَ پارہ دَ حساب دَ ورځو او میاشتو او کلونو ۔ یا پہ معنی دَ ویشتونکو دے ۔ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ او اشارہ دہ چہ دا تقدیر ھیڅوک نشی بدلولے ۔

۹۷ دا بل عقلی دلیل دے او دَ شمس وقمر نہ یئ جدا ذکر کړو ځکہ دَ ھغے او دَ دے پہ فائدو کښې ډیر فرق دے او لِتَهْتَدُوْا دا یئ یوہ فائدہ ذکر کړیدہ او نور ے

الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ ﴿۹۸﴾ وَهُوَ الَّذِيْٓ

دلیلونه هغه قوم لره چه خه پوهیږي. او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے

اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ

چه راوروله یې دي ذ بره طرف نه اوبه ، نو راویستلے دي مونږ په هغے سره

نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا

بوټي ذ هر قسم ، پس راویستلے دي مونږ ذ دینه شینکے

نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ وَمِنَ النَّخْلِ

راوباسو ذ هغے نه دانے لاندے باندے او ذ کجوروئه

مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّجَنّٰتٍ

ذ کسورو ذ هغے نه غنچکونه نیزدے او باغونه

مِّنْ اَعْنَابٍ وَّالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ

ذ انګورو او خونه او انار

دوه فائدے هم شته لکه په سورة ملك کښ زینت ذ اسمان او رجم ذ شیطانانو.

فَصَّلْنَا په دے کښ معنی ذ تفصیل او ذ وضاحت او ذ جدا جدا بیان کولو دے.
يَعْلَمُوْنَ یعنی چه علم لری ذ طریقے ذ استدلال نیولو او دا ذ مستقل علم سره تعلق لری ځکه يَعْلَمُوْنَ یې اوفرمائیل.

۹۸ دا بل دلیل عقلي انفسی دے فلکم مُسْتَقَرٌّ صلب ذ پلار یا ذ ورځے ګرځیدل یا دنیوی ژوند، مُسْتَوْدَعٌ ذ مور رحم یا ذ شپے ذ ارام ځائے یا محل ذ دے په برزخ کښ او دا الفاظ دے ټولو معانو ته شامل دی- او دا ډونګے علم غواړی ځکه يَفْقَهُوْنَ یې اوفرمائیل ځکه چه انشاء ذ ټولو انسانانو ذ یو پلار نه ده چه آدم دے او احوال ذ استقرار او استیداع معلومول علم دقیق غواړی چه هغې ته فقه وئیلے شی.

مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۭ اُنْظُرُوْٓا اِلٰى

چه یوشان دي (په پانړو کښې) او نه دي یو شان په میوه کښې - اوګورئ

ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ

میوې د هغې ته کله چه میوه اونیسي او پخیدو د هغې ته - یقینًا په دې کښې

لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۹۹﴾ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ

ډیر دلیلونه دي هغه قوم لره چه ایمان لري - او ګرځولي دوی الله تعالیٰ لره

۹۹ دا یل دلیل عقلی دے دیته دلیل وسطی وئیلے شي په دے کښې پنځه څیزونه د تربیت د انسان د پاره ذکر دي حبّ (دانے) د پاره د غذا دي نخل د پاره د غذا او تفکه دواړه دي اعناب د پاره ده تفکه او د مشروباتو حلالو، زیتون د پاره د تیلو، انار د پاره د دوایئ، دا د تربیت اُصول دي. مِنَ السماء مراد د سماء نه وریځ ده او من ابتدائیه دے یا سماء پخپله معنی دے او من په معنی د جانب دے. به باء سببیه ده او دا عالم اسباب دے او یو سبب دے او مسببات بوټي متفرق دي او دا دلیل د قدرت او د توحید د الله تعالیٰ دے. كُلِّ شَيْءٍ هر قسم د اقسامو د راټوکیدونکو نه. مِنْهُ ضمیر راجع دے نبات ته یا ماء ته یا کل شي ته. خَضِرًا ټول شنه بوټي مراد دي. مُتَرَاكِبًا او د دے نه وګی د غنمو وریشو جوارو وغیره مراد دي. وَمِنَ النَّخْلِ خبر مقدم دے او مِنْ طَلْعِهَا بدل دے د هغې نه. قِنْوَانٌ مبتداء مؤخر ده. طَلْعِ اول هغه څیز د میوے د کهجورے نه راښکاره شي هغې ته کفرۍ هم وئیلے شي. قِنْوَان جمع د قِنْوَ ده په شکل د تثنیه سره. دَانِيَةٌ یو بل ته نزدے دي یا راغستونکو ته نزدے دي او بعض لرے دي د هغې ذکر ئے مقاسةً پریخودلو یعني دانیة او غیر دانیة. وَجَنّٰتٍ دا عطف دے په نبات باندے، په اعناب کښې ډیر قسمونه دي د دے وجے نه جمع ئے ذکر کړو. مُشْتَبِهًا اه زیتون او رمان په پانړو کښې یوشان دي چه په نظر کوونکي باندے اشتباه راولي او په میوه کښې مشابه نه دي داسے د دے سورت په ۱۴۱ کښې هم تیر شوے وو او هلته ئے تشابه ذکر کړیده اشاره ده اشتراک ته په رنګ او او بو کښې. اُنْظُرُوْٓا مراد د دے نه نظر د عبرت او د استدلال دے. ثَمَرِهٖ ثمر جمع ده د ثمرة ه ضمیر راجع دے هر یو ته ثمر نه مراد د هغې ابتدائي احوال دي. وَيَنْعِهٖ دا مصدر دے یا جمع د یانع ده.

شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوْا لَهٗ

شریکان پیریان او پیدا کړی الله تعالیٰ دوی، او جوړوی (په دروغه) الله لره

بَنِيْنَ وَبَنٰتٍۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ سُبْحٰنَهٗ

ځامن او لونړه بغیر د پوهې نه - پاک دے الله تعالیٰ

وَتَعٰلٰى عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿١٠٠﴾ بَدِيْعُ

او اوچت دے د هغې نه چه دوی یې بیانوی - تا اشنا پیدا کوونکے

ع ۱۲ / ۱۸

لَاٰيٰتٍ دلیلونه د توحید او د بعث بعد الموت دی۔ يُّؤْمِنُوْنَ مراد د دے نه اثابت کوونکی دی یا ایمان لرونکی په خالقیت د الله تعالیٰ باندے۔

تڼ دا زورنه ده هغه چا ته چه پیران او اولیاء او ملائیک د الله تعالیٰ سره شریک جوړوی۔ دا عطفه ، دے په پټ فعل باندے یعنی "اقروا الله بما تقدم ذکره و جعلوا اٰله" را اقرار کوی په ځکښې کارونو د الله تعالیٰ د پاره لیکن شرک ورسره کوی۔ او په دے کښې رد دے په مشرکین بالجن او بالانس او بالملائیکه باندے۔

شُرَكَآءَ مفعول ثانی الجن مفعول اول دے ځکښې والے د مفعول ثانی د وجے د تقبیح نه دے یا شرکاء مفعول دے مبدل منه او الجن نه بدل دے او دا شرک د پیریانو په ډیرو طریقو سره دے قول د زنادقو دا دے چه شیطان خالق د شر دے او د الله تعالیٰ رور دے۔ او قول د حائطیه معتزله دا دے چه الله تعالیٰ اول ابلیس پیدا کړو نو بیا یې هغه ته تدبیر د عالم او سپارلو او قول د جن په سورة جن کښې دلیل دے په شرک بالجن باندے۔

وَخَرَقُوْا په معنیٰ د دروغو وتیلو دے او دا تعبیر د دے د پاره ذکر دے چه پیدائیش د ځامنو او لونړو سیرے کیدل او تجزّی غواړی۔

وَخَلَقَهُمْ ضمیر راجع دے جن ته یا مشرکانو ته۔ سُبْحٰنَهٗ راجع دے اشراک ته او تَعٰلٰی راجع دے بنین او بنات ته۔

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ اَنّٰى يَكُوْنُ لَهٗ وَلَدٌ

د اسمانونو او د زمکے دے ۔ څرنګ کيدے شي هغه لره اولاد

وَّلَمْ تَكُنْ لَّهٗ صَاحِبَةٌ ؕ وَخَلَقَ كُلَّ

او نيشته هغه لره ښځه او پيدا کړيدے هر

شَيْءٍ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۱۰۱﴾

څيز ، او هغه په هر څيز باندے پوهه دے

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ

دا صفتونو والا الله دے ، رب دے ستاسو ۔ نيشته د عبادت لائق سيوا د هغه نه

خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوْهُ ۚ وَهُوَ

پيدا کوونکے د هر څيز دے نو بندګي خاص کړئ هغه لره او هغه

سلف دا علت دے د سبحانه د پاره په بيان د کلماتو د توحيد سره په دے کښې پنځه کلمات د توحيد دي ۔ بَدِيْعُ اشاره ده چه په پيدائش د اسمانونو او زمکو کښې الله تعالیٰ مخکښې مثال ته محتاج نه دے نو شريک او ولد ته حاجت نه لري او په دے ايت کښې پنځه واړه جملے د پاره د رد د عقيدے د ولديت دي ۔ وَلَمْ تَكُنْ لَّهٗ صَاحِبَةٌ په دے کښې اشاره ده چه کومو خلقو الله تعالیٰ ته د ولد نسبت کړيدے هغوی الله تعالیٰ د پاره د زوجيت عقيده نه لرله ۔

كُلَّ شَيْءٍ او ولد د خالق خو مخلوق نشي کيدے بلکه د واړو کښې مجانست (هم جنسي) شرط دے او مراد د کل شيء نه هغه دي چه د شان د هغے نه مخلوقيت وي نو ذات او صفات او کلام د الله تعالیٰ په دے کښې داخل نه دے ۔

وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ يعني علم بکل شيء صفتِ خاصه د الله تعالیٰ دے او که ولد ئے وے نو لازم ده چه هغه به ور سره په دے صفت کښې شريک وے د وجے د مجانست (هم جنستوب) نه ۔

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿۱۰۲﴾ لَا تُدْرِكُهُ

په هر څيز باندے ذمه وار دے. نشي راګيرولے هغه لره

الْاَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ وَهُوَ

نظرونه او هغه راګيروي نظرونو لره او هغه

اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ﴿۱۰۳﴾ قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ

باريک څيزونو لره ليدونکے خبردار دے. يقيناً راغلي دي تاسو ته دليلونه ډيرے

۱۰۲ په دے ايت کښې هم پنځه کلمات دَ توحيد دي اودا نتيجه ده دَ مخکښې دليلونو اوکلماتو دَ توحيد او په دے ايت کښې اثبات دَ توحيد دَ ربوبيت او الوهيت اودَ خالقيت اودَ تصرف دے. خَالِقُ اه مخکښې ايت کښې مقصد علت ذکر کول وُو او هغه په صفتِ فعليه (خلق) سره مناسب دے او په دے ايت کښې مقصد تفريع اونتيجه ذکرکول دي او هغه په طريقه دَ اسميت سره مناسب ده (چه خالق) دے. فَاعْبُدُوْهُ هر کله چه ما قبل سبب دے دَ پاره دَ ما بعد دَ دے وجے نه فا سره يے ذکرکړو. وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ متولّي دَ حفظ اودَ تد بير دے نو توکل کول په هغه باندے ضروري دي او هر کله چه عبادت کښې انسان مدد او توکل دَ الله تعالٰى ته محتاج وي لکه اياك نستعين روستو دَ اياك نعبد نه نو دلته يے جمله دَ توکل دَ عبادت نه روستو ذکرکړله.

۱۰۳ دے ايت کښې هم څلور صفات دَ الله تعالٰى دي دَ پاره دَ توحيد- ادراک، دَ رويت نه غير دے يعني ادراک خاص دے او رويت عام دے او په نفي دَ خاص سره نفي دَ عام نه راځي نو دے ايت نه دا نه ده معلومه چه ليدل دَ الله تعالٰى امکان نه لري لکه چه دا دَ معتزلو مسلک دے. اوتفصيل دَ دے دا دے چه رويت (ديدن) دَ الله تعالٰى يو په دنيا کښې دے دويم په اخرت کښې دے په دنيا کښې دَ دے په باره کښې اختلاف دے په مينځ دَ اهل حق کښې چه ممکن دے اوکه نه دے ؟ دَ اکثر اهلِ علمو په نيز باندے ممکن دے په دليل دَ قصے دَ موسٰى عليه السلام چه طلب يے دَ رويت دَ الله تعالٰى کړے وُو او هغه په تفسير دَ سورة اعراف ۱۴۳ کښې ذکر دے او څوک چه ممکن وائي نو بيا اختلاف دے چه ايا واقع دے دَ پاره دَ نبي صلى الله عليه وسلم په شپه دَ معراج کښې اوکه واقع

نه دے نو دَ عائشه او ابن مسعود او ابو هریرة رضي الله عنهم مسلک دا دے
چه دغه رویت واقع نه دے او کوم چه په سورۃ نجم کښې ذکر دے هغه رویت
دَ نبي صلی الله علیه وسلم دے جبرائیل لره او دلیل دَ هغوی په دے ایت سره
دَ عائشه رضي الله عنها نه روایت کړے شوے دے او دَ ابن عباس او انس او
عکرمه، ربیع الحسن بصری رضي الله عنهم وغیره نه نقل دے چه نبي صلی الله
علیه وسلم په شپه دَ معراج الله تعالیٰ لره په خپلو سترګو باندے لیدلے دے
او دَ دے ایت جواب روستو ذکر کیږی. او هرچه مسئله دَ رویت دَ الله تعالیٰ
ده په اٰخرت کښې مؤمنانو دَ پاره نو دَ هغے څه ذکر مونږ په تفسیر دَ سورة قیامه
او سورة مطففین کښې کړے دے چه په قراٰن او حدیث او تواتر او اجماع سره
ثابت دے او معتزله مرجئه، جهمیه او نورے باطلے ډلے وائي چه دغه رویت
هم ممکن او واقع نه دے. هغوی دَ دے ایت نه دلیل نیولے او طریقه دَ استدلال
ئے ابوبکر جصاص او زمخشری په کشاف کښې ذکر کړے ده ځکه دا دواړه معتزله
دی په عقیده کښې. دَ هغے دَ اهلِ سنت دَ طرف نه جوابات دادی:

جواب اول: چه ادراک په معنیٰ دَ علم دَ حقیقت دَ څیز سره وی نو حقیقت
تفصیلیه دَ الله تعالیٰ په ابصارو او په بصیرت سره نه حاصلیږی او دا منافی
دَ رویت (دیدن) سره نه دے دا جواب سمعانی او شربینی ذکر کړے دے
او دلیل ئے پیش کړے دے په دے قول دَ الله تعالیٰ لره " فَلَمَّا تَرَآءَ الْجَمْعَانِ
قَالَ أَصْحَابُ مُوسَىٰ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ○ قَالَ كَلَّا (سورة شعراء ۶۱) په دے کښې
رویت ئے ثابت کړے دے او ادراک ئے نفی کړے دے.

جواب دویم: چه ادراک په معنیٰ دَ احاطه کولو سره دے لکه په سورة یونس
۹۰ کښې دی او نفی دَ احاطے سره نفی دَ رویت نه راځی ځکه چه په نفی دَ خاص
سره نفی دَ عام نه راځی دا هم ابن کثیر او ډیرو مفسرینو اهل سنت والو
ذکر کړے دے.

جواب دریم: چه په دے سره نفی دَ رویت په دنیا کښې دے او دا مراد دے دَ
استدلال دَ عائشه رضي الله عنها په دے ایت سره او دَ رویت دَ الله تعالیٰ
دَ پاره په اٰخرت کښې نور نصوص وارد دی.

جواب څلورم: الابصار نه مراد ټول نظرونه دی یعنی دَ ټولو خلقو نظرونو
سره الله تعالیٰ نه لیدلے کیږی او دَ دے نه تخصیص دَ مؤمنانو کړے شوے

مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَمَنْ اَبْصَرَ فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ

دَ طرف دَ رب ستاسو نه، نو چا چه پوهه حاصله کړه نو فائده ئے دَ ځان دَپاره ده، او څوک چه

عَمِیَ فَعَلَیْهَا ؕ وَمَاۤ اَنَا عَلَیْكُمْ بِحَفِیْظٍ ﴿۱۰۴﴾

ړوند شو (دَ دلیلونو نه) نو وبال به په هغه باندے وی او ځه نه یم په تاسو باندے ساتنه کوونکے۔

وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰیٰتِ وَلِیَقُوْلُوْا دَرَسْتَ

او دغسے قسما قسم بیانوو مونږه ایاتونه (دَ توحید دَپاره دَ دے چه پوهه شی دوی) او دوی وائی تا لوستلی دے (دَ فلانی نه)

وَلِنُبَیِّنَهٗ لِقَوْمٍ یَّعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ اِتَّبِعْ

او دَپاره دَ دے چه بیان کړو دا هغه قوم ته چه نه پوهیږی۔ تابع اوسه

مَاۤ اُوْحِیَ اِلَیْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ

دَ هغه څه چه وحی شوې ده تاته دَ طرف دَ رب ستا نه نیشته حقدار دَ بندګئ مګر هغه دے

په صحیح نصوصو سره۔

وَهُوَ یُدْرِكُ الْاَبْصَارَ دَ ابصار و ذکر دَ وجے دَ تجانس دَ کلام نه شوے دے ځکه چه الله تعالیٰ دَ هر څیز ادراک کوی۔ اَللَّطِیْفُ نرمی کوونکے دے دَ بندګانو سره۔ راویستونکے دے دَ نری څیزونو او دَ هغې حقیقتونه ښکاره کوونکے۔

۱۰۴ دا ترغیب دے قرآن ته او ذکر دَ شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے چه دا بیان په دلیلونو او په ذکر دَ نتیجے دَ هغې په زړونو کښې بصیرت او رڼا پیدا کوی او دا ایت دلیل دے چه پیغمبر دَ اُمت ساتونکے او بچ کوونکے دَ مصیبتونو نه دے ځکه چه بِحَفِیْظٍ یو معنیٰ ده بچ کوونکے دَ هلاکت او عذاب نه۔ بله معنیٰ راګیروونکے دَ عملونو په علم او په قدرت کښې (ابن کثیر)۔

۱۰۵ دَ دے ایت نه تر ۱۱۳ پورے شپږم باب دے په دے کښې دوه طریقے دَ عقبانو دَ تبلیغ دی ۱۰۵ ۱۱۲ کښې، او اداب دَ تبلیغ درے دی ۱۰۶ ۱۰۸ کښې، او زورنے دی په درے ایاتونو کښې ۱۰۹ ۱۱۰ ۱۱۱، او ترغیب دے فیصلے کولو ته په قرآن باندے او رد دے په دلیل کَ جاهلانو باندے۔ په دے ایت ۱۰۵ کښې دریمه عقبه دَ تبلیغ دا ده چه بیان دَ توحید هر وخت کیږی نو مخالف خلق بد نامی نګول شروع کړی کله وائی دے دَ فلانی وهابی شاګرد دے یا دهٔ کښې دَ مرزائیت،

وَاَعۡرِضۡ عَنِ الۡمُشۡرِكِيۡنَ ﴿۱۰۶﴾ وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ

او مخ اړوه د مشرکانو د ډلې نه۔ او که خوښه الله تعالیٰ

مَآ اَشۡرَكُوۡا ؕ وَمَا جَعَلۡنٰكَ عَلَيۡهِمۡ حَفِيۡظًا ۚ

نو دوی به شرک نه وے کړے۔ او نه یې مقرر کړے مونږ ته په دوی باندے ځوکیدار

وَمَآ اَنۡتَ عَلَيۡهِمۡ بِوَكِيۡلٍ ﴿۱۰۷﴾ وَلَا تَسُبُّوا

او نه یې ته په دوی باندے ذمه وار۔ او کنځل مه کوئ

الَّذِيۡنَ يَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ

هغه کسانو ته چه دوی یې بلی سیوا د الله تعالیٰ نه

پرویزئیت او اعتزال وغیره اثر شوے دے۔ نو د دے اعتراضونو مقابله کښ بیان د توحید پکار دے او د دے مشرکانو د بد ناموئکولو پرواه نه ده پکار او د دوی معبودانو ته کنځل نه دی پکار۔ وَكَذٰلِكَ لکه چه مخکښ مونږ تصریف د آیاتونو کړے نو دا شان اینده به هم کوؤ۔ نُصَرِّفُ یو مضمون چه په قسم قسم تعبیرونو سره ذکر شی نو هغے ته تصریف وئیلے شی نو قرآن کریم مسئله د توحید په مختلف عنوانانو او دلیلونو او زجرونو وغیره سره ذکر کوی وَلِيَقُوۡلُوۡا د دے معطوف علیه پټ دے لتقوم الحجة علیهم (د پاره د دے چه حجت په دوی باندے قائم شی)۔ ولنصرف دا لام د عاقبت او کصیرورت (کرځیدل) دے۔ دَرَسۡتَ په دے کښ قرطبی اووه قراءتونه ذکر کړے دی په دے قراءت باندے په معنی د تعلّمت دے لکه چه سورة نحل ۱۰۳ او حج ۵۲ کښ دی یعنی دوی د دے د نقل کولو نسبت یو بد نام سړی ته کوی یا درست په معنی د محوه کولو د زوړ دین دے۔ وَلِنُبَيِّنَهٗ ضمیر راجع دے آیات ته په تاویل د قرآن یا د قول سره۔

۱۰۶ دا بیان د دوؤ ادابو دے او د مَآ اُوۡحِیَ اِلَيۡكَ خلاصه دا ده چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ۔ اِتَّبِعۡ مراد د دینه بیان کول همیشه او عمل کول په وحی باندے دی۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دا علت دے د اتبع یا حال موکده دے د من ربك یا بدل دے د ما اوحی د پاره۔ وَ اَعۡرِضۡ مراد د اعراض نه د هغوی د وسوسو نه او مجلسونو او دوستانے نه بچ کیدل او د هغوی د مخالفت پرواه نه کول دی۔

۱۰۷ دا علت نه دی د اَعۡرِضۡ د پاره په درے طریقو سره او تسلی ده نبی ته او

فَيَسُبُّوا اللّٰهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ كَذٰلِكَ

پس کنځل به اوکړی دوی الله تعالیٰ ته د وجې د دشمنۍ نه په ناپوهۍ سره۔ د ښتے

زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ عَمَلَهُمْ ۖ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ

دغسې ګړ ښائسته کړي دي مونږ هر امت ته عملونه د دوی بیا به رب د دوی ته

مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۸﴾

ورګرځیدل د دوی وي، نو خبر به ورکړي دوی لره په هغه عملونو سره چه دوی به کوی۔

بیان کوونکو د توحید ته چه ستاسو په ذمه باندے صرف بیان کول دی هدایت کول او نه کول د الله تعالیٰ په اختیار کښې دی نو ته پس د بیان نه نوره پرواه مکوه۔ نه ته الله تعالیٰ د دوی څوکیدار جوړ کړے ئے او نه ته پخپله د دوی ذمه وار ئے په آیت ۱۰۷ کښې نفي د حفیظ وه د طرف د نبي نه او په دے جمله کښې نفي ده د طرف د الله تعالیٰ نه او وَكِيْلٍ هغه څوک دے چه تاوان او ذمه واري هغه ته راجع وی او هغه له اختیار ورکړے شوے وی د طرف د موکل نه او د حفیظ وکیل فرق دلته دا دے چه حفیظ هغه دے چه د تکالیفو او مصیبتونو نه بچ کول کوی او وکیل هغه دے چه نفع او فائدے ورکوی۔ نو د دے وجے نه ستاسو نه د دوی تپوس نه کیږی۔

۱۰۸ دا بل ادب د دعوت دے۔ سبّ په معنیٰ د نقصان بیانولو دے چه په هغے کښې د هغه څیز د شان کوتاهي او سپکوالے راځی نو دا نه دے جائز په باره د معبودانِ باطله کښې۔ او دا وئیل چه دوی لائق د بندګۍ نه دی او اختیارمند او ذمه وار د نفعے او ضرر نه دی او حاجت روا او مشکل کشا نه دی دا کنځل او سبّ نه دی بلکه دا بیانول خو ضروری دی۔ وَلَا تَسُبُّوا نبی صلی الله علیه وسلم سبّ د اِلٰهَ د دوی چرے نه دے کړے لیکن مقصد په دے کښې ادب خودل دی۔ سبّ دوه قسمه دے یو هغه دے چه په هغے کښې توهین او دروغ وی هغه خو فی نفسه هم منع دے او بل مباح دے چه په هغوی کښې کوم عیوب موجود وی او هغه بیان کړے شی نو دا خو فی نفسه جائز دی لیکن هر کله چه دا ذریعه ګرزی د پاره د حرام چه سبّ د الله تعالیٰ دے نو ذریعه د حرام هم حرام وی نو په دے آیت کښې مسئله د سدّ الذرائع ده نو کله چه د یو مباح نه

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ

او قسمونه کړیدي دوي په الله تعالیٰ کلک قسمونه خپل که چرے

جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا

راغله دوي ته معجزه نوخامخا ایمان به راوړي په هغے۔ تهورته اووایه یقینًا

الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَمَا يُشْعِرُكُمْ ۙ اَنَّهَآ

اختیار د معجزاتو د الله تعالیٰ سره دے اوڅه پوهېږئ تاسو ، کېدیشي چه دا معجزے

اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۹﴾ وَنُقَلِّبُ

که راشي دوي ته نو دوي ایمان نه راوړي۔ او (مونږ) چه اړوو را اړوو

فتنه وغیره پیدا کیږی نو د هغه مباح نه که قول وی او که عمل وی ځان بچ کول پکار دی۔ فَيَسُبُّوا اللّٰهَ اه سوال: مشرکانو خو الله تعالیٰ منلو او د عظمت عقیدۀ ئے لرله نو څنګه هغوی الله تعالیٰ ته سبّ کوی؟۔
جواب: ۱ د غصے او د ضد د وجے نه دا سب کوی لکه لفظ د عدوًا په دے باندے دلیل دے ۲ راغب وئیلے دی چه مراد د دے نه جګړه کول دی په توحید کښې په باطله طریقے سره۔ ۳ مراد د دے نه رسول د الله تعالیٰ دے چه هغه ته کنځلے اوکړی۔
بِغَيْرِ عِلْمٍ دا سبب دے د عدوًا یا علت دے د یسبوا الله د پاره۔ كَذٰلِكَ دا هم علت دے د ځکښې ملازمے یعنی سب د اصنامو ولے مستلزم دے سب د الله تعالیٰ لره یعنی وجه د دے زینت د بد عمل دے چه داورته ثواب یا غیرت ښکاری۔
لِكُلِّ اُمَّةٍ عام دے که امت د ایمان والو وی او که د کفر شرک بدعت والا وی۔
۱۰۹ دا جواب د سوال دے یعنی که څوک ګمان اوکړی چه سب د دوی الله تعالیٰ لره په وجه د ناکاره استعداد سره نه دے بلکه د دے وجے نه چه دوی ته آیات مقترحه (چه دوی طلب کوی) نه راځی نو جواب اوشو۔ وَاَقْسَمُوْا اه دلیل دے چه مشرکان کله کله په الله تعالیٰ باندے د هغه د عظمت د وجے نه قسم کوی۔
جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ قرطبی وئیلے دی چه مشرکانو به په غیر الله باندے قسمونه کول او په الله تعالیٰ باندے هم قسم کول لیکن قسم په الله تعالیٰ باندے دوی پوخ قسم ګڼړلو او د دے زمانے جاهلان په غیر الله باندے قسم کول ډیر خطرناک ګڼړی

أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ

زړونه دَدوی او سترګې د دوی (دَ حق نه) لکه چه ایمان نه دی راوړی دوی په دے (حق) باندے اول

مَرَّةٍ وَنَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿۱۱۰﴾

ځل او پریږدو مونږه دوی په سرکشئ دَ دوی کښې سرګردانه۔

ع ۱۳ ۱۰ ۱۹

کړی او په الله تعالیٰ باندے دَ قسم کولو نه څه پرواه نه کوی (نو دوی په دے جهت سره دَ زړو مشرکانو نه زیات ګمراه دی)۔ اٰیَةٌ مراد دَ دے نه هغه معجزات دی چه دوی طلب کول دَ دُنیا پرستئ او دَ جهل دَ وجے نه لکه په سورة اسراء ۹۰ ۹۱ کښې دی او دا ۵۰ په سورة فاطر ۴۲ کښې دی۔ قُلْ إِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ دا دلیل دے چه معجزات راوړل دَ انبیاء علیهم السلام په اختیار او قدرت کښې نه دی دا ۵۰ په سورة رعد ۳۸ او سورة ابراهیم ۱۱ او سورة عنکبوت ۵۰ او سورة اسراء ۹۳ کښې دی۔ وَمَا يُشْعِرُكُمْ اشعار او شعور په معنیٰ دَ پوهه دے او ما استفهامیه انکاریه دے او خطاب مؤمنانو ته دے یعنی مومنانو دا آیت دَ مشرکانو دَ پاره طلب کول په دے ګمان چه دوی به ایمان راوړی۔

سوال: په دے معنیٰ سره خو یؤمنون پکار دے؟

جواب ۱: دلته لا مقحم دے دَ پاره دَ تاکید دَ معنیٰ دَ انکار (په استفهام کښې)۔

جواب ۲: مفعول دویم محذوف دے اصل عبارت دا دے "وَمَا يُشْعِرُكُمْ مَا فِي الْوَاقِعِ وَفِي عِلْمِ اللّٰهِ انها اه" (تاسو ته دَ واقع څه خیز پوهه درکړی او دَ الله تعالیٰ په علم کښې دا ده چه دوی خو ایمان نه راوړی۔)

جواب ۳: مفعول ثانی پټ دے او انها په معنیٰ دَ لَعَلَّ دے او دا دَ خلیل او کسائی نه نقل دے اصل عبارت دا دے "وما یشعرکم حالهم لعلها اه" او بعضو علماؤ ویلی دی چه دا خطاب کافرانو ته دے نو په کلام کښې تقدیر دے "وما یشعرکم انکم آمنتم عند مجی الآیات" او دَ انها نه نوے کلام دے په تقدیر دَ لانها سره یا دا چه په بل قراءت کښې اِنها په زیر دَ الف او تؤمنون په خطاب سره دے۔

او دا زورنه ده په طلب دَ معجزاتو دَ پیغمبر نه چه هغه لره دَ دے اختیار منکر دی او دا آیت دلیل دے چه دَ پیغمبر په معجزه کښې هیڅ اختیار نه وی۔

۱۱۰ دا علت او وجه ده دَ لَا يُؤْمِنُوْنَ دَ پاره واو په معنیٰ دَ علت دے او کما کښې کاف هم په معنیٰ دَ علت دے ترتیب دا دے چه اول دوی ایمان نه دے راوړے

وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ

او که موږ به نازل کړو دوی ته ملائک او خبرې اوکړې د دوی سره

الْمَوْتٰى وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ

مړي او راجمع کړو موږ په دوی باندې هر څیز

قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ

مخامخ ، نه دي دوی چه ایمان راوړي مګر هغه وخت چه اوغواړي الله تعالیٰ

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ وَكَذٰلِكَ

او لیکن اکثر د دوی نه ناپوهه دي - او د غسې

جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ

کړځولي دي موږ هر پیغمبر لره دُشمنان شیطانان د انسانانو

د هغې وجې نه د دوی زړونه او سترګې د حق نه واوړېدل نو د دغه وجې نه سره د معجزاتو نه دوی د ایمان نه محروم شول نو په طغیان کښې همیشه د پاره پاتې شول۔

سوال؛ دلته یې اسماع نه دې ذکر کړې؟

جواب؛ دلته بحث د معجزات محسوسه دې چه دوی د هغې مطالبه کوله او دا سې معجزاتو له د عبرت د پاره سترګې او زړونه پکار دي او په دې کښې غوږونه نه استعمالیږي۔

۱۱۱ دا آیت بل جواب دې د دې قول د دوی چه "لَئِنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ" یعني که دا معجزات دوی ته راشي نو هم ایمان نه راوړي د ضد او د عناد د وجې نه۔ دا معجزات دوی غوښتلي وو لکه په سورة اسراء ۹۲ او سورة فرقان ۲۱ او سورة انعام ۱۲۴ کښې په دې کښې دوی د ملائیکو په راتللو او د الله تعالیٰ د لیدلو طلب کړې دې او په سورة دخان ۳۶ او جاثیه ۲۵ کښې طلب د آباؤ دې چه مړه دي۔ قُبُلًا جمع د قبيل ده یعني ډلې ډلې یا په معنی د مقابلةً ده (مخامخ)۔ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ اشاره ده چه ایمان هم په مشیت د الله تعالیٰ سره دې لکه په سورة یونس ۱۰۰ کښې دي۔ يَجْهَلُوْنَ عام دې جهل عنادي او غیر عنادي ته۔

وَالْجِنِّ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ

او پیریانو ته وسوسے اچوی بعض د دوی بعضو ته (دروغ) ښولی کړیشوے

الْقَوْلِ غُرُورًا ۚ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ

خبرے د پاره د دهوکه کولو ۔ او که غوښتے ربّ ستا (ایمان د دوی) نو دوی به دا کار نه وکړو

فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿۱۱۲﴾ وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ

نو پریږده دوی سره د هغے چه دوی ئے دروغ جوړوی ۔ او د دے د پاره چه مائل شی دے (دروغو) ته

أَفْئِدَةُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ

زړونه د هغه کسانو چه ایمان نه لری په اخرت باندے

سلاا دا ځلورمه عقبه د تبلیغ ده چه کله بیان د مسئلے د توحید خورشی نو شیطانان
اِنسی (علماء سُوء) وغیره راپورته شی او عوامو خلقو ته د شرک او بدعت خبرے
خائسته کوی (دا زخرف القول دے) او د حق پرستو سره د مناظرے کوشش کوی
او شور شغب پیدا کوی. او ربط د آیت دا دے چه مخکښ بیان شول عدم ایمان
د منکرینو سره د معجزاتو راتللو نه او س ظاهری مانع د هغے ذکر کوی چه هغه
وسوسے د شیطانانو دی او په آیت کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته۔
د مالک بن دینار نه قرطبی او سمعانی نقل کړے دے چه زما خوف د شیطانان
اِنسی نه ډیر دے په نسبت د جنی ځکه چه د جنی شیطان نه په تعوذ سره
بچ کیدے شم او انسی شیطانان خو ښکاره ګناهونو ته ما راکاږی او دا سے په سورۃ
فرقان سلا کښ دی۔ یُوحِی اه وحی پته القاء ته وئیلے شی نو په وسوسه هم اطلاق
کیږی او په دے اطلاق کښ نکته دا ده چه په دا سے حال کښ هغه وسوسے والا
دعوٰی کوی چه ما ته وحی شویده یا پشان د وحی ګڼړی۔ زُخْرُفَ الْقَوْلِ دا په طریقه
د تشبیه سره دے لکه چه او سپینه یا تانبه وی او د سرو زرو او به ورله ورکړیشی
تو خلقوله دهوکه ورکوی نو دا رنګ باطل قول (د کفر او شرک او بدعت کلمے)
له ته خائست ورکړی او وائی چه دا خائسته کلِمه ده او حسنه بدعت دے نو دے
زخرف القول وئیلے شی۔ غُرُورًا دا مفعول لهٔ دے یعنی د پاره د دهوکه کولو د خلقو
فَذَرْهُمْ مراد د دے نه انتظار او مهلت ورکول دی تر عذاب الٰهی پورے۔

وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا هُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾

او دے د پاره چه خوښ کړی دوی دا (دروغ) او چه کوی دوی هغه څه چه کوی یې دوی همیشه۔

اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا وَّهُوَ الَّذِيْٓ

آیا نو سیوا د الله تعالیٰ نه طلب کړم فیصله کوونکے او الله تعالیٰ هغه ذات دے

اَنْزَلَ اِلَيْكُمُ الْكِتٰبَ مُفَصَّلًا ؕ وَالَّذِيْنَ

چه نازل کړې یې دے تاسو ته کتاب په تفصیل سره۔ او هغه کسان چه

اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مُنَزَّلٌ

ورکړې یې دے موږ هغوی ته کتاب یقین کوی چه بیشکه دا قرآن نازل کړے شوے دے

مِّنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُوْنَنَّ

د طرف د رب ستا نه د پاره د حق ښکاره کولو نو مه کیږه ته

مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ

د شک کوونکو نه۔ او پوره ده کلمه د رب ستا

۱۱۳ دا عطف دے په غروراً باندے او دا د درے وسوسو مقصد ونه دی۔ وَلِتَصْغٰٓى اصغاء قوی میلان ته وئیلے شی۔ اَلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ایمان بالاٰخرة په حقیقت کښی منع کوونکے دے د هر باطل پرستۍ نه۔ حاصل د دے دا دے چه انسان جاهل اول په زخرف القول سره دهوکه شی نو بیا ورته غوږ کیدی او میلان اوکړی او بیا وربانده خوشحاله شی نو بیا هغه عملونه باطلو باندے همیشګیری شروع کړی۔ مُقْتَرِفُوْنَ مراد د دے نه اعمال (شرکیه) او بدعات دی۔ ۱۱۴ د آیت مطلب دا دے چه په وخت د مناظرے کښی فیصله به په الله تعالیٰ وی یعنی د هغه کتاب او نیکان علماء هم د دے تائید کوی۔ د آیت په اول کښی لفظ د قل پټ مراد دے او استفهام انکاری دے یعنی په وخت د مناظرے او فیصله کښی د الله تعالیٰ نه سیوا بل حکم نشی منلے کیدلے او دا سے په سورة شوریٰ ۱۰ کښی دی۔ وَهُوَ الَّذِيْٓ اه دا بیان د حکمیت د الله تعالیٰ دے یعنی د الله تعالیٰ قرآن حکم دے او تفسیر سمعانی کښی وئیلے دی چه مشرکینو د نبی صلی الله علیه وسلم نه مطالبه

صِدْقًا وَّعَدْلًا ۭ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَهُوَ
په رشتینوالی او په انصاف سره- نیشته څوک بدلوونکے د کلمو د هغه- او هغه

السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۱۵﴾ وَاِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ
هرڅه اوری په هرڅه پوهه دے- او که ته تابعداری کوے د ډېرو د هغه چاچه

فِى الْاَرْضِ يُضِلُّوْكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ
په زمکه کښې دی نو واړه به دې تاله د لارے د الله تعالیٰ نه-

اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿۱۱۶﴾
دوی نه کوی تابعداری مګر د ګمان او نه دی دوی مګر په اټکل (توک) کار نه کوی-

اوکړه " اجعل بيننا وبينك حكماً " (زمونږ او ستا مینځ کښې حکم مقرر کړه) نو جواب اوشو اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اه سره- مُفَصَّلًا تفصیل په اعتبار د ایمانیاتو او د عقیدے سره پوره موجود دے په قرآن کښې- وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمْ مراد د دے نه نیکان کتابیان دی او په دے سره دلیل نقلی او شهادت د هغوی پیش کوی د تاکید د حاکمیت د کتاب الله د پاره د دے سورت ۷۰ کښې او سورة بقره ۱۴۶ کښې هم دا سے شته- فَلَا تَكُوْنَنَّ اه خطاب نبی ته دے او مراد ترینه اُمت دے-

۱۱۵ دا په کتاب الله باندے د فیصلے کولو وجه ده چه صدق او عدل د دے کتاب پُوره دے او په دے کښې څوک تبدیل کوونکے هم نیشته او دا سے بل کتاب نیشته د دے وجے نه حکم به دا کتاب وی- صِدْقًا په اخبار اتو کښې او عَدْلًا په اوامرو او نواهی کښې- كَلِمَتُ رَبِّكَ دا نوم د قرآن دے مفرد په اعتبار د جنس او مجموعه سره یعنی ټول کتاب الله په صدق او عدل کښې یو شان دے- لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ دلته ئے جمع اوئیله اشاره ده چه په یو یو کلمه کښې هم تبدیل نشی کیدلے او دا سے په سورة کهف ۲۷ کښې او سورة یونس ۶۴ کښې دی-

۱۱۶ دلیل د اهل حق ذکر شو نو اوس دلیل د مخالفینو ذکر کوی دا رد دے په دلیل د اهل باطل باندے چه اکثریت دے او اتباع د ګمان ده او په توک (بے دلیله) خبرو پسے تلل دی. تابعداری د ظن په عقیده کښې کوی او خرص (اټکل) په عملونو کښې دے دا رنګ اتباع د ظن د ګمراهو عالمانو کار دے. او خرص (بے دلیله)

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن

یقینًا ستا رب هغه ښه پوهه دے په هغه چا چه اوړی دَ

سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿١١٧﴾

لارے دَ الله تعالیٰ نه، او هغه ښه پوهه دے په هدایت والو۔

فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ

پس خورئ دَ هغے نه چه یاد شوے وی نوم خاص دَ الله تعالیٰ په هغے باندے

إِن كُنتُم بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ ﴿١١٨﴾ وَمَا لَكُمْ

که یئ تاسو په احکامو دَ الله تعالیٰ ایمان لرونکی۔ او څه عذر دے ستاسو

عملونه کول دَ مقلد ینو طریقه ده۔

فائده: په دے وخت کښ اقتدار حاصلول او ووټونه کول ټول بنا دی په اکثریت دَ افرادو باندے اگرچه جاهلان وی اودا باطله طریقه ده اودا دَ دے وخت دَ سیاسیانو طریقه ده۔

۱۱۷ کښ تقابل دَ گمراهانو او نیکانو ذکر شو په طریقه دَ استدلال کښ اوس دَ هغوی امتیاز او فرق ذکر کوی په علم دَ الله تعالیٰ کښ او علم دَ الله تعالیٰ په فریقینو مستلزم دے جزاء او سزا ورکولو دَ پاره۔

۱۱۸ دَ دے ځائے نه تر آخره پورے دویمه حصه دَ سورت ده او په دیکښ درے بابونه دی اول باب تر ۱۳۵ پورے دے په دے کښ اول رد دے په تحریم دَ غیر الله او بیا په نذر دَ غیر الله باندے او دوه عقیے دَ تبلیغ ذکر دی او تقابل دے دَ دوو ډلو ۱۲۲ ۱۲۵ کښ او تخویف اخروی دے. ربط دَ دے دَ ماقبل سره دا دے چه هر کله دَ جاهلانو باطل دلیلونو باندے رد اوکړو نو اوس دَ هغوی په باطل تحریم او تحلیل (چه شرک فعلی دے) رد کوی. فَكُلُوا نو مراد دَ كُلُوا نه واجب کول دَ خوراک نه دی بلکه عقیده لرل دَ تحلیل دَ هغے دی چه مشرکانو بے دلیله په ځان باندے حرام کړے دی. فَكُلُوا یعنی حلال ئے گنړئ او مه حراموئ هغه حلال خیزونه چه نوم دَ الله تعالیٰ پرے یاد شوے وی په وخت دَ نذر کولو او په وخت دَ ذبح کولو کښ. په دے ایت کښ رد دے په تحریم لغیر الله باندے

أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ

چه نه خورئ د هغه څيز نه چه ياد كړېشي خاص نوم د الله تعالى په هغې باندې

وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ

او يقيناً تفصيلي بيان كوي تاسو ته د هغه څيزونو چه حرام كړې يې دي په تاسو باندې

إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا

مګر هغه څه چه مجبوره شئ هغې ته. او يقيناً ډير خلق

لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ

خامخا ګمراه كول كوي په خواهشاتو خپلو سره بې د علم (دليل) نه.

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ ﴿١١٩﴾

يقيناً رب ستا هغه څه پوهه دې په تيرونونكو د حد نه.

ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ د دې نه معلومه شوه چه نوم د غيرالله ورباندې ذكر شي نو هغه حرام دې لكه شربيني داليكلې دي مُؤْمِنِينَ يعنى ايمان بالآيات تقاضا كوي چه حرام كول او حلال كول به بغير د الله تعالى نه د بل هيڅ نه منئ.

۱۱۹ دا هم رد دې په تحريم د غيرالله باندې او تاكيد دې د حكم د ما قبل چه فكلوا الخ دې. وَقَدْ فَصَّلَ سوال: د دينه مخكښې تفصيل نه دې شوې ځكه د دې نه وړاندې مكي سورتونو كښې تفصيل د حلال او حرام نيشته او سورة بقره او مائده كښې تفصيل شته ليكن هغه د دې سورت نه روستو نازل شوې دي نو فصل فعل ماضي څه معنى لري؟.

جواب: بلكه مراد د فَصَّلَ نه يُفَصِّلُ دې يعنى تفصيل به اوكړي.

إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اه استثناء كښې اشاره ده چه مرداره وينه خنزير ما اهل په وخت د اضطرار كښې حرام نه دي نو په وخت د اضطرار كښې حكم دا دې چه ځان د مرګ نه د بچ كولو د پاره د هغې نه به خامخا خوراک كوي. وَإِنَّ كَثِيرًا په دې كښې عمرو بن لحي او د هغه مقلدينو ته اشاره ده او دوي ته معتدين وئيلې شويدي.

وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ

او پریږدئ ښکاره گناه او پټه گناه - یقیناً هغه کسان چه

يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوْا

کوی گناهونه زر دے سزا به ورکړیشی دوی ته په سبب د هغه کارونو

يَقْتَرِفُوْنَ ﴿۱۲۰﴾ وَلَا تَاْكُلُوْا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ

چه دوی کول - او مه خورئ د هغے نه چه نه وی یاد کړے شوے

اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَاِنَّهٗ لَفِسْقٌ ؕ وَاِنَّ الشَّيٰطِيْنَ

نوم د الله تعالیٰ په هغے باندے او یقیناً دا وتل دی د حکم د الله نه - او یقیناً شیطانان

لَيُوْحُوْنَ اِلٰۤى اَوْلِيٰٓـئِهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ ۚ وَاِنْ

خامخا وسوسے اچوی دوستانو خپلو ته د دے د پاره چه جګړه اوکړی ستاسو سره ، او که

اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ ﴿۱۲۱﴾ ع اَوَمَنْ كَانَ

خبره اومنئ د دوی نو یقیناً تاسو به خامخا مشرکان یئ - آیا هغه څوک چه وی

---

ف ۱۲۰ ظَاهِرَ الْاِثْمِ نه مراد هغه گناهونه دی چه د ښکاره بدن سره تعلق لری یا ښکاره کیږی او په دے کښ شرک فعلی داخل دے. وَبَاطِنَهٗ هغه گناهونه چه د عقیدے او زړه سره تعلق لری یا پټ کیږی او په دے کښ شرک اعتقادی داخل دے. سَيُجْزَوْنَ اه په آیت کښ تخصیص دے په سبب د آیاتونو د توبے او د مغفرت سره یعنی چه الله تعالیٰ نه وی بخلے او انسان توبه نه وی کړے نو سزا ورکول لازم دی. او دا رنګ لفظ د سَيُجْزَوْنَ وعید دے مستلزم وجوب لره نه دے نو د دے وجونه معتزله په دے آیت سره دلیل نیولے نشی.

ف ۱۲۱ دارد دے په نذر د غیر الله باندے دا قول د عطاء نه نقل دے او دا رنګ مردار ے پکښ داخل دی او ذبح د مسلمان چه ذکر د اسم الله قصداً ترک کړے وی نو په هغے کښ اختلاف دے. وَاِنَّهٗ لَفِسْقٌ ضمیر راجع دے ذبح د غیر الله ته او دا فسق اعتقادی دے لکه د دے سورت په ف ۱۴۵ کښ یا راجع دے اکل ته او دا فسق عملی دے. وَاِنَّ الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ مراد د شیاطین نه علماء سوء دی

مَيْتًا فَأَحْيَيْنَٰهُ وَجَعَلْنَا لَهُۥ نُورًا يَمْشِى

مړ پس ژوندے کړو مونږ هغه او ورکړو هغه ته رڼا ګرځي

بِهِۦ فِى ٱلنَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُۥ فِى ٱلظُّلُمَٰتِ

په هغې سره په خلقو کښې پشان د هغه چا کیدے شي چه په تیارو کښې وي

لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ۚ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكَٰفِرِينَ

او نه وي وتونکے د هغې نه؟ دغسې ډولي کړے شویدي کافرانو ته

مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿۱۲۲﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا فِى

هغه عملونه چه کوي یې. او دغسې ګرځولے دي مونږه په

كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَٰبِرَ مُجْرِمِيهَا لِيَمْكُرُوا۟

هر کلي کښې غټان خلق مجرمان د هغې (کلي) دے د پاره چه چل ول کوي

فِيهَا ۖ وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنفُسِهِمْ

په هغه کلي کښې (په خلاف د حق کښې). او نه کوي چل ول مکر په ځانونو خپلو

وسوسے اچوی عوامو ته اوزجاج وئیلي دي چه دا دلیل دے چه څوک حرام لره حلال ګڼړي یا حلال لره حرام ګڼړي دا رنګ نذر د غیر الله چه حلال ګڼړي نو دا مشرک دے. دا رنګ دا دلیل دے چه د دے امت نه چه څوک شرک اوکړي اګرچه شرك في الحكم والتشريع وي نو هغه ته مشرک وئیلے شي.

۱۲۲ دا تقابل دے د دوو ډلو او ترغیب دے توحید او قرآن ته. مَيْتًا نه مراد مشرک دے په هغه شرکونو سره چه مخکښې ایاتونو کښې بیان شول. او حَيَات نه مراد توحید دے او دا رنګ د میت نه مراد جاهل دے او احیاء نه مراد علم ورکول دي. فَأَحْيَيْنَٰهُ دا حیات په روح د معرفتِ الٰهي او توحید سره دے ځکه حیات د روح په دے سره حاصلیږي نو په یو جانب کښې حیات او نُور دے او بل جانب کښې موت (شرک او جهل) او ظلمت دے. په دے ایت کښې رد دے په سیکولرازم باندے چه د کفر او اسلام فرق نه کوي او رد دے په هغه جاهلانو باندے چه یو انسان د کفر او شرک او بدعت او جهل نه توحید سنت او

وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ وَإِذَا جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ

او دوی نه پوهیږی. او کله چه راشی دوی ته څه نښه

قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ

دوی وائی چرے ایمان نه راوړو موږ تر دے پورے چه راکړیشی موږ ته پشان

مَآ اُوْتِىَ رُسُلُ اللّٰهِ ۘؔ اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ

د هغے چه ورکړے شویدی رسولانو د الله تعالیٰ ته. الله تعالیٰ خبر دے په هغه ځائے چه مقرروی دے په هغه ځائے کښ

رِسَالَتَهٗ ؕ سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ

پیغام خپل. زر دے او به رسی هغه کسانو ته چه جرم ئے کړیدے سپکوالے

عِنْدَ اللّٰهِ وَعَذَابٌ شَدِيْدٌ بِمَا كَانُوْا

په نیز د الله تعالیٰ او عذاب سخت په سبب د هغے چه دوی

علم ته نقل شی نو دوی ورپسے مسخرے کوی. او نُوْرًا نه مراد قرآن دے يَمْشِىْ نه مراد د دعوت د توحید د پاره گرځیدل دی یا په قرآن باندے عمل کول مراد دی. كَذٰلِكَ لکه چه مؤمن ته ایمان خائسته کړے شوے دے نو دارنگ کافر ته کفر خائسته کړے شوے دے.

۱۲۳ دا پنځمه عقبه د تبلیغ ده چه کله د علماؤ د مقابلے انتها اوشی نو دوی غټانو او اقتدار والو ته رپورټونه د مؤحد په خلاف کوی نو هغوی د مؤحد په مخالفت کښ سخت مکرونه اوکړی قید ئے کړی یا ئے وطن نه اوشړی وغیره نو الله تعالیٰ فرمائی چه د دوی د مکرونو بد اثر به په دوی باندے پریوځی. وَكَذٰلِكَ دا تشبیه راجع ده هغے ته چه تیر شویدی په ۵۳، ۵۵، ۱۰۵، ۱۱۲ کښ. اَكٰبِرَ دا ئے د دے وجے نه ذکر کړو چه اشاره اوشی چه کبر د دغه خلقو سبب د جرمونو او گرځیدلو لِيَمْكُرُوْا لام د عاقبت دے او دا سے په سورة اسراء ۱۶ او سورة نوح ۲۲ کښ دی او مقابله د دے کښ د قرآن او حدیثِ هرقل نه معلوم ده چه تابعداران د رسولانو کمزورے خلق دی او مراد د مکر نه (ابن کثیر وغیره دی) دعوت د گمراهئ دے. سفیان نه نقل دے هر مکر په قرآن کښ عمل دے او ابتداء ورکول مؤحدینو ته هم په مکر کښ داخل دی او دا سے په سورة فاطر کښ ذکر دی.

يَمْكُرُوْنَ ﴿١٢٤﴾ فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ

چل ول جوړوي. پس هغه څوک چه اوغواړي الله تعالیٰ چه هدايت اوکړي هغه ته

يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ ۚ وَمَنْ يُّرِدْ

نو پرانځي سينه د هغه اسلام (قبلولو) ته او هغه څوک چه اوغواړي

اَنْ يُّضِلَّهٗ يَجْعَلْ صَدْرَهٗ ضَيِّقًا حَرَجًا

چه بے لارے ئے کړي نو اوګرځوي سينه د هغه تنګيدونکے غصه کيدونکے

كَاَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَآءِ ؕ كَذٰلِكَ يَجْعَلُ

ګوياکه په زور خيژي په بره طرف کښ. دغسے مقرروي

اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٢٥﴾

الله تعالیٰ بے خيري (پليتي) په هغه کسانو چه ايمان نه راوړي.

۱۲۴ دا ذکر د مکر د اکابرو دے او تکبر د هغوي دے دا زور نه ده چه غټان د تکبر د وجے نه د رسول سره ځان برابروي او نزول د ملائيکو او رسالت غواړي د هغے جواب اوشو په دے قول سره اَللّٰهُ اَعْلَمُ اه يعني دا نبي په خاندان او قوم او د اخلاقو او کردار د وجے نه الله تعالیٰ پيژندلو چه دے اهل د رسالت دے د دهٔ مثل نيشته. عِنْدَ اللّٰهِ مراد د دے نه ورځ د قيامت ده يا په معني مِن عندالله دے نو دنيا ته هم شامل دے دا قول د فراء دے. او دا آيت صريح دليل دے چه د تکبر او د مکرونو بدله ذلت او عذاب دے. سزا د هغے متکبرينو غټانو دا ده چه سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا صَغَارٌ يعني د غټوالي په مقابله کښ وړوکوالے او سپکوالے به دوي ته اورسي. او حَتّٰى نُؤْتٰى مِثْلَ اه کښ دا مطلب هم کيديشي چه زمونږ ملايان د مونږ ته هغه مسئلے اوکړي کومے چه دا رسولان (او حق پرست) ئے کوي.

۱۲۵ دا فائده د رسالت حقه ده او دا تقابل دے د دوو ډلو په اکابرو کښ يعني الله تعالیٰ چه چا ته هدايت کول غواړي" او په حديث کښ د دے درے علامات ذکر کړے دي انابت کول جنت ته. پرهيز کول د دنيا نه. او د مرګ د پاره تياري کول مخکښ د راتللو د مرګ نه" نو هغه په توحيد او سنت پوهه کړي او د هغه د زړهٔ ته

وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا ؕ قَدْ

او دا (قرآن) لار دَ رب ستا ده نیغه - یقینًا

فَصَّلْنَا الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یَّذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۲۶﴾

په تفصیل سره بیان کړي دي موږ آیاتونه هغه قوم لره چه نصیحت قبلوي -

لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَهُوَ

دوی لره کور دَ سلامتیا دے په نیز دَ رب دَ دوی او هغه

شکونه لرے کړي او تکالیف دَ دین ورته آسان کړي دے درے واړه صفاتو ته شَرَح صَدْر وائي او څوک چه گمراه کول غواړي نو توحید او سنت اوریدلو باندے ډیر تنګیږي او بیا سخت غُصه شي او دا منل ورته دومره سخت ښکاري لکه بره ډیریږ یا غر ته ختل یا ضیق په طور دَ تشبیه سره دے یعني ایمان پکښې نه داخلیږي او حَرَجًا په زوَر دَ راء سره په معنی دَ ذا حرج او په کسره دَ راء سره په معنی دَ سخت تنګ دے - کَاَنَّمَا یَصَّعَّدُ ابن جریر وئیلے دي چه دا هم یو مثال دے لکه چه یو انسان اسمان ته نشي ختلے نو دارنګ دَ گمراه په زړه کښې ایمان نشي داخلیدلے - کَذٰلِكَ یَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ لکه چه سینه دَ هغه یئے تنګه کړځولے ده دغه شان رجس هم په دوي باندے اچوي زجاج وئیلے دي چه رجس په دنیا کښې لعنت دے او په آخرت کښې عذاب دے یا رجس په معنی دَ شیطان دے چه مسلط کوي یئے په بے ایمانو خلقو باندے او مجاهد وئیلے دي چه رجس هرهغه خیز دے چه په هغے کښې خیر نه وي.

۱۲۶ دا ترغیب دے قرآن ته روستو دَ ذکر دَ طریقے دَ گمراهانو نه او دا رنګ چه مخکښې یشرح صدره ذکر کړو نو اوس سبب دَ شرح صدر ذکر کوي او هٰذَا کښې اشاره ده بیان او مضمون دَ قرآن ته - مُسْتَقِیْمًا په طریقه دَ حال سره دَ پاره دَ تاکید دے - الْاٰیٰتِ مراد ترینه قرآني آیاتونه دي چه دَ یو بل نه جدا جدا دي دَ هر مسئلے او مضمون دَ پاره مستقل آیاتونه دي -

وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۲۷﴾ وَيَوْمَ

مددګار د دوی دے په سبب د هغه عمل چه دوی کوو. او په کومه ورځ

يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ۚ يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ

چه جمع به کړی دے ټولو (او به وائی) اے ډلے د پیریانو

قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ مِنَ الْإِنْسِ ۖ وَقَالَ

یقیناً ډیر کسان تابع کړی دی تاسو په ځان پسے د انسانانو نه، او وائی به

أَوْلِيَاؤُهُمْ مِنَ الْإِنْسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ

دوستان د دوی د انسانانو نه اے ربه زمونږه! فائدے اخستے دی

بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَبَلَغْنَا أَجَلَنَا الَّذِي

بعضو زمونږ په بعضو سره او رسیدلے یو مونږ نیټے خپلے ته هغه چه

أَجَّلْتَ لَنَا ۚ قَالَ النَّارُ مَثْوَاكُمْ

تا مقرر کړیده مونږ لره. او به وائی الله تعالیٰ اور ستاسو د اوسیدو ځائے دے

خَالِدِينَ فِيهَا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ

همیشه به یئ پدیکښې مګر هغه چه او غواړی الله تعالیٰ. یقیناً رب ستا

---

۱۲۷ دا زیرے اخروی دے د پاره د منونکو. دَارُ السَّلَامِ حسن وئیلے دی چه سلام نوم د الله تعالیٰ دے او زجاج وئیلے دی چه سلام مصدر دے په معنیٰ د سلامتیا د ټولو آفتونو نه یا سلام نه مراد تحیه ده یعنی کور د ډیرو سلامونو دے د هر طرف نه به سلام وی. عِنْدَ رَبِّهِمْ کښې اشاره ده چه د هغے د نعمتونو تفصیلی علم صرف الله تعالیٰ سره دے. وَلِيُّهُمْ ولی په معنیٰ د حافظ ناصر مؤید (ابن کثیر) او ذمه دار د کارونو د دوی بل چاته ئے نه سپاری (شربینی).

حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۲۸﴾ وَكَذٰلِكَ نُوَلِّيْ بَعْضَ

حکمتونو والا دے پوهه دَ په هرڅه. او دغسے ملګرے کوو مونږ بعض

الظّٰلِمِيْنَ بَعْضًا بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۲۹﴾ ع

ظالمان دَ بعض سره په سبب دَ هغه عملونو چه دوی یے کوی.

۱۲۸ دا یره اخروی ده دَ پاره دَ نه منونکو. اَسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ دا اعتراف دَ جرم دَ لویو پیریانو به انسانانو لره په څنګلاتوکښ دَ وړو پیریانو نه ساتنه کوله دارنګ دَ پیریانو په ذریعه بعض عاملان دَ جناتو څخه بعض کارونه کوی دارنګ په چاچه جن راشی نو هغوی په دهوکو او دروغو سره دَ خلقو نه روپئ او ساما نونه حاصلوی دا فائده دَ انسانانو دی په ذریعه دَ جناتو سره او انسانانو به دَ پیریانو په نوم باندے نذرانے کولے او دَ هغوی تعبداری کوی او دَ پیریانو نه یره کوی هغوی غالب او زوراور ګڼړی شیخ الاسلام په تفسیرکښ دَ دے استمتاع ډیرصورتونه ذکرکړے دی تر دے چه جنات زنا کوی دَ انسانانو سره نو دا دَ جن فائدے دی دَ انسانانو نه. اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ دَ دے نه مراد دَ اور نه علاوه نور عذابونه دی لکه زمهریر او مکان دَ خوراک څښاک یا مؤمنان ګنهګارترینه مراد دی او ابن قیم لیکلے دی چه په دے ایت کښ ذکر دے دَ هغه کسانو چه په هغوی احوال شیطانیه او کشفونه شیطانی رائی او دَ بعض مغیباتو نه په ذریعه دَ مدد دَ پیریانو سره خلقو ته خبرونه ورکوی او خلق ګمان کوی چه دا اولیاء الرحمان دی او حال دا چه هغوی اولیاء الشیطان دی او دا ایت دلیل دے چه انسانان او پیریان دواړه مکلف دی په احکامو شرعیو سره.

۱۲۹ دا شپږمه عقبه دَ تبلیغ ده چه اخری مرحله ده یعنی حق پرست دے ته اورسی چه ظلم یعنی شرک او بدعت والا ټول دَ دۀ په مقابله کښ متفق شی او دَ دۀ سره تعلقات پریږدی. دَ دے ایت بله معنی دا ده چه په ظالمانو باندے نورو ظالمانو لره حاکمان اوګرځوی او دا عذاب دُنیوی دے بنا په اول باندے نُوَلِّي دَ ولایت نه په معنی دَ دوستانے دے یعنی باطل پرست ظالمان دَ یو بل سره مرکز تیا کوی په مقابله دَ صالحینو کښ. او بنا په دویمه معنی باندے نولی دَ ولایت نه په معنیٰ حکومت دے په اوله معنی سره دا اخری عقبه ده په دویمه معنی صرف تخویف دنیوی دے.

يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ

(او به وائي) اے ډلے د پيريانو او انسانانو ايا نه دي راغلي تاسو ته رسولان

مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ

ستاسو نه چه بيانول ئې په تاسو باندے اياتونه زما او ويره ئې درکوله تاسو ته

لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰٓى

د ملاقات د دے ورځے نه. او به وائي دوي اقرار کوومونږ په

اَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

ځانونو خپلو (چه تبليغ کړے شوے وو مونږ ته) او دهوکه کړے وو دوي لره ژوند دنيوي

وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

او اقرار به اوکړي په ځانونو خپلو باندے چه يقينًا دوي کافران وو.

۱۳۰ دا هم ېره اخروی ده او پيريانو کښ د ادم عليه السلام نه بعد او د محمد صلى الله عليه وسلم نه مخکښ د رسولانو په راتلو کښ د علماؤ اختلاف دے ليکن د حق داعيان پکښ ډير راغلے دي. د اکثر علماؤ قول دا دے چه د ادم عليه السلام نه روستو جناتو کښ پيغمبر نه دے راغلے او د حق داعيان (نذيران) پکښ راغلي دي دا قول ابن جرير او ابن کثير غوره کړے دے په دليل د سورة نساء ۱۶۳ او سورة يوسف ۱۰۹ او سورة فرقان ۲۰ سره. نو مِنْكُمْ خطاب کښ ډير اقوال دي اول دا چه خطاب په اعتبار د مجموعه سره دے تغليب ئې ورکړے دے انس لره په جن باندے دويم دا چه رسل په معنى د نذير سره دے دريم دا چه مخکښ د ادم عليه السلام نه جناتو ته رسولان ليږلے شوي دي نو په خطاب د جناتو کښ لغوي مراد دي. يَقُصُّوْنَ لوئے مقصد د رسولانو اياتونه د توحيد او تذکير د قيامت دے. شَهِدْنَا عَلٰٓى اَنْفُسِنَا دا روستو د گواهئ د اندامونو نه ده.
وَغَرَّتْهُمُ دا علت د تکذيب دے او دا د جانب د الله تعالى نه جمله معترضه ده. اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ اول شهادت د اقرار د رسولانو دے او دويم د کفر کولو دے.

ذٰلِكَ أَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى

دا دَ دے وجے نه چه نه دے ستا رب هلاکوونکے دَ کلو

بِظُلْمٍ وَّأَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ

په سبب دَ ظلم (شرک) کولو دَ هغوی او اوسیدونکی دَ هغے بے خبره وی - او دَ هر یو دَ پاره مختلفے درجے دی

مِّمَّا عَمِلُوْا ط وَمَا رَبُّكَ بِغٰفِلٍ عَمَّا

دَ رجے دَ عملونو دَ هغوی نه - او نه دے رب ستا بے خبره (غافل) دَ هغے نه چه دوی

يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۲﴾ وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ط

ئے عملونه کول - او رب ستا بے حاجته دے خاوند دَ رحمت دے.

إِنْ يَّشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِنْ بَعْدِكُمْ

که او غواړی نو بو به ځی تاسو او نائبان به کړی دوستو ستا سونه

مَّا يَشَآءُ كَمَآ أَنْشَأَكُمْ مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ

هغه څوک چه او غواړی لکه چه پیدا کړی یئ تاسو دَ اولاد دَ قوم

۱۳۱ دا دَ رسول دَ رالیکلو وجه ذکر کوی کوم چه مخکښ آیت کښ ذکر دَ ارسال الرسولن وُ چه کله خلق په شرک کښ اخته وی لیکن رسول ورته نهٔ وی راغلے او بیا دَ توحید او دحق ورته نه وی شوے نو دوی له په دُنیا کښ عذاب نه ورکوی۔ بِظُلْمٍ نه مراد ظلم دَ خلقو دے په کفر و شرک او بد عملو سره لیکن مخکښ دَ ارسال رسول نه عذاب نه ورکوی لکه سورهٔ اسراء ۱۵ کښ دی دویم قول دا دے چه دَ ارسال رسول نه مخکښ عذاب ورکول ظلم دے لیکن اول قول غوره دے ځکه الله تعالیٰ با ندے رسول رالیګل واجب نه دی۔ غٰفِلُوْنَ نه مراد هغه څوک دی چه دعوت کړ رسولانو ورته نه وی رسیدلے۔

۱۳۲ یعنی هر یو دَ پیریانو او انسانانو ته که جنت والا دی او که جهنم والا دی دوی دَ پاره مختلفے مرتبے دی او د هر چا مرتبه دَ هغه دَ عمل مناسب ده که په دنیا کښ وی او که په آخرت کښ وی۔ او اشاره ده چه مدار دَ جزا او سزا په عمل باندے دے۔

اٰخَرِيْنَ ﴿۱۳۳﴾ اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ ۙ وَّمَآ

نور نه . يقيناً هغه چه وعده ئے كيدېشي تاسو سره خامخا راتلونكے ده اوته يئ

اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۱۳۴﴾ قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا

تاسو عاجز كيدونكي . ته ورته اووايه اے قومه عمل كوئ

عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ

پخپله طريقه باندے ، يقيناً زه عمل كوونكے يم (پخپله طريقه) نو زر دے چه

تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ؕ

تاسو ته به معلومه شي ، چه څوک دے چه وي به هغه له ښه انجام دَ كور دَ اٰخرت .

اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ

يقيناً نشي بچكيدے (كاميابيدے) ظالمان . او مقرر وي دوي الله تعالٰى لره

مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا

دَ هغې نه چه پيدا كړيدي دَ فصلونو او څاروو نه برخه

فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ۚ

نو وائي دوي دا برخه دَ الله تعالٰى ده په گمان دَ دوي (بغير دَ مقدار شرعي نه) او دا برخه دَ مدگارو زمونږ ده

۱۳۳ دا بيرة وركول دي نه منونكو ته يعني الله تعالٰى بے حاجته رحم والا دے ليكن غضب والا هم دے كه اوغواړي نو نه منونكي به فنا كړي او نور خلق به دَ دوي په ځائے راولي . اِنْ يَّشَاْ اه دا ذكر دَ ضد دَ څيز دے پس دَ هغه نه يعني دَ رحمت ضد غضب او عذاب دے چه په اَنْ يَّشَاْ اه سره ئے ذكر كوي .

۱۳۴ دا هم بيرة دَ عذاب ده نه منونكو ته . مَا تُوْعَدُوْنَ عام دے عذاب دَ دنيا او بعث بعد الموت دواړو ته شامل دے .

۱۳۵ دا اعلان براءت دے نه منونكو ته او سخته زورنه ده . مَكَانَتِكُمْ مراد دَ دينه تمكن او طاقت دے يا مراد ترينه حال او طريقه ده او دا ښه په سورة هود ۱۲۱ كښې دي . مَنْ موصوله مفعول دَ تعلمون دے . عَاقِبَةُ الدَّارِ عاقبتِ محموده

فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ ج

نو هغه برخه چه وی دَ دوی دَ مندګارانو دَ پاره، پس نه رسی الله تعالیٰ ته

وَمَا كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ط

او هغه برخه چه وی الله تعالیٰ لره نو هغه رسی مندګارانو دَ دوی ته۔

سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾ وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ

بده ده هغه فیصله چه دوی یې کوی۔ او دغسې ښه ولی کړیدی

دَ دارآخرت۔ اِنَّهٗ دا ذکر دَ فیصلې دَ فریقینو دے اجمالًا۔

۱۳۶ دَ دے ایت نه ترنهٔ پورے دویم باب دے په دے کښ رد دے په رسمونو دَ جاهلیت باندے په تحلیل او تحریم کښ اول رد دے په نذر دَ غیرالله باندے بیا رد دے په تحریمات دَ غیرالله باندے بیا عقلی دلیلونه دی درے دَ پاره دَ رد دَ شرک فعلی بیا رد دے په دلیل دَ مشرکانو باندے دا زجر او رد دے په طریقه دَ مشرکانو باندے چه په فصلونو او څاروو کښ دَ الله برخه هم ورکوی او دَ غیرالله په نوم برخه هم ورکوی چه هغې ته اوګے یا درېئ دَ بابا وائي په دے زمانه کښ بخاری دَ ابن عباس رضی الله عنهما په روایت سره وئیلي دی چه که ته غواړے چه جهل دَ عربو اوپيژنے نو سورة انعام دَ یوسل دیرش ایت نه په اخوا اولوله۔ لِلّٰهِ معلومه شوه چه دوی دَ الله تعالیٰ په نوم صدقه خیرات زکوٰة ورکوؤ۔ بِزَعْمِهِمْ په دے کښ اشاره ده چه حصه دَ الله تعالیٰ کښ دوی دَ قدر شرعی لحاظ نه کوؤ پخپل خیال سره به یې حصه جوړوله۔ او حصه دَ شرکاؤ الله تعالیٰ ته نه رسی دَ دے یو مطلب دا دے چه نذر دَ غیرالله عامو مسکینانو ته نه ورکوی دویم مطلب دا دے چه نذر دَ غیرالله څه دانے وغیره به دَ هغې مال سره شریک شی کوم چه دَ الله په نوم وی نو زرېئ ترینه جدا کړی دریم دا چه کوم څیز دَ غیرالله نذروی نو په هغې دَ الله تعالیٰ نوم نه یادوی څلورم دا چه په کوم مصرف کښ زکوٰة یا صدقه خرچ کوی او هغه به کمه شوه نو دَ نذر دَ غیرالله نه یې نه پوره کوی او بله طریقه دا ده چه کوم څاروے چه ذبح به یې دَ الله تعالیٰ په نوم کوله نو دَ غیرالله نوم به یې ورسره ضرور ذکر کوؤ او کوم چه دَ غیرالله په نوم وؤ نو دَ الله تعالیٰ نوم به یې په هغې باندے

لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ

ډېرو مشرکانو ته وژل د بچو خپلو

شُرَكَآؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ

(محبت) د شریکانو د دوی دے د پاره چه هلاک کړی دوی او ګډ وډ کړی په دوی باندے

دِينَهُمْ ۖ وَلَوْ شَآءَ اللَّهُ مَا فَعَلُوهُ فَذَرْهُمْ

دین د دوی۔ او که غوختے الله تعالیٰ نه به وے کړے دوی دا کار، نو پرېږده دوی

وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿۱۳۷﴾ وَقَالُوا هَٰذِهِ أَنْعَامٌ

سره د هغے چه څه دروغ جوړوی۔ او دوی وائی دا څاروی

وَحَرْثٌ حِجْرٌ لَّا يَطْعَمُهَآ إِلَّا مَن نَّشَآءُ

او فصل منع دے نه به خوری دا مګر هغه څوک چه مونږه غواړو

بِزَعْمِهِمْ وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا وَأَنْعَامٌ

په ګمان د دوی کښ او څاروی چه حرام شوی دی شاګانے د هغوی (د پاره د سورلۍ) او څاروی

نه ذکر کوؤ دلته ابن کثیر ذکر کړیدی۔ او حصه د الله تعالیٰ شرکاؤ ته رسی د دے هم دغه څلور مقصدونه دی خو په عکس سره۔

۱۳۷ دا هم رد دے په نذر د غیر الله باندے چه اولاد د غیر الله په نوم منخته کوی او منجورانو او ملنګانو ته ئے بخی (دا قتل حکمی دے) او کله د غیر الله په نوم اولاد هم ذبحه کوی دا په شیعه ګانو او هندوانو کښ شته۔ او د باباګانو په نوم خپلے لونړه د هغوی منجورانو او نوسو ته بخی او په نکاح ئے ورکوی دا شرک دے او دا نکاح فاسد دے۔ شُرَكَآءُ مراد د دے نه محبت د معبودانو باطلو دے یا مراد د دے نه منجوران او پیران وی۔ په قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ کښ لونړه یا ځامن ژوندی ښخول هم داخل دی۔ لِيُرْدُوهُمْ اشاره ده چه نذر د غیر الله سبب د اور د جهنم دے۔ دِينَهُمْ مراد د دین نه دین اسلام دے چه خلق پیدا شوے دی په هغے باندے یا مراد د دے نه دین د ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام دے چه مشرکین عرب د هغے دعویٰ کوله۔ وَلَوْ شَآءَ اللَّهُ مفعول پټ دے یعنی (د بند کول د خلقو د شرک کولو نه)

لَا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ؕ

چه نه یادوی نوم د الله تعالیٰ دوی په هغې باندې (رواځي)، دروغ جوړوي په الله تعالیٰ باندې

سَيَجْزِيْهِمْ بِمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿١٣٨﴾ وَقَالُوْا

زر دے سزا به ورکړي دوی ته په سبب د هغې چه دوی څه دروغ جوړوي۔ او دوی وائي

مَا فِيْ بُطُوْنِ هٰذِهِ الْاَنْعَامِ خَالِصَةٌ

هغه څه چه په ګیډو د دے څاروو کښ دي (بچي او پئي) خالص دي

لِّذُكُوْرِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلٰۤى اَزْوَاجِنَا ۚ وَاِنْ يَّكُنْ

نارینو زموږ لره او حرام دي په ښځو زموږ باندے۔ او که دي

مَّيْتَةً فَهُمْ فِيْهِ شُرَكَآءُ ؕ سَيَجْزِيْهِمْ

مردار بچے نو دوی په هغې کښ برابر شریک دي۔ زر دے سزا به ورکړي دوی ته

۱۳۸ دا رد دے په تحریما تو د غیر الله باندے او د هغې درے قسمه ئې ذکر کړه۔

اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ مراد د دے نه منجوران دي۔ هٰذِهٖ مراد هغه دي کوم چه په ۱۳۶ کښ ذکر شول" هذا لشركائنا "یا نور هغه څاروی او فصلونه چه دوی ئې تعیین اوکړي۔

حِجْرٌ په دے لفظ کښ مذکر او مؤنث مفرد او جمع یو شان دي۔

حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا سورلی کول او بار راوړل په هغې باندے منع کړے دي هغه بحیرے سائبے او حام دي۔

لَا يَذْكُرُوْنَ اه بلکه نوم د غیر الله په وخت د ذبح کښ ذکر کوي یا مراد د ذکر الله نه د دین د کارونو د پاره استعمالول دي۔

افْتِرَآءً دا د درے واړو قسمونو سره متعلق دے یعني الله تعالیٰ ته په دروغه سره نسبت کوي۔

وَصْفَهُمْ ؕ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۳۹﴾ قَدْ خَسِرَ

دَ غلط بیان دَ دوی. یقیناً هغه حکمتونو والا دے پوهه دے په هرڅه. یقیناً تاوانیان دی

الَّذِيْنَ قَتَلُوْٓا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًاۢ بِغَيْرِ

هغه کسان چه وژلی دی بچی خپل په کم عقلتیا بغیر دَ (پوهے)

عِلْمٍ وَّحَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً

دلیل نه او حرام کړیدی هغه څه چه ورکړیدی (حلال کړیدی) الله تعالی دوی ته، دَوجے دَ دروغ جوړولو نه

عَلَى اللّٰهِ ؕ قَدْ ضَلُّوْا وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۴۰﴾

په الله تعالی باندے. یقیناً دوی گمراه دی او نه دی دوی هدایت والا.

۱۳۹ دا هم رد دے په تحریم دَ غیر الله باندے یعنی دَ بعض څاروؤ بچی به ژوندی پیدا شول نو هغه به یئے په زنانو حرام گنړل چه په دے سره زنانو ته ضرر رسی او که مړ به پیدا شو نو بیا به پکښ هغوی له برخه ورکوله.
مَا فِیْ بُطُوْنِ عام دے بچو او ہیؤ ته په دے شرط سره چه ژوندے به پیدا شو. خَالِصَةٌ وَمُحَرَّمٌ تا دَ تانیث دَ پاره نه ده دَ مبالغے دَ پاره ده دَ دے وجے نه محرم مذکر ذکر کړے دے بنا په اصل باندے نو خَالِصَةٌ په معنیٰ دَ حلال دے سره دَ خصوصیت نه. وَصْفَهُمْ وصف په معنی دَ بیان کولو دے او جزاء لفظ پټ مراد دے او دَ وصفهم تفصیل په سورة نحل ۱۱۶ کښ شته.
هر کله چه په دے آیت کښ ذکر دَ فروعو دَ څاروؤ دے نو دَ هغے سره لفظ دَ وصف مناسب دے او په تیر شوی آیت کښ ذکر دَ ذوا تو دَ انعامو دے نو دَ هغے سره لفظ دَ افتراء ذکر کړے دے.
۱۴۰ دا آیت دَ نذر دَ غیر الله او تحریم دَ غیر الله دواړو سره متعلق دے او دَ هغے درے وجوه یئے ذکر کړے دی. سفه، غیر علم او افتراء او په هغے یئے درے حکمونه مرتب کړیدی. خسران، ضلال او عدم اهتداء خسران خو ځکه دے چه اولاد نعمت عظیمه دے او په قتل دَ هغے سره لوئے نقصان حاصلیږی هم دَ دنیا او هم دَ آخرت او ضلال ځکه دے چه بے دلیله او بے علمه کار یئے کړیدے. او عدم اهتداء ځکه ده چه افتراء ده په الله تعالی باندے.

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَيْرَ

او الله تعالىٰ هغه ذات دے چه پیدا کړیدی باغونه سفرونو والا او بے دَ

مَعْرُوْشٰتٍ وَّالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا

سفرونو نه او کجورے او فصل چه مختلف دی

اُكُلُهٗ وَالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا

میوے دَ هغے او خوته او انار چه یو شان دی (په پاڼو کښې)

وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۭ كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ

او نه دی یو شان (په میوه کښې) خورئ دَ میوو دَ هغے نه کله چه میوه اوکړی

وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ڮ وَلَا تُسْرِفُوْا ۭ

او ورکوئ حق دَ الله تعالیٰ په ورځ دَ شوکولو دَ هغے کښې او اسراف (زیاتے) مه کوئ۔

اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۱۴۱﴾ وَمِنَ الْاَنْعَامِ

یقینًا الله تعالیٰ نه خوښوی زیاتے کوونکی (مشرکان)۔ او پیدا کړیی دَ څاروو نه

۱۴۱ دا دلیل عقلی دے دَ پاره دَ رد دَ شرک فعلی او دا شرک په فصلونو او څاروو کښې اکثر وی نو دلیلونه هم دَ دے دواړو قسمونو سره متعلق ذکر کوی مَعْرُوْشٰتٍ هغه چه غوړیدلے دی په مخ دَ زمکه لکه خټکے خربوزه وغیره یا دَ انګور بعض قسمونه وغیره۔ غَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ چه پخپله پنړائ بانده ولاړ وی دا خوډیر قسمونه دی۔ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ ضمیر راجع دے صرف زرع ته یا راجع دے نخل او زرع ته په تاویل دَ كُلَّ واحدٍ منهما سره۔ وَالزَّيْتُوْنَ دَ دینه تیل راوځی۔ وَالرُّمَّانَ دا دَ دوائی دَ پاره اکثر استعمالیږی۔ مُتَشَابِهًا اه حال دے دَ زیتون او رمان نه یا حال دے دَ ټولونه او مراد دا چه دَ یو جنس او نه او بوټی وی لکه کجوره او په میوو کښې اختلاف وی همدا سے په فصل وغیره کښې۔ كُلُوْا مراد دَ دے نه اباحت دَ اکل دے یعنی حرام ئے مه ګڼړئ۔

ثَمَرِهٖ ضمیر په تاویل دَ مذکور او کل واحد سره راجع دے۔

اٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ورکوئ حق دَ الله خاص په ورځ دَ لوکولو کښې او دَ

حَمُولَةً وَّفَرْشًا ؕ كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ

بار اوړونکي اوچيت (پست) قدوالا۔ خورئ دَ هغې نه چه حلال کړيدي تاسو لره الله تعالى

وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ

او تابعداري مه کوئ دَ قدمونو دَ شيطان۔ يقيناً دے تاسو لره

عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۴۲﴾ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ

دشمن ښکاره دے۔ (پيدا کړيدي) اته جوړئ، دَ ګډو نه

اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ؕ قُلْ

دوه او دَ بيزو (چيلو) نه دوه۔ ته اووايه

ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ

آيا دا دوه نران (ګډاو بيس) حرام کړيدي الله تعالى يا دوه مادے (ګډه او بيزه)

اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ

او که هغه شے چه مشتمل دي په هغې باندے رحمونه (زيږي دانئ) دَ مادګانو۔

لوګولو قيدا کښې اشاره ده چه هغه فصل اوميوه چه په لاس حاصل شي اوڅکښې هلاک شوے نه وي نو په هغې کښې حق دَ الله تعالى واجب کيږي۔

وَلَا تُسْرِفُوْا اسراف نه مراد شرک دے يعني دا فصلونه اوميوے په نذر دَ غيرالله سره مه ورکوئ او تحريم پکښې دَځان نه مکوئ ابن جرير دَ اياس نه نقل کړيدے هرهغه چه مخالف وي دَ امردَ الله تعالى نه نوهغه مسرف دے

سځ۱۴۲ دا بل دليل عقلي دے دَ پاره دَ رد دَ شرک فعلي او انشاء لفظ پټ دے حَمُوْلَةً هغه څاروي چه بار ورباندے اچولے کيږي او دَ زمکے نه اوچت وي اوښان اسونه خچر اوخره وغيره۔ اوفَرْشًا ګډے بيزے چه بار نشي اوړلے او زمکے ته نزدے وي يا دَ هغې دَ څرمنونه فراش نه جوړيږي۔ كُلُوْا دا مطلب دے چه دَځان نه تحريم مکوئ ۔ وَلَا تَتَّبِعُوْا دا مطلب دے چه دَ غير الله په نوم يې مه نذر کوئ۔

نَبِّـُٔوْنِیْ بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۱۴۳﴾

خبر کړئ ما ته په دلیل سره که تاسو رښتینی یئ۔

وَمِنَ الْاِبِلِ اثْنَیْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَیْنِ ؕ

او د اوښانو نه دوه او د غوایانو نه دوه۔

قُلْ ءٰٓالذَّكَرَیْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَیَیْنِ

ته ورته اووایه ! آیا دوه نران (اوښ او غویی) حرام کړیدی الله تعالیٰ یا دوه مادے (اوښه غوا)

اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَیْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَیَیْنِ ؕ

یا هغه شے چه مشتمل دی په هغے باندے بچی دانئ د ماینو۔

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ وَصّٰىكُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا ۚ

یا وئ تاسو حاضر کله چه حکم درکوو تاسو ته الله تعالیٰ په دے سره

۱۴۳ دا بل دلیل عقلی دے ثَمٰنِیَةَ بدل دے د حمولة وفرشًا نه او تفصیل په طریقه د لف نشر غیر مرتب سره دے۔ اَزْوَاجٍ جمع د زوج ده هر هغه څیز چه د هغه سره د هغه د جنس نه مذکرے وی نو زوج یو ته هم وئیلے شی دلته دا معنی مراد ده۔ او د دے سره طلب د دلیل دے د مشرکانو نه حاصل یې دا دے چه تاسو چه دا بعضِ څاروی په ځان باندے حرام کړیٔ آیا د دے حرمت سبب د ذکورت (نارینه والے) دے او که انوثت (زنانه والے) دے او که په رحم د مورکښ زیګیدل دی۔ نو که اول سبب وی نو بیا ټول نارینه څاروی حرام شول او که دویم سبب وی نو بیا ټول مؤنث څاروی حرام شول او که دریم سبب وی نو بیا خو ټول څاروی نر او ماده حرام شول نو تاسو پکښ فرق ولے کوئ چه بعضِ حرام کړئ او بعضِ حلال۔ دا طلب د دلیل عقلی وو لیکن هغه د دوی سره نیشته۔ نَبِّـُٔوْنِیْ بِعِلْمٍ دا طلب د دلیل نقلی دے ځکه مراد د علم نه هغه حکم دے چه معلوم وی په وحی سره د طرف د الله تعالیٰ نه دا معنی د علم ده په شرع کښ۔

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا

نو څوک ډیر لوئے ظالم دے د هغه چانه چه جوړه وی په الله تعالیٰ باندے دروغ

لِّيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

دے د پاره چه گمراه کړی خلقو لره بے د علم نه۔ یقینًا الله تعالیٰ

لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۴﴾ قُلْ لَّآ

توفیق نه ورکوی قوم ظالمانو (عنادیانو) ته۔ ته اووایه نه

اَجِدُ فِىْ مَآ اُوْحِىَ اِلَىَّ مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ

مومم څۀ په هغه وحی کښ چه شوے ده ما ته حرام کړے شوے د هغه نه چه تاسو ئے حرام کړی) په خوړونکی

يَّطْعَمُهٗۤ اِلَّآ اَنْ يَّكُوْنَ مَيْتَةً اَوْ دَمًا

چه خوری هغے لره مګر چه وی مرداره یا وینه

مَّسْفُوْحًا اَوْ لَحْمَ خِنْزِيْرٍ فَاِنَّهٗ رِجْسٌ

بهه وله شوے یا غوښه د خنزیر نو یقینًا دا پلیت دی

اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ

یا وی (بوخیز) وتونکے د ایمان نه چه آواز شوے وی د ذبح د غیر الله په هغے باندے، پس څوک چه ناچاره شو

سُـ۱۴۵ دا ایت هم د مخکښ ایت پشان دے اول طلب د دلیل عقلی بیا په دے لفظ اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ سره طلب د دلیل نقلی دے یعنی که الله تعالیٰ تاسو ته حکم کړے وی او تاسو حاضر وئ اوریدلے وی تاسو؟۔

فَمَنْ اَظْلَمُ سره زورنه ده هغه مشرک ته چه نور خلق هم شرک ته رابلی لکه عمرو بن لحی بن قمعه خزاعی چه عربو ته اول دۀ شرک راوړے وو او شر بینی وئیلے دی په دے وعید کښ هر هغه څوک داخل دے چه په دین د الله تعالیٰ کښ هغه څیز داخل کړی کوم چه د هغے نه نه وی او الظّٰلِمِيْنَ نه همدا غه کسان مراد دی۔

غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ

نه وو زیاتے کوونکے په یل باندے او نه وو دیره خوړونکے، نو یقیناً رب ستا .بخښنه کوونکے

رَّحِيْمٌ ﴿۱۴۵﴾ وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا

رحم کوونکے دے. او په هغه کسانو چه یهودیان دی حرام کړی دی مونږه

كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ ج وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ

هر یو نوکو والا ځناور (اوښ، شترمرغ او بطخ) او د غواګانو او د ګډو بیزو نه

حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُوْمَهُمَآ اِلَّا مَا حَمَلَتْ

حرام کړی وو مونږ په دوی باندے وازګے د هغوی مګر هغه چه پورته کړی وی

ظُهُوْرُهُمَآ اَوِ الْحَوَايَآ اَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ط

شاګانو د هغوی یا کولمو یا هغه چه یو ځای وی د اډوکی سره.

۱۴۵ دا هم رد دے په تحریمات د غیرالله باندے په دلیل د وحی سره روستو د دلیل عقلی نه چه ځکښې معلومه شوه چه د مشرکانو د تحریم دلیل عقلی او نقلی نیشته نو اوس فرمائی چه د الله تعالیٰ په وحی کښې هم نیشته. مُحَرَّمًا ابن کثیر ویلی دی چه مراد هغه دی چه مشرکانو په ځان باندے حرام کړے وی. اِلَّآ اَنْ يَّكُوْنَ په دے کښې مقصد حصرِ اضافی دے حقیقی نه دے ځکه چه حرام مطعومات د دے نه علاوه نور هم شته نو مطلب دا شو چه ستاسو د غه حرام کړے شوی د حرام خو دا اشیاء دی نو دا ولے په ځان حلال ګنړئ. د دے څلورو ذکر د دے وجے نه شوے دے چه دا محرّمات دی په ټولو سماوی دینونو کښې د خوراک د څیزونو نه او د دے تفصیل او ذکر په سورۃ بقرۃ ۱۷۳ مائدہ ۳ نحل ۱۱۵ کښې هم دے. مَسْفُوْحًا په دے سره د منجمد وینے نه احتراز او شو لکه ینه او طحال (ایینه، زړه، سږے وغیره) او دا رنګ هغه وینه چه روستو د بهیدلو نه په غوښه پورے اَنختلے وی دا ابن کثیر ذکر کړیده. فَاِنَّهٗ رِجْسٌ دا ضمیر خنزیر ته راجع دے نو معلومه شوه چه ذات د خنزیر پلیت دے اګر چه ژوندے وی او دا نکته شربینی او بقاعی لیکلے ده. اَوْ فِسْقًا په تقدیر د شیئًا ذا فسق او مراد د فسق نه فسقِ اعتقادی دے او د فسق ذکر ئے په سورۃ مائدہ ۳ کښې هم کړیدے یا فِسْقًا مفعول له دے د پاره د اهل.

ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِبَغْيِهِمْ وَإِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۱۴۶﴾

دا بدله (سزا) ورکړې موږ دوی ته په سبب د ظلم د دوی او یقیناً موږ خامخا رشتینی یو۔

فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُوْ رَحْمَةٍ

پس که دوی دروغژن واېي تاته نو ووایه چه رب ستاسو خاوند د رحمت دے

وَّاسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَاْسُهٗ عَنِ الْقَوْمِ

فراخه او نه شي واپس کیدے عذاب د هغه د قوم

الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۴۷﴾ سَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا

مجرمانو نه ۔ خامخا وائي مشرکان

۱۴۶ دا جواب دے د یو سوال چه اوبښ او وازدے هم الله تعالیٰ حرام کړی دی نو تاسو ولے حلال ګنړئ جواب دا دے چه دا خو صرف په یهودیانو باندے د هغوی د ظلم د وجے نه الله تعالیٰ حرام کړیدی په بل چا باندے نه دی حرام شوی. د یهودیانو څه مظالم په سورة نساء ۱۶۰ کښ ذکر کړے شوے وو بیا هم د هغوی ظلم دا وو چه د وازدو نه به یے وړل (غوړی) جوړول او هغه به یے خرڅول او هغه قیمت د هغے به یے حلال ګنړلو رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د دوی پشان حیلے مکوئ چه د الله تعالیٰ حرام په ځان باندے په حیلو سره حلالوئ او دا مرض په دے اُمت کښ ډیر شوے دے۔ "اللهم واعف عنا واغفرلنا وارحمنا" لَصٰدِقُوْنَ په دے کښ اشاره ده چه یهودو وئیل چه د اوبښ غوښه په دین ابراهیم کښ حرام وه نو دا دروغ وائي۔

۱۴۷ په دے ایت کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته چه که دوی ستا تکذیب کوی نو صبر کوه اګرچه الله تعالیٰ فراخ رحمت والا دے چه عذاب روستو کوی په مهلت ورکولو سره یا په مؤمنانو باندے لیکن قهر و غضب والا هم دے په مجرمانو باندے۔ وَلَا يُرَدُّ الخ دا عطف د ضد دے په بل ضد باندے۔

لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَآ اَشْرَكْنَا وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا

که غوښتے الله تعالیٰ نو شرک به نه وے کړے مونږه او نه پلارانو زمونږ او نه به حرام کړے وے مونږه

مِنْ شَيْءٍ ؕ كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ

هیڅ څیز۔ دغسے نسبت د دروغو کړے وو (توحید ته) هغه کسانو چه

قَبْلِهِمْ حَتّٰى ذَاقُوْا بَاْسَنَا ؕ قُلْ هَلْ

مخکښ د دوی نه وو تر دے چه اوڅکو دوی عذاب زمونږ۔ ته ورته اووایه آیا

عِنْدَكُمْ مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوْهُ لَنَا ؕ

تاسو سره څه دلیل (علم) شته؟ نو راښکاره یې کړئ مونږ ته۔

اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ اَنْتُمْ اِلَّا

نه کوئ تابعداری تاسو مګر د ګمان او نه یئ تاسو مګر

تَخْرُصُوْنَ ﴿۱۴۸﴾ قُلْ فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ۚ

په توک (اټکل) کاروونه کوئ۔ ته اووایه! پس خاص الله تعالیٰ لره دلیل پوره دے،

۱۴۸ دا رد دے په دلیل د مشرکانو باندے. هغوی وئیل چه مونږ شرک اعتقادی یا شرک عملی چه کوو نو په دے الله تعالیٰ خوښ (رضا) دے ځکه چه هر څه د هغه په خوښے سره دی دا د دوی عقیده وه چه کل شيءٍ بمشية الله" یا یئے دا الزامًا وئیل مؤمنانو ته چه تاسو وایئ چه هر څه د الله تعالیٰ په مشیت سره دی. اول جواب دا دے كَذٰلِكَ كَذَّبَ، الاية يعني که په دے الله تعالیٰ رضا وے نو مخکښ تکذیب کوونکو ته یئے عذاب ولے ورکړے دے۔
دویم جواب په قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ اه چه دلیل یقینی په دے باندے پیش کړئ او هغه نیشته دوی سره. دریم جواب په دے قول سره اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اه چه دا د دوی د ګمان او د توک خبرے دی او هغه خوښه دلیل نه دے دا سے آیت په سورة نحل ۳۵ او سورة زخرف ۲۰ کښ هم دے. سَيَقُوْلُ دا پیشګوئي ده او سین د پاره د استقبال دے او وقوع د هغے په سورة نحل او زخرف کښ ذکر ده یا سین د پاره د تاکید دے كَذَّبَ اه نسبت د تکذیب په نورو احکامو شرعیو کښ مراد دے یا دا چه لَوْ شَآءَ اه مشرکانو په طریقه د تکذیب سره وئیلے دی۔

فَلَوْ شَآءَ لَهَدٰىكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۴۹﴾ قُلْ هَلُمَّ

پس که خوښه د الله تعالیٰ خامخا هدایت به یې کړی وی تاسو ټولو ته. ته ورته اووایه! راولئ

شُهَدَآءَكُمُ الَّذِيْنَ يَشْهَدُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ

علماء خپل هغه کسان چه بیان کړی چه بیشکه الله تعالیٰ

حَرَّمَ هٰذَا ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَلَا تَشْهَدْ

حرام کړیدی دا نو که دوی بیان اوکړو (بے دلیله) نو ته ملګرتیا مه کوه

مَعَهُمْ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

د دوی سره، او مه تابع کیږه د خواهشاتو د هغه کسانو چه دروغژن ګڼړی

بِاٰيٰتِنَا وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ

آیاتونه زمونږه او هغه کسان چه ایمان نه لری په آخرت باندے

وَهُمْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۵۰﴾ قُلْ تَعَالَوْا

او دوی د خپل رب سره نور خلق برابر ګڼړی. ته ورته اووایه! راشئ

ف۱۴۹ دا بیان د دلیل یقینی دے په توحید باندے چه هغه کتابونه نازلول او رسولان رالیګل دی الْبَالِغَةُ چه د صدق او عربئ او فصاحت بلاغت انتهاء ته رسیدلے وی. د ربیع بن انس نه روایت دے چه هغه چا سره رښتیا نافرمانئ د الله تعالیٰ او شرک کوی) هیڅ حجت نیشته په الله تعالیٰ باندے بلکه الله تعالیٰ حجتِ بالغه دے په بندګانو باندے. لیکن هدایت په اختیار د الله تعالیٰ کښ دے.

ف۱۵۰ دا طلب د دلیل دے د دوی د علماؤ نه. هٰذَا په دیکښ اشاره ده هغه ته چه ذکر دی په ف۱۳۸ ف۱۳۹ کښ. اَلَّذِيْنَ كَذَّبُوْا دا درے اصول د کفر دی تکذیب د آیاتونو انکار د قیامت او شرک کول او د دوی دین په خواهشاتو باندے بنا وی. فَاِنْ شَهِدُوْا نه مراد دا دے که دوی بیان د دے د ځانه بے دلیله اوکړی نو ته ورسره ملګرتیا مکوه ځکه چه د خواهشاتو تعبداری کول منع دی.

أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلَّا تُشْرِكُوا

چه بیان کړم هغه شے چه حرام کړیدے رب ستاسو په تاسو باندے چه شریک مه کړئ

بِهِ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا ۚ وَلَا

دَ هغه سره هیڅ شے او دَ مور او پلار سره نیکی کوئ او مه

تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ ۖ نَّحْنُ

وژنئ بچی خپل دَ وجے دَ لوږے نه ـ موږ

نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ ۖ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ

رزق درکوو تاسو ته او دوی ته او مه نیږدے کیږئ بدو کارونو ته

مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۖ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ

هغه چه ښکاره وی دَ دینه او هغه چه پټ وی ۰ او مه وژنئ نفس

الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم

هغه چه حرام کړیدے الله تعالیٰ مګر په حق (جرم شرعی) سره ـ دا یو حکم درکوی تاسو ته

بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١٥١﴾ وَلَا تَقْرَبُوا

په دے سره دے دَ پاره چه دَ عقل نه کار واخلئ ـ او مه نیږدے کیږئ

۱۵۱ دَ دے ایت نه تر اخره پورے دریم باب دے دَ دے حصے نه په دے کښ ذکر دَ شپږ حرامو او پنځه حکمونه دے (چه دَ هغے نه خلاف کول حرام دی)۔ بیا دلیل نقلی دَ کتاب دَ موسیٰ علیه السلام نه بیا ترغیب قرآن ته دَ پاره دَ دفع کولو دَ عذرونو بیا تخویف دنیوی دے او زور ته مخالف ته او آخر کښ بیان دَ پیغمبر دے په رد دَ شرک کښ او اختتام په ترغیب سره دے قُلْ تَعَالَوْا یعنی دے خلقو ته او وایه چه تاسو کوم څیزونه په ځان حرام کړے دی هغه حرام نه دی بلکه دوی ته دَ الله تعالیٰ محرمات بیان کړئ او قرطبی وئیلے دی چه په ټولو علماؤ باندے دَ دے محرماتو بیان کول لازم دی او تَعَالَوْا کښ اشاره ده چه دا منل سبب دَ علو او دَ رفع دے او ابن ابی حاتم مرفوع روایت ذکر کړیدے

مَالَ الْيَتِيْمِ إِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ أَحْسَنُ حَتّٰى

مال دَ يتيم ته مګر په هغه طريقه چه هغه ښائسته وي (او ساتنه كوئ دَ يتيم دَ مال) تر هغه پورې

يَبْلُغَ أَشُدَّهٗ وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ

چه اورسي دوي ځوانئ خپلې ته او پوره كوئ پيمانه او تله (تول كول) كوئ

چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په دے درے ايا تونو باندے دَ صحابو نه بيعت اخستلو. مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ په دے كښې كوم ځكه چه اوامر ذكر شويدي نو دَ هغې نه خلاف كول حرام دي دَ حَرَّمَ دَ لاندے هغه يئے ذكر كړي بيا دا كاروته كوم چه په دے ايت كښې ذكر شوے دي په دے باندے ټول عقل والا پوهيږي چه دا قبيح دي ليكن مخالفت كوونكو دَ عقل نه خلاف كړے دے او ديته به كاروته وائي نو ځكه الله تعالى اوفرمائيل لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ. وَلَا تَقْتُلُوْا دا قتل درے قسمه دے اول قتل حقيقي لكه چه مشركانو دَ جاهليت كښې طريقه ده دويم قتل په طريقه دَ اسقاط حمل او ضبط توليد او منصوبه بندي. دريم قتل حكمي يعني دَ دين دَ علم نه محرومه كول او دَ دنيا په علمونو او كارونو كښې مشغوله كول دَ پاره دَ رزق ګټلو او په دے ايت كښې منع ده دَ غريبانو خلقو چه دَ خپلے روزئ دَ غم دَ وجے نه يئے بچي قتل كول او سورة بنى اسرائيل ۳۱ كښې منع ده دَ مالدارو خلقو چه بچي يئے دَ دے وجے نه وژل چه دوي په روزي دَ كوم ځائے نه خوري دَ دے وجے نه دلته مِنْ إِمْلَاقٍ وئيلے دے چه فقر فى الحال موجود وي او سورة اسراء كښې خشيت املاق وئيلے دے چه مالداروي خو دَ فقيرئ دَ راتللو نه يره كوي او هر كله چه دَ فقيرئ په وخت انسان اول دَ ځان فكر كوي نو اول يئے دَ پلارانو ذكر اوكړو په نَرْزُقُكُمْ سره او دَ مالدارئ په وخت كښې دَ اولاد ذكر كوي نو هلته ئے هُمْ مخكښې راوړے دے. حَرَّمَ سوال: دَ دے نه روستو څه منهيا ت او څه مامورات ذكر دي نو مامورات دَ حَرَّمَ دَ لاندے څنګه داخليږي او منهيات دَ نهي كلاندے داخل دي او نهي خو مفعول دَ حرّم دَ پاره نشي كيدے؟. جواب اول: أَلَّا تُشْرِكُوْا ئه نه مخكښې هو پټ دے راجع دے مَا حَرَّمَ ته ليكن دَ ما مورا تو دَ حرّم دَ لاندے داخليدلو كښې اشكال باقي دے. جواب دويم: عليكم اسم فعل دے يعني لازم دي په تاسو باندے أَلَّا تُشْرِكُوْا شرك نه كول. او مامورات خو هم لازم دي او دَ حرم سره بل فعل (اوجب) پټ مراد دے. جواب دريم: دا دے چه حرم

بِالْقِسْطِ ۚ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۚ

په انصاف سره ، تکلیف نه ورکوو مونږ هیڅ یو تن ته مګر په قدار د وس د هغه

وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ۖ

او کله چه وینا کوئ نو انصاف کوئ اګر که وی (وینا کړیشوی) خپلوان ستاسو

وَبِعَهْدِ اللَّهِ أَوْفُوا ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ

او لوظ د الله تعالیٰ پوره کوئ ۔ دا حکم درکوی تاسو ته پری سره

لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٢﴾ وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي

دے د پاره چه یاد اوساتئ ۔ او (پوه شئ) چه دا قرآن لار زما ده

مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ

برابر نو تابعداری کوئ د دے او مه تابع کیږئ د نورو لارو

په معنی د فرض او واجب سره دے او مفعول پټ دے عمل کول په دے ماموراتو اومنهیاتو باندے۔ جواب څلورم: حرّمَ په خپله معنی دے مفعول پټ د (مخالفته) او الا تشرکوا نه مخکښی هو پټ دے۔ وَبِالْوَالِدَيْنِ دلته نهی (لا تسیئوا) ذکر نه کړه اشاره ده چه حق د والدینو صرف ترک اساءت نه دے بلکه احسان ورسره لازم دے۔ الْفَوَاحِشَ هغه ګناهونه چه د بے حیائۍ سره تعلق لری او عقل ئے بدا ګڼړی۔ بِالْحَقِّ مرتدا کیدال او قصاص او زنا روستو د واده نه په دے سره قتل جائز کیږی۔ وَصّٰكُمْ وصیت د الله تعالیٰ تاکیدی حکم وی چه نه منسوخ کیږی۔

۱۵۲ دا کارونه مشرکانو هم منل چه دا ښه اخلاق دی لیکن بیا به ئے د هغے خلاف کوؤ نو ځکه ورته اوفرمائیل لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ یعنی د دے کارونو خیال ساتئ مه هیروئ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا دا جمله معترضه ده چه په دے احکامو باندے عمل کول ستاسو د طاقت نه بهر نه دی نو مخالفت ئے مه کوئ یا په دے کښی تسلی ده یعنی خپل وسع صرف کوئ او د وسع نه چه بهر شی نو هغه الله تعالیٰ معاف کوی۔ إِذَا قُلْتُمْ قول عام دے که په فیصله کولو کښی وی یا شهادت یا دعوت او تبلیغ وی۔ فَاعْدِلُوا عدال په معنی د حق او رښتیا وئیلو دے۔

فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهٖ ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ

پس کړو وړ به کړي تاسو د لارې د هغه نه - دا حکم درکوي تاسو ته

بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۵۳﴾ ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى

په دې سره دے د پاره چه متقیان شئ - بیا (دا هم واورئ) چه ورکړې مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته

الْكِتٰبَ تَمَامًا عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ

کتاب (مخکښ د قرآن نه) د پاره د پوره کولو د نعمت په هغه چا چه نیک عمل دے

وَتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى وَّرَحْمَةً

او تفصیل د هر ضروري خبرې (د دین) او هدایت دے او رحمت دے

لَعَلَّهُمْ بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۵۴﴾

د دے د پاره چه دوی په ملاقات د رب خپل ایمان لري -

۱۵۳ دے ایت کښ یو امر او یو نهی ده. صِرَاطِ مُسْتَقِيم نه مراد قرآن (او سنت دے) اَلسُّبُلَ نه مراد هغه ټولے طریقے او نظریئے او مذهبونه دي چه د قرآن او سنت نه خلاف دي یهودیت، نصرانیت، مرزائیت، رافضیت او تمام بدعات رواجونه په دے کښ داخل دي او د قرآن او سنت اتباع سره تقوٰی حاصلیږي ځکه ئے تَتَّقُوْنَ او فرمائیل- او هٰذَا اشاره ده هغه مضمون ته چه ذکر شو پدے سورت کښ یا په قرآن کښ.

۱۵۴ دا دلیل نقلي د کتاب د موسیٰ علیه السلام نه دے چه په هغے کښ هم دا اوامر او نواهي ذکر دي . ثُمَّ د پاره د ترتیب د اخبار دے یعني ثم اخبرکم.
اَلَّذِيْٓ اَحْسَنَ نه مراد په بني اسرائیلو کښ محسنین کسان دي یا موسیٰ علیه السلام مراد دے او دا کتاب تورات د هغوي د پاره پوره حجت وو او په دوی باندے پوره احسان وو د الله تعالیٰ د طرف نه یا مراد د اَلَّذِيْٓ اَحْسَنَ نه هغه طریقه ده چه خائسته وي. تَمَامًا په معنی د تامًا کاملًا دے پوره کتاب په هغه وجه او طریقه سره چه خائسته وي. لَعَلَّهُمْ بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ اشاره ده چه کتاب د الله تعالیٰ سره تعلق ساتل سبب د پوخوالي د ایمان دے په قیامت باندے.

۱۹ ع ۶

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوْهُ

او دا كتاب نازل كړى دى موږ بركت والا دى نو تابعدارى كوئ د دهٔ

وَاتَّقُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۵۵﴾ اَنْ تَقُوْلُوْٓا

او او ويريږئ د دى كړ ياره چه په تاسو رحم او كړيشي - (او دے كړ ياره) چه او نه وايئ

اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ

چه يقينًا نازل كړے شويدى كتابونه په دوو ډلو باندے زموږ نه

قَبْلِنَا ۪ وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴿۱۵۶﴾

مخكښ او يقينًا وو موږ ه د لوستلو د دينه بے خبره -

اَوْ تَقُوْلُوْا لَوْ اَنَّآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ

يا دا او نه وايئ چه كه نازل كړے شوے وے په موږ باندے كتاب

لَكُنَّآ اَهْدٰى مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَآءَكُمْ

خامخا وے به موږ خه لار موندونكى د دوى نه نو يقينًا راغلے دے تاسو ته

بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ ۚ

واضح بيان د طرف د رب ستاسو نه او هدايت او رحمت

۱۵۵ دا ترغيب دے قرآن ته په ذكر د دوه صفاتو د كتاب او دوه اوامر او يو حكمت - مُبٰرَكٌ د دے سورت ۹۲ كښ د هغے تشريح ده - وَاتَّقُوْا ځان بچ كړئ د مخالفت د كتاب الله نه -

۱۵۶ دا دفع د اول عذر ده - دوه ډلے يهوديان او نصارىٰ دى چه هغوى ته تورات او انجيل نازل شوے وو او موږ د هغوى د لوستلو نه غافل وو يو دا چه هغه عجمى ژبه وه سريانى يا عبرانى او عرب په هغے باندے نه پوهيدل دويم دا چه هغوى به هغه پټول او بيان به ئے عامو خلقو ته نه كوو -

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

پس څوک ډير لوئے ظالم دے د هغه چا نه چه دروغژن گڼړی اياتونه د الله تعالٰی

وَصَدَفَ عَنْهَا ؕ سَنَجْزِی الَّذِيْنَ يَصْدِفُوْنَ

او مخ گرځوی د هغے نه. زر دے سزا به ورکړو هغه کسانو ته چه مخ گرځوی

عَنْ اٰيٰتِنَا سُوْٓءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا

د اياتونو زمونږ نه بد عذاب په سبب د دے چه

يَصْدِفُوْنَ ﴿۱۵۷﴾ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ

دوی مخ گرځوی. نه کوی انتظار دوی مگر د دے چه

تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَاْتِیَ رَبُّكَ

راشی دوی ته ملائک (د مرگ يا د عذاب) يا راشی رب ستا (د خپل شان مطابق)

اَوْ يَاْتِیَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ ؕ يَوْمَ يَاْتِیْ

يا راشی بعض نښے (د عذاب) د رب ستا. په کومه ورځ چه راشی

بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا

بعض نښے د عذاب د رب ستا نفع به نه ورکوی هيڅ نفس ته ايمان راوړل د هغه

۱۵۶ دا دفع د دويم عذر ده دا ۱۵۵ د سورة فاطر ۴۲ کښ هم دی او تَقُوْلُوْا نه مخکښ کراهية لفظ په نيز د بصريانو او لِئلا په نيز د کوفيانو پټ دے. لَكُنَّآ اَهْدٰی مِنْهُمْ دا دعوٰی د عربو په دے وجے سره ده چه هغوی ځان کښ ډير عقل او تيز ذهن او پوره فکر او اثبات گڼړی. وَرَحْمَةٌ نه روستو کنا بتم جمله پټه ده - وَصَدَفَ عَنْهَا لازمی او متعدی دواړه راتلے شی ليکن ابن کثير دلته متعدی معنٰی غوره کړے ده يعنی (نور خلق منع کوی). او بيا زور نه ده اعراض کوونکو ته د قرآن نه او دا سبب د عذاب دے د دے وجے نه په دے باندے بيا بيا تصريح کړے ده۔

لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِيْٓ

چه نه یې وي راوړے ایمان مخکښ د دیته یا یې نه وي کړے په حال

اِيْمَانِهَا خَيْرًا ؕ قُلِ انْتَظِرُوْٓا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾

د ایمان کښ نیکي - ته ورته اووایه انتظار کوئ موږ هم انتظار کوونکي یو۔

۱۵۸ دا یره د عذاب دنیوی ده تکذیب او اعراض کوونکو د قرآن ته یعنی دوی ته دلیلونه بیان شول او قرآن هم دوی ته راغے لیکن دوی ته منی بلکه انتظار کوی د عذاب او د مرګ چه کله راشي بیا به ایمان راوړی لیکن هغه وخت ایمان نه قبلیږی۔ یَأْتِيَ رَبُّكَ دا د متشابهاتو نه دے په ظاهر باندے موږ ایمان دے بغیر د تاویل او تحریف او بغیر د تمثیل او تشبیه نه او په حقیقت د کیفیت یې الله تعالیٰ پوهیږی۔ بَعْضُ اٰيَاتِ رَبِّكَ د دے نه مراد وخت د غرغرے د زنکدان دے او نمر ختل دے د مغرب طرف نه او په دے دواړو وختونو کښ توبه نه قبلیږی او ایمان راوړل هم نه قبلیږی۔ اَوْ كَسَبَتْ فِيْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا یو معنیٰ دا ده چه فائده به نه ورکوی یو نفس ته عمل د خیر (یعنی توبه کول) چه نه یې وي کړی په حال د ایمان کښ خیر یعنی توبه۔ تقدیر د عبارت به داسے وی "اَوْ نَفْسًا لا ینفعها کسب عمل الخیر لم تکن کسبت فی ایمانها خیرًا" دا ابن کثیر وئیلے دی۔ دویمه معنیٰ دا ده چه فائده نه ورکوی ایمان بالکل کله چه ایمان یې نه وی راوړے مخکښ د دے نه یا ایمان به فائده کامله نه ورکوی کله چه نه وی کړے په حال د ایمان کښ نیک عمل۔ کامله فائده دا ده چه بغیر د عذاب نه جنت ته داخل شي۔ نو په دے توجیه سره په آیت کښ عموم د نفی دے چه عدم د نفعے د پاره مجموعه عدم د امرینو شرط کړے دے او د مفهوم مخالف نه معلومه شوه چه د نفعے د پاره یو د امرینو نه شرط دے په طریقه د منع د خلو۔ او دا دواړه توجیه د پاره د تردید د قول د معتزلو دی هغوی وائي چه دویم جمله نه معلومه شوه چه چا په حال د ایمان کښ عمل د خیر نه وی کړے تو دغه ایمان ورته فائده نه ورکوی یعنی په اور کښ به همیشه وی نو دا دلیل دے چه مرتکب د کبیره ګناه به په اور کښ همیشه وی او دا قول د دوی په نورو دلیلونو شرعیو سره مردود او باطل دے نو د دے آیت چه مخکښ دوه توجیهاتو کښ یوه او کړے شي نو اعتراض د معتزلو نه واردیږی۔

إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ

يقيناً هغه كسان چه ټكړې كړيں ئې دين خپل او دوى ډلې دي مختلفې، نه يې ته

مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ۚ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ

د دوى سره په هيڅ تعلق لرلو كښې. يقيناً معامله د دوى الله تعالىٰ ته سپارلې شوې ده

ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿١٥٩﴾

بيا به خبر وركړى دوى له په هغه كارونو چه دوى ئې كوى.

مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ۖ

چاچه راتلل اوكړه په نيك عمل سره نو ده له لس چنده ثواب د هغې دے

وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَىٰ

او چاچه راتلل اوكړه په بد عمل سره نو سزا به نه وركيږى

۱۵۹ د آيت كښى زورنه ده هغه چاته چه قرآن او سنت ئې پريښود او مختلفې ډلې شوې او په حديث د عائشه رضى الله عنها كښى دى چه دا د دې أمت بدعتيان دى خو كه دے حديث رفع ثابت نه ده (ابن كثير). فَرَّقُوا پخپله معنى دے يعنى دين ئې ټوټې كړے دے او هريو ټوټې ته ئې پوره دين وئيلے دے يا فَرَّقُوا په معنى د فارقوا سره دے لكه چه بل قراءت كښى داسے وارد دى يعنى د دين اسلام نه جدا شوے دى او دا وصف د تفرق او د تفريق په يهودو او نصارىٰ كښى موجود دے لكه چه سورة بينة ۴ او سورة نساء ۱۵۰ كښى دى ليكن حكم د آيت عام دے. او تفرق د عقيدے او د اعمالو اول وى بيا روستو مختلفې ډلے او جماعتونه جوړشى چه د يو بل سره عداوت او دشمنى او تعصب كوى كه دے وجه نه فرقوا پسے وكانوا شيعًا ذكر كړے دے او داسے په سورة روم ۳۲ كښى دى. لَسْتَ مِنْهُمْ يعنى ته د دوى سره په هيڅ حال كښى تعلق نه لرے او ستا نه د دوى په باره كښى هيڅ تپوس نشى كيدلے.

إِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٦٠﴾ قُلْ إِنَّنِي

مګر دَ هغې پشان او په دوی به هيڅ ظلم نه کيږي. ته اووايه يقيناً ځه

هَدٰىنِي رَبِّيٓ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ۚ دِينًا

رسولے یم رب خپل لارے نیغے ته، چه دین

قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرٰهِيمَ حَنِيفًا ۚ وَمَا كَانَ

پوخ دے، ملت دَ ابراهيم (عليه السلام) دے چه کلک وو په توحيد باندے او نه وو دے

مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٦١﴾ قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي

دَ مشرکانو نه. ته اووايه يقيناً مونځ ځما او قربانی (مالی عبادت) ځما

۱۶۰ دا تفصيل دَ جزا اخروی دے يعنی ولوته اعتبار نيشته بلکه اعتبار حسنه اوسيئه ته دے. عَشْرُ اَمْثَالِهَا دا ذکر دَ ادنیٰ ثواب دے او دَ دے نه په بره مقدار معلوم نه دے.

سوال: امثالها جمع دَ مذکرده نو پکار داوو چه عشره په تانيث سره ذکر وے؟

جواب: په دیکښ لفظ حَسَنَاتٍ پټ مراد دے يعنی "عشر حسنات امثالها" يعنی نوه نيکی دا سے دَ لکه چه لس نيکئ اوکړی او دَ هرے نيکئ يو ثواب دے نو لس ثوابونه شول.

حَسَنَةٍ هغه عمل دے چه په عقيده دَ توحيد او په طريقه دَ سنت باندے بناوی او سيئهٔ دَ دے خلاف دے.

۱۶۱ دا بيان تفصيلی دَ نبی صلی الله عليه وسلم دے دا دليل وحی دے او څلورم قسم دے دَ طريقو دَ تعليم چه بيان دَ دين حقه دے. په دے سورت کښ چه بيان اوشو نو دا صراط مستقيم دے. دين قيم دے ملت ابراهيميه دے.

هَدٰىنِي په دے کښ دليلونو نقليو، وحييو او طرق تعليم ته اشاره ده چه په دے سورت کښ تير شويدی. دِينًا قِيَمًا په دے کښ عقلی دليلونو ته اشاره ده.

دِينًا بدل دے دَ محل دَ صراط مستقيم نه يا اتبعت فعل پټ دے. مِلَّةَ دا بدل دے دَ دِينًا نه او دا بيانات دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ پاره دَ اظهار دَ فرق دی په مينځ دَ مؤحدينو او مشرکينو کښ.

وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿۱۶۲﴾

او ژوند زما او مرګ زما خاص الله تعالیٰ لره دي چې رب د ټول عالم دے۔

لَا شَرِيكَ لَهٗ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ

نشته هيڅ برخے والا د هغه او په دے سره حکم کړے شوے دے ماته او زه اول

الْمُسْلِمِينَ ﴿۱۶۳﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِي رَبًّا وَّ

يم د توحيد والو نه. ته ورته اووايه! آيا سيوا د الله تعالیٰ نه زه اولټوم بل رب او

هُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ؕ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ

هغه رب د هر څيز دے. او عمل نه کوي هريو نفس (بد عمل)

اِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۚ ثُمَّ

مګر ضرور به ئے په هغه باندے وي او نشي پورته کولے يو ګنهګار بيټے د بل چا بيا

اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا

ستاسو رب ته ورګرځيدل ستاسو دي نو خبر به درکړي تاسو ته په هغه څه

۱۶۲ دا خلاصه د ملتِ ابراهيميه ده چه عبادات بدنيه او ماليه او ژوند تيرول او مړه کيدل صرف د الله تعالیٰ د پاره دي۔ صَلَاتِيْ عام دے فرض، نفل ته۔ نُسُكِيْ ټولو کارونو د تقرب الٰهي او طاعت ته وئيلے شي (قرطبي)۔ يا صرف ذبح کول (قرباني) او يا صرف طريقے د اداکولو د حج مراد دي۔ وَمَحْيَايَ صرف ژوند تيرول او هغه کارونه چه زه ئے په ژوند کښې کووم۔ مَمَاتِيْ صرف مړکيدل، او هغه حالت چه زه په هغے باندے مړکيږم لکه ايمان او طاعت يا وصيت کول په وخت د مرګ کښې۔

۱۶۳ نفي د شرک اعتقادي او عملي دواړو مراد ده۔ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ هر يو نبي په خپل امت کښې اول مسلم وي او دا لفظ وئيل خصوصيت د رسول الله صلی الله عليه وسلم دے او د امتي د پاره بغير د قران لوستلونه دا کلمه وئيل نيشته بلکه وانا من المسلمين به وائي لکه چه بعضِ روايا تو کښې راغلے دي۔

كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۶۴﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

چه تاسو په هغې کښې اختلاف کوو۔ او خاص الله تعالىٰ هغه ذات دے

جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ

چه اوګرځولئ يې تاسو اباد (ر يو بل پسے) په زمکه کښې او پورته کړي يې بعض ستاسو

فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ ط

د پاسه د بعضو په درجو (د علم او مال) کښې دے د پاره د چه ازمينت اوکړي په تاسو باندے په هغه څيز کښې چه درکړيدي تاسو ته

۱۶۴ دا بله طريقه د تعليم دا وجوابونه د درے سوالونو. اول سوال: سيوا د الله تعالىٰ نه بل هم مدبر د عالم کيدے شي نو مثل يې پکار دے لکه قطب؟

جواب دا دے چه الله تعالىٰ رب مدبر د هر څيز دے نو بل مدبر ته ضرورت نيشته۔ دويم سوال: که اولیٰ شي چه په دے عقيدے سره په انسان باندے ګناه نه راځي؟۔

جواب: وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ مراد د کسب نه کول د ګناه دي لکه شرک کول د الله تعالیٰ سره چه هغه نه معاف کيږي بلکه ګناه د شرک به په مشرک باندے ضرور راځي.

دريم سوال: که څوک اووائي چه د دے کار ګناه به زه اوچت کړم ليکن ته دا کار اوکړه؟۔

جواب: وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى۔

سوال: پيتے د ګناه په بل هيڅ چا باندے نشي راتلے بغير د ګناه کوونکي نه نو د وَازِرَةٌ تخصيص يې ولے اوکړو؟

جواب: دا سے وسوسه اچوونکے هميشه وَازِرَةٌ (ګناه ګار) وي د دے وجے نه تخصيص يې اوکړو اګرچه حکم عام دے او دا سے سوال جواب په سورة عنکبوت ۱۲ کښې ذکر شوے دي۔

ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ دا تخويف اخروي دے۔ فَيُنَبِّئُكُمْ انباء د خبر ورکولو نه مراد فيصله کول دي په مينځ د حق پرست او باطل پرست کښې په جزا او سزا ورکولو سره۔

إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٦٥﴾

یقیناً ستا رب زر عذاب ورکوونکے دے (نہ منونکو تہ) او یقیناً هغہ دے بخنہ کوونکے رحم کوونکے۔

۱۶۵ دا ترغیب دے عمل کولو ته په احکامو د دے سورت باندے او اثبات د ربوبیت د الله تعالیٰ دے کوم چه په مخکښ ایت کښ ذکر شوے دے۔ خلٓیف سجستانی وئیلے دی چه معنیٰ د دے او سیدونکی چه په یو بل پسے نائبان وی او شربینی وئیلے دی چه دا صفت د دے اخری امت دے ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم خاتم النبیین دے نو امت د هغه هم خلیفه دے د مخکښ ټولو امتیانو یا مراد د دے خلفاء په زمکه کښ د طرف د الله تعالیٰ نه چه په هغے کښ د ژوندا د تیر ولو د پاره مناسب تصرفات کوی۔ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ دا جواب د سوال دے چه هر کله په هر یو کښ وصف د خلیفه دے نو پکار ده چه په ټولو کښ مساوات وے؟

جواب او شو حاصل د جواب دا دے چه دوی ئے په تفاوت سره گرځولے شی څوک عاقل څوک جاهل څوک مالدار څوک غریب څوک مالک څوک مملوک د پاره د ابتلاء ستا سو او مقصد په ابتلاء کښ معرفت د توحید د الله تعالیٰ دے او فرق کول دی په مینځ د شکر کوونکے د دے نعمت او کفران کوونکی۔ فِي مَا آتَاكُمْ مراد د دے هر هغه صفت او حالت دے چه انسان په هغے سره متصف وی په مالدار باندے ابتلاء ده په مالدارئ کښ او په غریب باندے په غریبئ کښ او خائسته شکل والا باندے په دغه صفت کښ او بد شکل والا د هغه په حال کښ او په عاقل عالم باندے په علم کښ او په جاهل باندے په جهل کښ۔ إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ دا تخویف دے شکر نه کوونکی د دے نعمت او دارنګ عمل نه کوونکی په دے سورت باندے۔

وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ دا بشارت دے شکر گذار د نعمتونو ته او عمل کوونکی ته په دے سورت باندے هر کله چه مغفرت او رحمت د الله تعالیٰ غالب دے په غضب د هغه باندے د دغے وجے نه ئے د لَغَفُورٌ سره لام د تاکید ذکر کړے دے۔

الحمد لله په ختم کولو د تفسیر د سورة انعام

سورة الاعراف مکیة

بسم الله الرحمن الرحیم

ایاتها ۲۰۶ رکوعاتها ۲۴

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شورو کولو کښې چه رحمان او رحیم دے

الٓمّٓصٓ ﴿۱﴾ کِتٰبٌ اُنۡزِلَ اِلَیۡکَ فَلَا یَکُنۡ

الله تعالیٰ پوهه دے په مراد د دے حرفونو. دا کتاب دے نازل کړے شوے تاته نو نه دے وی

بسم الله الرحمٰن الرحیم

## سورة الاعراف

ربط د دے سورت د مخکښې سره دا دے چه په سورة انعام کښې دلیلونه عقلی بیان شول په مسئله د توحید باندے نو په دے سورت کښې دلیلونه نقلی دی په دے مسئله او بهادری د پیغمبرانو ذکر کوی د پاره د بیان د توحید دارنګ مخکښې سورت کښې اثبات د توحید اوشو په تفصیل سره نو په دے سورت کښې احوال د منکرینو ذکر کوی په دولس نمونو د عذاب سره چه هغه اووه تیر شوی قومونه دی او ابلیس او هغه قوم چه مجوران وو په خپلو اصنامو باندے او عبادت کوونکی د عجل او بدلوونکی د قول شرعی او سبت والا او الذی آتیناه آیاتنا په دوی ټولو باندے مختلف عذابونه راغلی دی۔

دعوے د دے سورت درے دی: اوله بهادری او کړی د پاره د بیان د مسئلے د توحید او د قرآن په سلسله کښې دویمه تابعداری د کتاب او سنت کوئ د دے نه خلاف د هیچا اتباع مه کوئ خصوصًا په تحلیل او تحریم کښې په کښې دریمه شرک مه کوئ د الله تعالیٰ سره په بندګئ او په بلنه کښې په سلسله کښې ټول سورت په د دے درے دعوو سره تعلق لری او مرجع او اهمه دعوه په دے کښې اثبات د توحید دے په شپږ طریقو سره چه هغه په توجیه الناظرین کتاب کښې ذکر دی۔

خلاصه: د دے سورت کښې دوه حصے دی اوله حصه تر سلسله پورے ده په دے کښې درے بابونه دی اول باب تر سلسله پورے دے په دے کښې اوله دعوی او دویمه دعوی ذکر ده بیا تخویف دنیوی چه ذکر کولو د درے حالاتو د منکرینو په سلسله کښې او بیا تخویف اخروی دے په ذکر د درے حالاتو سره په سلسله کښې او بیا ترغیب دے په سلسله کښې

تفسیر:-

سلسله د مقطعاتو بارہ کښې تفصیل مخکښې تیر شوے دے او دلته ورسره حرف ص کښې لطیفه اشاره ده چیرو قصود د دے سورت ده او صفت د صمدیت د الله تعالیٰ ته۔

فِیْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ لِتُنْذِرَ بِهٖ

په سینه ستا کښې تنګسیا د رسولو د دۀ نه دے د پاره چه یره ورکړې په دے سره

وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِیْنَ ۝۲ اِتَّبِعُوْا مَاۤ اُنْزِلَ

او یاداشت د پاره د ایمان والو. تابعداری کوئ د هغې چه نازل کړے شوے

اِلَیْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ

تاسو ته د طرف د رب ستاسو نه او تابعداری مه کوئ خلاق د الله تعالیٰ نه

اَوْلِیَآءَ ؕ قَلِیْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ۝۳

د نورو دوستانو. ډیر کم نصیحت اخلئ تاسو.

وَكَمْ مِّنْ قَرْیَةٍ اَهْلَكْنٰهَا فَجَآءَهَا

او ډیرو کلو والا چه هلاک کړیدی مونږ هغه نو راغے هغوی ته

ــ۲ــ مطلب دادے چه داکتاب نازل کړے شویدے د پاره د بیان نو د دے په تبلیغ کښې چه څه تکلیفونه رائي نو صبر کوه او ځان مه تنګوه. دے آیت کښې اوله دعوی ده په دیکښې تعریف د کتاب او دوه فائدے د کتاب او بیو ادب د هغې ذکر دے. لِتُنْذِرَ عام دے مشرکانو کافرانو ته سره د مؤمنانو نه او ذِکْرٰی خاص دے مؤمنانو پورے نو عامه فائده ئې مقدم کړیده په خاصه باندے او دا دواړه فائدے په قیصو د انبیاء علیهم السلام کښې واضح دی.

ــ۳ــ دا دویمه دعوی ده دا کیفیت د انذار او ذکری دے. مَاۤ اُنْزِلَ، قرآن او سنت دے مدارک، خازن، قرطبي تولو وئیلے دی نو کوم کتاب یا پیر مُلا وغیره چه د دینه خلاف وی نو د هغه تابعداری مه کوئ. مِنْ دُوْنِهٖۤ ضمیر راجع دے ما انزل ته یا رب ته. اَوْلِیَآءَ، مراد د ولایت نه تابعداری کول دی سره د محبت نه قرطبي وئیلیدی څوک چه راضي شو په یو مذهب نو اهل د هغه مذهب د دۀ اولیاء شول. او پدے آیت کښې هم تقلید او مقلد باندے رد دے چه د کتاب و سنت په مقابله کښې د بل چا قول او مذاهب غوره کوی. قَلِیْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ، په دے کښې اشاره ده چه دا صفت د خلق په دنیا کښې ډیر کم دی.

بَأْسُنَا بَيَاتًا أَوْ هُمْ قَائِلُونَ ۝ فَمَا كَانَ

عذاب زمونږ په وخت د شپې کښې یا په دوی آرام کوؤ په وخت د غرمه کښې. نو نه وو

دَعْوٰهُمْ إِذْ جَاءَهُمْ بَأْسُنَا إِلَّا أَنْ قَالُوا

فریاد د دوی کوم وخت چه راغے دوی ته عذاب زمونږ مګر دا چه وئیل دوی

إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِينَ ۝ فَلَنَسْأَلَنَّ الَّذِينَ

یقینًا مونږ وو ظالمان. نو خامخا تپوس به کوو مونږ د هغه کسانو (امتونو)

أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ وَلَنَسْأَلَنَّ الْمُرْسَلِينَ ۝

چه لیږلے شوے دی هغوی ته رسولان او خامخا تپوس به کوؤ مونږ د لیږلے شوؤ نه.

فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ وَمَا كُنَّا غَائِبِينَ ۝

پس خامخا بیان به اوکړو مونږ په دوی باندے په علم خپل سره اونه یو مونږ غائب (د دوی د عملونو)

سک سک دایره دنیوی ده یعنی عذاب، د الله تعالیٰ په وخت د غفلت د خلقو کښې راځی نو بیا توبے ته اوزګار نه وی مګر توبه کوی په وخت د راتللو د عذاب کښې لیکن هغه نه قبلیږی پدیکښې د دے احوال د منکرینو ذکر کړیږی اهلاک، غفلت، اقرار په ظلم - اَهْلَكْنَا مراد ترے نه اراده د اهلاک ده یا اجمال دے او وروسته فا تفصیلیه ده. قَائِلُونَ د قیلوله نه دے آرام کول په وخت د غرمه کښې که خوب ورسره وی او که نه وی او په قوم شعیب باندے عذاب په داسے وخت کښې راغلے وؤ. ظَالِمِينَ مراد د ظلم نه تابعداری نه کول د ما انزل دی او تابعداری د غیر ده.

سک دایره اخروی ده په ذکر د دے احوالو سره دلته اول حال ذکر دے یعنی سوال، د هر چا نه د هغه مناسب تپوس کیږی نو د رسولانو نه به د هغوی د دعوت کولو په باره کښې تپوس کیږی لکه احزاب سک کښې، او تپوس د امت د حال به کیږی لکه مائدۃ سک کښې. او د عامو خلقو نه به تپوس صرف د عمل نه کیږی بلکه د لِمَ یعنی ولے د کوم شه باعث وو چا د پاره دِ دا عمل کړے وؤ او کَیْفَ چه د چا په طریقه دِ کړے وؤ او دا رنګ ذکر دے په سورۃ حجر سک کښې او عدم سوال چه ذکر دے په سورۃ قصص سک او سورۃ رحمٰن سک کښې نو هلته تطبیق ذکر کړے شوے دے.

سک یعنی که څوک پټوی یا انکار کوی نو الله تعالیٰ به پخپله بیان اوکړی په دے آیت کښې دویم حالت ذکر شو۔

وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ ۚ فَمَنْ ثَقُلَتْ

او تول په دغه ورځ يقيني دے پس هغه څوک چه درونه وی

مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝٨

وزن دَ عملونو دَ هغوی نو دغه کسان دوی کامياب دی (بچ کيدونکی دَ عذاب نه)

وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ

او هغه څوک چه سپک وی عملونه دَ هغوی نو دا هغه کسان دی

خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا

چه تاوانی کړيدی ځانونه خپل په سبب دَ دے چه دوی په آيا تونو زمونږ

يَظْلِمُونَ ۝٩ وَلَقَدْ مَكَّنَّاكُمْ فِي الْأَرْضِ

ظلم کوؤ۔ او يقيناً ځائ درکړے دے مونږ تاسو ته په زمکه کښ

۸ ۔ په دے کښ دريم حال ذکر کوی چه وزن دے يعنی دَ قيامت دَ احوالونه وزن دَ عملونو هم حق دے او درونوالے او سپکوالے دَ عملونو دَ توحيد او سنت په شته والی او نيشت والی سره دے ډير والے او کم والے نه دے مراد۔ او دَ وزن نه مراد وزن دَ صحيفے دَ اعمالو دے لکه چه صحيح احاديثو کښ راغلی دی هاں وزن دَ نفس عملونو هم کيداشی بغير دَ دے نه چه څه جسم ورله ورکړی لکه چه اوس هوا کانے او بخنی اؤ گرمی تللے کيږی او وزن دَ بعض انسانانو هم په حديث کښ راغلی دے۔ ليکن معتزله او منکرين حديث چه تاويل دَ وزن کوی په نفس عدل او قضا سره او دَ وزن او ميزان حقيقی ته انکار کوی نو هغه دَ ظاهری او صريح آيا تونو نه انکار دے لکه چه قرطبی ذکر کړے دے او مقصد پدے وزن کولو سره اظهار دَ عدل دے۔ مَوَازِينُهُ جمع دَ ميزان ده نو ظاهر داده چه ميزانونه به ډيروی په اعتبار دَ انسانانو يا دَ اعمالو سره يا جمع دَ موزون ده مراد ترينه اعمال دی۔ او ظاهر داده چه درونوالے سپکوالے په ډير والی سره نه دے لکه حديث دَ بطاقے دَ توحيد په مقابله دَ نورو اعمالو ډيروکښ پدے خبره باندے دلالت کوی بلکه ثقل او خفت په اعتبار دَ عقيدے دَ توحيد او دَ سنت سره دے او دا سے په سورة مومنون ۱۰۲، ۱۰۳ او په سورة قارعه ۶، ۸ کښ هم دی او لفظ دَ خَسِرُوٓا او يَظْلِمُونَ دلالت کوی چه وزن دَ عملونو دَ کافرانو هم حق دے۔

وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ ۗ قَلِيلًا مَّا

او جوړ کړی دی مونږ تاسو لره په دے زمکه کښې اسباب د ژوند ډیر کم

تَشْكُرُونَ ﴿۱۰﴾ وَلَقَدْ خَلَقْنَٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَٰكُمْ

شکر کوئ تاسو. او یقیناً پیدا کړی یئ مونږ تاسو بیا مونږ شکلونه درکړیدی تاسو ته

ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ ق صلے

بیا (داهم واورئ) چه وئیلے وو مونږ ملائکو ته سر خکته کړئ په اکرام سره آدمؑ ته

فَسَجَدُوٓا إِلَّآ إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ السَّٰجِدِينَ ﴿۱۱﴾

نو سجده او کړه دوی (په هغه طریقه) مګر ابلیس نهٔ وو دے د سجده کوونکو نه.

ﷺ دا ترغیب دے تعمیل د احکامو د الله تعالیٰ ته او په آخری جمله کښې زجر دے او دا آیت دلیل دے چه بغیر د زمکے نه د انسان بل ځائ او سیدل نه شی کیدے.

ﷺ د دے ځائ نه دویم باب دے تر ۳۱ پورے په دے کښې واقعه د آدم علیه السلام او د ابلیس ده د پاره د رد د شرک فعلی (چه دوی په طواف کښې په ځان جامے حرام کړے دی) او څلور کرته خطاب دے په یَا بَنِیٓ آدَمَ سره اول ځل د پاره د تذکیر د نعمت د لباس دویم ځل د پاره د بچ کیدلو د وسوسے د شیطان نه او رد دے په دلیل د مشرکانو باندے دریم ځل د پاره د رد د شرک فعلی او ذکر د تحریمات الٰهیه څلورم ځل د پاره د نعمت د رسالت. بیا په دے آیت کښې تفصیل دے د ابتداء د مکناکم چه تمکین کښې معنی د عزت او د اکرام ده او هغه په واقعه د سجود سره بنکاره ده. خَلَقْنَٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَٰكُمْ په دے کښې اول قول دا دے چه خلق د ما دے د آدم علیه السلام او بیا صورت جوړول د هغه دی نو مراد د دے نه آبَاكُمْ دے. دویم قول دا چه خلق په شا د پلار کښې او تصویر په رحم د مور کښې او خطاب عام دے دریم قول دا چه خلق د ما دے د انسان په مختلفو اطوارو سره او بیا تصویر ورکول لکه په سورة حج ۵ او مؤمنون ۱۴ کښې دی. ثُمَّ قُلْنَا الخ سوال: په آخری دوه توجیهاتو باندے ثُمَّ مشکل دے ځکه چه واقعه د سجود د آدم خو د نورو انسانانو د خلق نه وړاندے ده.

جواب ۱ ثم د پاره د تراخی نه دے بلکه د پاره د تعقیب ذکری دے چه صرف په بیان کښې روستو دے. جواب ۲ ثم په معنی د واو دے او دا قول د اخفش دے (قرطبی)

قَالَ مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ ؕ

او فرمائیل الله تعالیٰ څه شی او منع کړې ته له دې نه چه سجده دې نه کوله په کوم وخت چه ما حکم او کړو تاته

قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ۚ خَلَقْتَنِي مِنْ نَّارٍ

دهٔ او وئیل زهٔ غوره یم د دهٔ نه (ځکه چه) تا زهٔ پیدا کړې یم د اور نه

وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ ⑫ قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا

او دے دې پیدا کړیدے د خټې نه ۔ او فرمائیل الله تعالیٰ پس کوز شه د دے ځائ نه

فَمَا يَكُوْنُ لَكَ اَنْ تَتَكَبَّرَ فِيْهَا فَاخْرُجْ

پس نه دی مناسب تا لره چه لوئي او کړے ته په دے ځائ کښ پس. اُوزه

اسْجُدُوْا مراد د سجدے نه سجده د تحیه ده د پاره د اکرام آدم علیه السلام ته په سر ښکته کولو سره لیکن زمونږ امت کښ دا هم منع ده نور تفصیل سورة بقره کښ تیر شوے دے۔

سـ۱۲ د دے آیت نه معلومه شوه چه د نص یعنی ښکاره حکم د الله تعالیٰ او د رسول په مقابله کښ خپل قیاس پیش کول دا کار اول ابلیس کړے وو دا رنګ هر مشرک او مبتدع د نص مقابله کښ قیاسونه پیش کوی دا قرطبی ذکر کړیدی او دا دلیل یې په دے سورت کښ ذکر کړو اشاره ده چه شرک فعلی کوونکی دا سے دلیلونه پیش کوی. او د دے آیت نه معلومه شوه چه تکبر او حسد د دین نه منع کوونکی دی او په دے کښ معلومه شوه چه ابلیس هم مستقل مامور وو په سجده کولو سره - اَنَا خَيْرٌ دا تزکیه ده د خپله او تکبر دے او په ضمن کښ اعتراض دے په امر د الله تعالیٰ باندے. خَلَقْتَنِي دا علت د دا اناخیر لیکن دلیل یې غلط دے ځکه چه خاوره او ختیه کښ د اور نه زیاتے فائدے دی.

مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ او په دے کښ یو قول دا دے چه لَا زائده دے لکه په سورة ص کښ بغیر د لا نه دے دویم قول دا دے چه مَنَعَكَ په معنی د دعاك دے او الی پټ دے یا په معنی د اَجْبَرَكَ دے او علی پټ دے۔

سوال: دلته کښ لَا راوړو او په سورة ص کښ لا نه دے راوړے؟

جواب: دلته اَمَرْتُكَ سره په مخالفت کښ ترك د سجدے پوره مناسب دے او هلته ذکر د امرتك نه وو۔

إِنَّكَ مِنَ الصَّاغِرِينَ ﴿١٣﴾ قَالَ أَنظِرْنِي

یقینًا ته دَ ذلیلا نو نه یې۔ دهٔ اوئیل مهلت راکړه ما لره

إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٤﴾ قَالَ إِنَّكَ مِنَ

دَ ورځې دَ دوباره ژوند پورې۔ او فرمائیل الله تعالیٰ یقینًا ته دَ مهلت

الْمُنظَرِينَ ﴿١٥﴾ قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ

ورکړے شوو نه یې۔ دهٔ اوئیل پس په دې وجه چه تا زهٔ محرومه کړم (دَ رحم خپلې نه) خامخا کینم به

لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم

دوی ته په نیغه لاره ستا کښې (دَ پاره دَ منع کولو)۔ بیا خامخا راځم به دوی ته

ﷺ دا ایت دلیل دے چه تکبر سبب دَ ذلت دے او په دے کښې دَ هغه تذلیل په درے طریقو سره ذکر کړو اول فَاهْبِطْ دا هبوط په طریقه دَ تذلیل سره دے په قرینه دَ مَایَکُونُ لَكَ الخ سره او په هبوط آدم کښې دا قید نیشته نو هغه دَ پاره دَ تذلیل نه دے دویم اخْرُجْ دا لفظ روستو دَ اهباط نه دَ پاره دَ تاکید دَ ذلت دے دریم الصَّاغِرِينَ اشاره ده چه په مقابله دَ تکبر کښې صغار رائی۔

ﷺ ﷺ مهلت غوختل دَ ورځې دَ بعث پورے دَ دے دَ پاره وو چه دَ مرګ نه بچ شي۔ لیکن الله تعالیٰ دهٔ له مهلت ورکړو دَ ورځې دَ فنا پورے فقط لکه په سورة حجر [٣٨] کښې او سورة ص ﷺ کښې دی او هغه وخت کښې به نور خلق هم موجود وی ځکه چې ورته مُنظَرِينَ اوفرمائیل۔

ﷺ دا دلیل دے چه دَ صراط مستقیم لوئې دشمن ابلیس دے فَبِمَا باء سببیه یا قسمیه ده او مَا استفهامیه دے او لَأَقْعُدَنَّ نه مستقل کلام شروع کیږی۔ یا مَا مصدریه دے۔ أَغْوَيْتَنِي اغواء په معنی دَ اچولو دَ غَيّ (سرکشی) دے په زړه کښې او په معنی دَ اهلاک سره هم رائی۔ لَأَقْعُدَنَّ کینا ستل کنایه ده دَ لزوم نه لَهُمْ په معنی لِإِضْلَالِهِمْ وَإِغْوَائِهِمْ دے۔ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ چه دَ هغې ابتداء دَ توحید نه ده لکه ابن کثیر ذکر کړے دی۔

مِّنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ

دَ مخے دَ دوی نه او دَ شا طرف دَ دوی نه او دَ

اَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَآئِلِهِمْ ؕ وَلَا تَجِدُ

ښی طرفونو دَ دوینه او دَ کس طرفونو دَ دوی نه او نه به مومے

اَكْثَرَهُمْ شٰكِرِيْنَ ﴿۱۷﴾ قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا

ډیر دَ دوی نه شکرکوونکی (توحید والا)۔ اوفرمائیل الله تعالیٰ اوځه دَ دے ځائے نه

مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا ؕ لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ

بد وئیلے شوے رټلے شوے خامخا چاچه تابعداری اوکړه ستا دَ دوی نه

لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۸﴾

خامخا ډک به کړم جهنّم ستاسو نه په یو ځائ۔

ﷺ دَ دے نه مراد دادے چه په هره طریقه به دوی گمراه کوم یا دا مطلب دے چه دَ اٰخرت نه به یئے منکر یا غافل کوم اودَ نیک کارونو نه به یئے منع کوم اودَ بدو کارونو رغبت به ورکوم. مِنْ فَوْقِهِمْ یئے نه دے وئیلے اشاره ده چه رحمت دَ الله تعالیٰ نشی منع کولے اومِنْ تَحْتِهِمْ یئے هم نه دے وئیلے چه دَ لاندِے نه راتلل نه کیږی۔

فائده: په اول دواړوکښی مِن ذکرکړیدے او من راځی دَ پاره دَ ابتداء اشاره ده چه توجه دَ ابلیس دَ دے دوه طرفونو نه شروع کیږی او په روستنو دووکښی عَنْ ذکرکړے دے چه دَ تجاوز دَپاره راځی یعنی ابلیس سرهٔ دَ تجاوز اوانحراف نه دَ دے دواړو طرفونو له راځی۔ شَاكِرِيْنَ قرطبی اوخازن اوابن کثیر وئیلے دی چه مراد دَ دے نه مؤحدین دی ځکه چه ابلیس اوله دشمنی دَ توحید سرهٔ کوی او دا قول دَ ابلیس په طریقه دَ ظن غالب سرهٔ دے۔

ﷺ په دے اٰیت کښی دَ ابلیس دَ دُعا اجابت دے سرهٔ دَ تخویف نه په تابعدارئ کولو دَ هغه سرهٔ. اُخْرُجْ دا اعاده یعنی عهدده یعنی اول اخرج په طریقه دَ فیصله الٰهی وه اودویم نافذکول دَ امر دی یا اول اخراج دَ جنت نه اودویم دَ اٰسمان نه مَذْءُوْمًا ذَأْم زیات دے دَ ذم نه په معنیٰ دَ عیب کښی یعنی ډیرعیب ژن۔

مَدْحُوْرًا په لعنت سرهٔ رټلے شوے او صیغه دَ مفعول دلالت کوی چه دا به وئیل اورټل به

وَيٰۤاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا

او اے آدم (علیہ السلام) اوسیږه ته او بی بی ستا په جنت کښې پس خورئ

مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ

دَ هغے ځائ نه چه خوښه وئ ستاسو او مه نزدے کیږئ دے ونے ته (قصدًا)

فَتَكُوْنَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝۱۹ فَوَسْوَسَ لَهُمَا

پس شئ به تاسو دَ ګنهګارو نه ـ نو وسوسه اوکړه دے دواړو ته

الشَّيْطٰنُ لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَاوٗرِيَ عَنْهُمَا

شیطان (عاقبت دا دے) چه ښکاره کړی دوی ته هغه چه پټ شویوو دَ دوی نه

مِنْ سَوْاٰتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهٰىكُمَا رَبُّكُمَا

دَ وجودونو دَ دوی نه او وے وئیل نه یې منع کړی تاسو رب ستاسو

عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا

دَ دے ونے نه مګر دَ دے وجے نه چه شئ به (راوګرځو ئمر والا)

دَ هرطرف نه وی. لَاَمْلَئَنَّ اشاره ده چه په جهنم کښې به دَ تعذیب دَ پاره صرف تابعدار دَ ابلیس وی که په کفر او شرک سره وی او که په نور و ګنا هونو سره وی اول قسم به همیشه وی جهنم کښې او دویم قسم به همیشه نه وی۔

ف۱۹ دا اظهار دَ انعام الهیٰ دے په هغه آدم علیه السلام چه ابلیس هغه ته سپک ګنڼل دا معطوف دے په اخرج با ندے په ف۱۸ کښې. فَكُلَا په سورة بقره کښې تفصیل دَ انعاماتو مقصد دے نو کُلَا یې په واو سره ذکر کړے دے هلته اشاره ده مستقل نعمت ته او په دے سورت کښې تفصیل دَ انعاماتو مقصد نه دے نو فَكُلَا یې په فا سره ذکر کړو اشاره ده اصل ته چه هغه ترتب دَ خوراک دے په سکنیٰ باندے او دَ دے وجے نه سورة بقره کښې رغدًا ذکر وؤ او دلته هغه ذکر نه دے (والله اعلم) وَلَا تَقْرَبَا مراد دَ نهی دَ قربان نه قصد او عمد دے چه هغه سبب دَ ظلم دے نو په سهوه او نسیان دَ آدم سره ظلم دَ هغه نه ثابتیږی او نورا تفصیل په سورة بقره کښې تیر شوے دے۔

# مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ۝۲۰

دوه ملائک یا شئ په تاسو دَ همیشه پاتے کیدونکو نه .

۲۰ په دے ایت کښ تفصیل دَ وسوسے دَ ابلیس دے او عاقبت دَ عمل کولو دے په وسوسه باندے. فَوَسْوَسَ سوال: هرکله چه ابلیس دَ جنت او اسمانونو نه کوز کړے شوے وؤ نو بیا یئے څرنګ وسوسه اوکړه آدم علیه السلام ته ؟
جواب: هرکله چه ابلیس ته یئے اوئیل اخرج او آدم ته یئے اوئیل اسکن نو ابلیس دَ راوتلو په وخت کښ آدم علیه السلام ته دا خبره اوکړله او دلالت کوی په دے باندے فا په فوسوس کښ چه دَ اتصال دَ پاره راځی او څوک چه وائی چه ابلیس په دروازه دَ جنت کښ اولاړ وؤ او آدم ته یئے آواز ورکړو نو دا بے دلیله خبره ده او څوک چه وائی دَ مار په خُله کښ جنت ته داخل شو نو دا خوبے دلیله او اسرائیلی قصه ده.
لَهُمَا او سورة طٰهٰ ۱۲۰ کښ الیه ذکر دے وجه دا ده چه دلته دَ مخکښ نه تثنیه الفاظ ذکر دی نو دا یئے تثنیه ذکر کړه او سورة طٰهٰ کښ دَ مخکښ نه صرف دَ آدم ذکر دے نو روستو یئے هم ضمیر دَ مفرد ذکر کړو نو وسوسه یئے دواړو ته کړے ده لیکن ښځه تابع دَ خاوند ده نو کله دَ هغے ذکر اونشی. لِیُبْدِیَ اکثر مفسرینو وئیلے دی چه لام دَ پاره دَ عاقبت دے ځکه چه ابلیس ته دا علم نه وؤ چه په دے سره به دَ دوی عورتونه ښکاره کیږی او دا هم جائز ده چه لام دَ علت وی او کیدے شی چه ابلیس ته دَ دے علم دَ مخکښ نه حاصل وؤ. سَوْاٰتِهِمَا سوءة دَ بدن هغه حصے ته وئیلے شی چه دَ هغے په ښکاره کیدلو سره انسان فطرتًا خفه کیږی نو هغه عورت دے. مَاوٗرِیَ اشاره ده چه عورت دَ انسان طبعًا پټ وی او طبعًا دَ هغے ښکاره کول بدا ګڼړی ځکه یئے صیغه دَ مجهول ذکر کړله اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَیْنِ دا په طریقه دَ تشبیه سره مراد دے یا په طریقه دَ قلبِ حقیقت سره هم احتمال لری او تشبیه دَ ملائکو سره په ډیر صفتونو کښ ده چه خوراک ته به محتاج نه یئے او هر قسم شکلونه به اختیارولے شئ او په الوتلو باندے به قدرت لری او عمرونه به موهوم اوکیدے شی دا هم مرغوب صفتونه دی چه انسان یئے غواړی. او تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِیْنَ دا ترقی ده دَ ماقبل نه او په معنیٰ دَ بَل سره دے یعنی بلکه دَ فنا او دَ مرګ نه به بچ شئ دا هم دَ انسان ډیر مرغوب څیز دے او سورة طٰهٰ کښ صرف روستنئ خبره ذکر کړیده ځکه سورة اعراف تفصیلی سورت دے نو په دے کښ یئے تفصیل ذکر کړیدے او سورة طٰهٰ کښ اختصار مقصد دے دَ دے وجے نه آخری مرغوب یئے ذکر کړے دے.

وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۲۱﴾

او قسم ئې اوکړو دے دواړو ته چه یقینًا زهٔ ستاسو دَ خیرخواهو نه یم۔

فَدَلّٰىهُمَا بِغُرُوْرٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ

نو راکوز ئې کړل په دهوکه سره پس هرکله چه اوڅکله دوی اونه

بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ

ښکاره شو دواړو ته دجودونه دَ دوی او شورو شو دواړه چه لګولے ئې

عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ ۭ وَنَادٰىهُمَا

په ځان باندے دَ پاڼرو دَ جنت نه۔ او آواز ورکړو دے دواړو ته

رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ

رب دَ دوی آیا ما نه وو منع کړی تاسو دَ دے اونې نه

وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۲﴾

او نه وو وئیلے ما تاسو ته یقینًا شیطان تاسو لره دُښمن ښکاره دے۔

۲۱۔ قَاسَمَهُمَآ دا صیغه دلته دَ پاره دَ مبالغے ده یعنی کلک قسم ئې اوکړو۔ قسم دَ پاره دَ تاکید دَ وسوسے دے او دا ئې مطلق ذکر کړو لیکن مراد دَ دے نه قسم بالله دے او ابلیس اول هغه شخص دے چه په الله تعالیٰ باندے په دروغه قسم کړیدے او دَ آدم علیه السلام ګمان هم دا وو چه هیڅوک به په الله تعالیٰ باندے په دروغه قسم نه کوی نو ځکه ئې دَ هغه خبره اومنله۔

۲۲۔ فَدَلّٰىهُمَا، فَا ذْلالت کوی چه دوی په وسوسه باندے سمدستی عمل کړے دے۔ دَلّٰىهُمَا مراد دَ دے نه راکوزول دی دَ طاعت نه معصیت ته یا دَ اوچتے درجے نه کوزے درجے ته یا دا په معنیٰ دَ ازلهما سره دے۔ غُرُوْرٍ ښکاره کول دَ نصیحت او پټ ساتل دَ نقصان ته غرور وائي۔ سَوْاٰتُهُمَا دلته معنیٰ ظاهری مراد ده دلیل په هغے روستو جمله ده چه پاڼرے لګول دی په ځان باندے او بحرالمحیط کښې ذکر دی چه څوک وائي چه مراد دَ دے نه دَ دوی عیبونه او سخت ژوند ښکاره کیدل دی او بربنړ شوے نه دی نو دا قول دَ قرآن کریم

قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا سکتہ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا

اوئیل دواړو اے ربه زمونږ نقصان کړیدے مونږ د ځانونو خپلو، او که بخنه اونکړے ته مونږ ته

وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۲۳﴾

او که رحم اونکړے په مونږ خامخا شو به مونږه د تاوان والو نه۔

قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ج

او فرمائیل الله تعالیٰ کوز شئ بعضے ستاسو د بعضو د پاره دُشمنان به وی۔

وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ

او تاسو د پاره په زمکه کښ ځائے د اوسیدلو دے او مزے اخستل دی

دَ ظاهر نه خلاف دے او تاویل دے په غیر د دلیل نه او مخالف دے د قول د جمهور مفسرینو نه او که څوک سوال اوکړی چه دلیل په دے بانداے وَلَا تَعْرٰی دے سورة طٰهٰ ۱۱۸ کښ نو جواب دا دے چه دغه صفتونه په اصل کښ مقید وُو په شجرے نه خوړلو سره چه هرکله شجره ئے اوخوړله نو د هغه صفتونو نه محروم شول او وئیلے شوے دی چه د دوی په بدن بانداے د نُور جامے وے نو هغه د دوی نه لرے شوے د دے څه دلیل نیشته د جامو په حقیقت بانداے الله تعالیٰ عالم دے او صرف ځانونه ورته ښکاره شول بل چا برېنډ نه دی لیدلی په دے دلیل چه تثنیه په مقابله د تثنیه کښ تقسیم غواړی د احادو په احادو بانداے۔ او دوی په ځان بانداے پاڼړے د جنت لګولے اشاره ده چه عورت د ځان نه پټول لازم دی (بے ضرورته)۔ وَاَقُلْ لَّكُمَآ دا قول د الله تعالیٰ په سورة طٰهٰ ۱۱۷ کښ ذکر دے۔

۲۳ ظلم په معنیٰ د نقصان دے یعنی مونږ خپله حصه کمه کړه ځکه چه د جنت نه اووتلو۔ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا د گناه بخل مراد نه دی ځکه چه گناه ئے نه دے کړے بلکه پرده اچول مراد دی۔ او رَحَم نه مراد ائینده د پاره د داسے کار نه بچ کول دی۔ یا دا دعا د وجے د انکسار او د تضرع نه ده نو دلالت نه کوی په گناه کولو بانداے او دا د مقربینو عادت دے چه وړوکے نقصان غټ گڼړی او شر بینی لیکلی دی چه دا صرف خلاف اولیٰ کار وو او په نسیان سره شوے وو په دلیل د سورة طٰهٰ ۱۱۵ سره نور تفصیل په سورة بقرة کښ تیر شوے دے۔

إِلَىٰ حِينٍ ﴿۲۴﴾ قَالَ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا

تر یو وخت پورے - او فرمائیل الله تعالیٰ په دے زمکه کښ به ژوند تیروئ تاسو او په دے کښ به

تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴿۲۵﴾ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ

مړه کیږئ تاسو او د دے نه به و یستلے کیږئ تاسو - اے بنیادمو

قَدْ أَنزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَٰرِى سَوْءَٰتِكُمْ

یقیناً پیدا کړے ده مونږ تاسو لره جامه چه پټوی عورتونه ستاسو

وَرِيشًا ۖ وَلِبَاسُ ٱلتَّقْوَىٰ ذَٰلِكَ خَيْرٌ ۚ

او خائست دے او جامه د پرهیزګارئ داخو ډیره غوره ده

ذَٰلِكَ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿۲۶﴾

دا د نعمتونو د الله تعالیٰ نه ده دے د پاره چه نصیحت واخلئ -

۲۴ د بخشش کولو او توبه قبلولو نه روستو دا حکم دلیل دے چه دا کوزول زمکے ته سزا د ګناه نه ده بلکه اثر د دغه شجرے دے او په دے آیت کښ د را کوزولو غایة تکوینی ذکر کړیده لکه په سورة بقره ۳۶ کښ او غایة تشریعی به په ۳۵ کښ ذکر کوی.

۲۵ دا هم د غایة تکوینی سره تعلق لری او په دے کښ فنا او بعث هم ذکر کوی د پاره د دے چه غفلت رانشی د دے نه مراد عام ژوند دے او هغه په زمکه کښ دے نو بعض ژوند په طریقه د خرق عادت سره وی لکه په آسمان کښ ژوند د عیسیٰ علیه السلام نو په دے سره اعتراض نه رائحی -

۲۶ ظاهر دا ده چه دا خطابات په وخت د را کوزولو د آدم علیه السلام کښ وو ځکه چه دا نعمت د لباس یوامت پورے خاص نه دے نو دا اول خطاب په یابنی آدم سره د پاره د دے چه لباس د الله تعالیٰ نعمت دے نو د دے ناشکری مه کوئ په تحریم د هغے سره په ځان باندے په طواف کښ. أَنزَلْنَا قرطبی د سعید بن جبیر نه نقل ذکر کړے دے چه انزال په معنی د خلق (پیدا کول) سره دے لیکن انزال ئے ورته د دے وجے نه وئیلے دے چه د دے اسباب آسمانی دی لکه باران ورول او په هغے سره بوټی راویستل په هغه بوټو کښ بوټی د پوښ

يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفۡتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ كَمَآ أَخۡرَجَ

اے بنیادمو دهوكه دے نكړى تاسو لره شيطان لكه چه وېستلي يې دي

أَبَوَيۡكُم مِّنَ ٱلۡجَنَّةِ يَنزِعُ عَنۡهُمَا لِبَاسَهُمَا

مور او پلار ستاسو د جنت نه اوېستلې يې د دواړو نه جامے د هغوى

لِيُرِيَهُمَا سَوۡءَٰتِهِمَآۚ إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمۡ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ

د ښكاره كړي دوئ ته وجود دوئ يقيناً دے وينى تاسو لره، دے او اولاد د ده

مِنۡ حَيۡثُ لَا تَرَوۡنَهُمۡۗ إِنَّا جَعَلۡنَا ٱلشَّيَٰطِينَ

په داسے طريقه چه ته وينئ تاسو دوئ لره يقيناً جوړ كړى دى موږ شيطانان

أَوۡلِيَآءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ ﴿٢٧﴾ وَإِذَا فَعَلُواْ

دوستان (د تابعدارئ) هغه كسانو لره چه ايمان نه راوړى. او كله چه اوكړى دوى

اوريښم اوربړ وغيره پيدا كيدل او دا رنګ لفظ په سورة زمر ركوع ۲ او حديد ركوع ۲۵ كښې هم راغلى دے. د جامے دوه فائدے دى يو عورت پټول دويم د وجود نوره حصه د زينت د پاره پټول دا دواړه فائدے يې ذكر كړے اوله فائده ډير ضرورى ده نو هغه مخكښې ذكر كړه او دا يې په فعل سره ذكر كړه اشاره ده چه د هغې هر وخت لحاظ پكار دے. وَلِبَاسُ ٱلتَّقۡوَىٰ د دينه مراد هغه جامه ده چه د شرع مطابق وى يا مراد د دينه نفس تقوىٰ ده يعنى ايمان او نيک عمل. او دا يې د دے وجے نه ذكر كړو چه بنى ادم د لباس طرف ته زيات توجه اونكړى او ايمان هير نكړى.

تخيير وجه دا ده چه په صرف ظاهرى لباس سره جنت نه حاصليږى او په تقوىٰ سره جنت حاصليږى.

۲۷ دا دويم خطاب دے په ديكښې منع ده د اتباع د شيطان نه په تحريم د حلال كښې او ردے په دليل د مشركانو باندے. لَا يَفۡتِنَنَّكُمُ مراد د دينه ګمراه كول دى په طريقه د تحريم د حلال سره او دا شرک فعلى دے. كَمَآ أَخۡرَجَ نه مخكښې عبارت پټ دے "بتحريم اللباس فى الطواف (په حرامولو د لباس سره په حال د طواف كښې)" او په ديكښې هغه پيران هم داخل دى چه په خپلو مريدانو باندے بعض جائز لباس حراموى او هغه ملنګ هم داخل دى چه په وخت د ګډا او د ډانس كښې

فَاحِشَةً قَالُوْا وَجَدْنَا عَلَيْهَا اٰبَآءَنَا وَاللّٰهُ

څه بدکار | دوی وائي | مونږ لیدلي دي مونږ په دې باندې مشران خپل | او الله تعالیٰ

اَمَرَنَا بِهَا ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاْمُرُ

حکم کړيدے مونږ ته دَ دے۔ او وایه | يقينًا | الله تعالیٰ | حکم | نه کوي

بِالْفَحْشَآءِ ؕ اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸﴾

دَ بد کار | ايا جوړوئ تاسو | په | الله تعالیٰ باندے هغه خبرے چه تاسو پرے نه پوهيږئ

جاے اوباسي۔ دَاخرج اوينزع اويُرِيَ نسبتونه ابليس ته په طريقه دَ سببيت سړدي۔ دَ لفظ دَ قَبِيْلُهٗ نه معلومه شوه چه دَ ابليس نسل او اولاد شته دے۔ بله دا معلومه شوه چه جِن (چه ابليس هم دَ هغوی نه دے) داسے مخلوق دے چه انسانانو ته نه ښکاري په اصلي شکل سره۔ هاں که شکل بدل کړي نو بيا انسانانو ته ښکاري۔ مِنْ حَيْثُ نه مراد شکل اصلي سره ليدل دي نوکوم چه روايا تو کښ دَ ابليس او دَجنا تو ليدل راغلي دي نو مراد دَ هغے نه شکل مثالي دے او بعض علماؤ وئيلي دي چه هغه ليدل خاص کړے شويدي دَ عموم دَ دے ايت نه۔ اَوْلِيَآءَ (ملګري او مددګاران) دا دليل دے چه سرکش پيريان په ناکاره خلقو باندے حمله کوي او په هغوی کښ داخليږي او په هغے طريقے سره خلق ګمراه کوي۔

۲۸ فَاحِشَةً دا لفظ خو عام دے هره بدکارئ ته شامل دے، ليکن دلته اشاره ده چه مشرکين عرب به طواف دَ بيت الله په بربنډه باندے کوو نارينو دَ ورځے او زنانو دَ شپے او په خپل عورت خاصه باندے به يئے ځکښ او روستولاس کيخودلے وُو۔ دوی په حال دَ حج کښ جامه په ځان حرامه ګڼړله او غوړ خوراک يئے حرام کړے وو او دا تحريمات دَ غير الله دي۔ نو په دے ايت کښ رد دے په دوه دليلونو دَ مشرکانو باندے اول دليل اتباع دَ مشرانو دويم الله تعالیٰ ته نسبت کول اول دليل خو ښکاره باطل دے نو دَ هغے رد ته حاجت نيشته او په دويم دليل باندے تفصيلي رد کوي اول دا چه قُلْ اِنَّ الخ دويم دا چه اَتَقُوْلُوْنَ يعنی دا افتراء ده۔ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ مراد دَ علم نه دليل دَ قران او دَ حديث دے نو هغه چه چا سره نه وي او وائي قَالَ اللّٰهُ او اَمَرَ اللّٰهُ نو دا دروغ جوړول دي په الله تعالیٰ۔ دا ايت دلالت کوي چه دَ باطل پرستو دليل تقليد دَ اباؤ وي يا تقول على الله۔

قُلْ اَمَرَ رَبِّیْ بِالْقِسْطِ قف وَاَقِيْمُوْا وُجُوْهَكُمْ

او وایه حکم کړی دی رب زما په انصاف سره او برابر کړئ مخونه خپل (الله تعالیٰ ته)

عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَّادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ

په وخت د هره سجده کښ او دعاء غواړئ د هغه نه اخلاص کوونکی یئ

لَهُ الدِّيْنَ ط كَمَا بَدَاَكُمْ تَعُوْدُوْنَ ﴿۲۹﴾ ط

هغه ته د بلنې لکه چه الله تعالیٰ اول پیدا کړی یئ نو دوباره په را او گرځئ تاسو.

فَرِيْقًا هَدٰى وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلٰلَةُ ط

یو ډلې ته هدایت کړے دے او بله ډله بانده پوره شوے ده گمراهی

اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ

یقیناً دوی نیولے دی شیطانان دوستان (د تابعدارئ)

۲۹ دا دریم دلیل دے په رد د دلیل د مشرکانو کښ مطلب دا دے الله تعالیٰ چه حکم کوم کړے دے د هغې پابندی کوئ. قِسْطِ په اصل کښ حصه ده یعنی حقدار ته د هغه مناسب حصه ورکول نو د الله تعالیٰ مناسب حصه توحید دے دا نقل دے د ابن عباس رضی الله عنه نه. وَاَقِيْمُوْا اه د دے سره لِلّٰه مراد دے.
مَسْجِدٍ مراد د دے نه سجده ده یعنی سجده الله تعالیٰ لره خاص کړئ دا هم رد دے په مشرکانو بانده چه سجدے غیر الله ته کوی یا د مسجد نه مراد جماعت اوځائ د مونځ کولو دے نو معنیٰ دا ده چه خاص کعبې ته مخونه گرزوئ په هر ځائ د مانځه کښ. وَادْعُوْهُ په دے کښ رد د شرک فی الدعا دے.
مُخْلِصِيْنَ مراد د اخلاص نه پخ کول دی د شرک او تشبیه نه.
كَمَا بَدَاَكُمْ اه په دے کښ تخویف دے په ذکر د بعث بعد الموت سره.
او د لفظ د كَمَا فائده دا ده چه بربنډ او بے پیزاره او ناسنته به پیدا کولے شئ لکه چه اول پیدائش هم داسے وو. داسے په حدیث کښ راغلی دی.

دُوْنِ اللّٰهِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٣٠﴾

سیوا دَ الله تعالیٰ نه او گمان کوی دوی چه دوی لار موندونکی دی۔

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ

اے بنیادمو اونیسئ ډول (رنګار) خپل په وخت دَ هر مانځه کښی

وَّكُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ

او خورئ او څښئ او دَ حد نه زیاتے مه کوئ یقیناً الله تعالیٰ محبت نه کوی

الْمُسْرِفِيْنَ ﴿٣١﴾ ع قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ

دَحد نه زیاتے کوونکو سره۔ او وایه چا حرام کړے دے ډول دَ الله تعالیٰ

ع ٣ ١٠

نتا فَرِيْقًا حال دے دَ تعودون دَ ضمیر نه یا دَضمیرِ دَ بداکم نه اومراد دادے چه دَچا په تقدیر کښی هدایت دے اودَچا ګمراهی ده نو په قیامت کښی به دوه ډلے وی اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا دا متعلق دے دَ روستو فریق سره یعنی دَګمراهئ سبب صرف تقدیر نه دے بلکه تابعداری دَ شیطانانو ده۔ وَيَحْسَبُوْنَ دا شامل دے هرمشرک او بدعت کوونکی ته چه ګناه کوی او هغے ته ثواب وائی۔

ملا دادریم خطاب دے په رد دَ شرک فعلی کښی چه دَ هرمسجد په خوا کښی دَ جامے استعمال ضرورکوئ که مسجد حرام وی اوکه نورمساجد وی که دَطواف په وخت کښی وی اوکه دَمانځه په وخت کښی وی دَ دے آیت نه معلومه شوه چه عورت پټول په وخت دَمانځه اودَ طواف کښی فرض دی اوتعبیر ئے په زینت سره اوکړو اشاره ده چه دَعورت پټولو نه علاوه موږ په پاکو او صفا جامو کښی کول غوره دی په نسبت دَ دے چه دَکار یا دَ شپے په لباس کښی کوی اوځان ترینه خلاصوی او عادتاً نور اندامونه پټول هم پکار دی لکه سینه، شا، سر وغیرها اومقصد په دے کښی رد دے په هغه چا باندے چه جامے ویستل ئے ثواب ګڼړلو۔

وَكُلُوْا اه په دے کښی هم مقصود رد کول دی په هغه چا باندے چه په حالت دَ حج کښی خوراک (زیادت دَ قوت) او غوړی په ځان باندے حرام کړے وو۔

وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا خوراک او څښاک پقدر دَ حاجت فرض دے دَ پاره دَ حفاظت دَ بدن اودَ پاره دَ قوت په عبادت کولو باندے۔

وَلَا تُسْرِفُوْا اسراف په خوراک څښاک او لباس کښی دریے قسمه دے

الَّتِيٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ؕ

هغه چه حلال کړے دے بندګانو خپلو لره او پاک حلال رزقونه

قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

اووایه دا حق دے مؤمنانو دپاره په ژوند د دُنیاکښ (په شرکت سره)

خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ

یواځې به وی دوی لره په ورځ د قیامت دغسے په تفصیل سره احکام بیانوؤ مونږ

لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۳۲﴾ قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ

د هغه قوم دپاره چه پوهیږی ۔ اووایه یقینًا حرام کړی دی رب زما

الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْاِثْمَ

بد کارونه هغه چه ښکاره وی د دینه او هغه چه پټ وی او هر ګناه

وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ

او ظلم کول په ناجائز سره او شریک جوړول الله تعالیٰ سره

(۱) د حاجت نه زیاتے کول (۲) حرام شے خوړل او اغوستل (۳) حلال په ځان باندے حرام کول، چه دا شرک فعلی دے۔

۳۲ داهم رد دے په تحریم د غیرالله باندے چه الله تعالیٰ نه دی حرام کړی نو بل چا حرام کړل؟ زینت نه مراد جامه ده په جائز او مناسب طریقه۔ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، یعنی داحق دے د ایمان والو او مشرکین چه دا نعمتونه استعمالوی نو په ناحقه استعمال کوی۔ ځکه چه الله تعالیٰ انعامات کړیدی نو ایمان او توحید والو د هغے حق اداکړیدے او مشرکینو د هغے حق نه دے اداکړے۔ خَالِصَةً په دیکښ عبارت پټ دے "یخلص الله هذه الطیبات خالصة للمؤمنین یوم القیامة" (یعنی خالص به کړی الله تعالیٰ دا طیبات مؤمنانو لره خاص په ورځ د قیامت) او دا قول د عامو مفسرینو دے دویم قول دادے چه فی الحیٰوة الدنیا متعلق دے د امنوا سره یعنی کوم خلقو چه په ژوند د دنیاکښ ایمان راوړے دے د هغوی د پاره دا طیبات په قیامت کښ خاص دی۔ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ اه مراد دا چه تفصیل د احکامو د توحید په قرآن کښ موجود دے لکه په دے تیر شوؤ ایاتونوکښ۔

مَا لَمۡ يُنَزِّلۡ بِهٖ سُلۡطٰنًا وَّاَنۡ تَقُوۡلُوۡا

هغه څوک چه نه دے نازل کړے الله تعالیٰ په هغې څه دلیل او چه جوړول ستاسو

عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ ۝ وَلِكُلِّ اُمَّةٍ

په الله تعالیٰ باندے هغه خبرے چه تاسو پرے نه پوهیږئ ۔ او د پاره د هرے ډلے

اَجَلٌ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمۡ لَا يَسۡتَاۡخِرُوۡنَ

یو نیټه وی (د عذاب) پس کله چه راشی نیټه د دوی (نو عذاب به ورکړے شی) نه به روستو کیدے شی

سَاعَةً وَّلَا يَسۡتَقۡدِمُوۡنَ ۝ يٰبَنِىۡۤ اٰدَمَ

یو ساعت او نه به مخکښ کیدے شی ۔ اے بنیادمو

۳۳ دا ذکر د تحریماتو د الله تعالیٰ دے په مقابله د تحریم د غیر الله کښ او دیته اصول د تحریماتو وئیلے شی ځکه دا په تولو ادیانو سماویو کښ حرام دی۔ فَوَاحِشَ عام دے هغه تولو گناهونو ته چه گناه کیدل یې هر عقل والا ته ښکاره دی لکه زنا، دروغ وغیره۔ اِثۡمَ په حقوق الله کښ خلاف کول دی۔ وَالۡبَغۡىَ په حقوق العباد کښ گناه کول په غیر د حق نه او هر چه بغی بالحق ده نو هغه جهاد فی سبیل الله دے۔ وَاَنۡ تُشۡرِكُوۡا شرک اعتقادی ته اشاره ده۔ سُلۡطٰنًا اشاره ده چه د شرک د جواز د پاره دلیل منزله پکار دے۔ وَاَنۡ تَقُوۡلُوۡا شرک فعلی ته اشاره ده۔

۳۴ جواب د سوال دے چه هر کله دوی د الله تعالیٰ د تحریماتو خلاف کوی نو په دوی باندے ولے عذاب نه راځی جواب دا دے چه د هغې د پاره مقرره نیټه ده۔ او دا آیت دلیل دے چه څوک اُووژلے شو نو هغه په خپله نیټه باندے مړ شوے دے او قاتل له سزا په دے وجه ده چه د الله تعالیٰ د حکم خلاف یې کړے دے۔ او دا سے آیت په سورة یونس ۴۹ او سورة نحل ۶۱ کښ هم راغلے دی په سورة یونس کښ په اذا باندے فا نه ده راوړے نو په جزا کښ فاء ذکر کړه او په دے سورت او سورة نحل کښ په اذا باندے فاء داخل ده نو په جزاء کښ ضرورت نیشته۔ سوال: کله چه اجل راشی نو روستو کیدل امکان لری لیکن مخکښ کیدل امکان نه لری نو د هغې په نفی کولو کښ څه فائده وه؟ اول جواب دا دے چه جزا د اذا پټه ده یعنی یعذبون۔ دویم جواب دا دے چه ولا یستقدمون عطف دے په اِذَا جَآءَ باندے دریم دا چه د دے نفی د پاره د تشبیه ده یعنی روستو کیدل دا سے نفی دی لکه چه مخکښ کیدل امکان نه لری۔

إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ

که راغلل تاسو ته رسولان ستاسو نه بیانوی

عَلَيْكُمْ آيَاتِي ۙ فَمَنِ اتَّقَىٰ وَأَصْلَحَ

په تاسو باندے ایتونه زما پس چاچه ځان بچ کړو د شرک نه او عمل ئے اوکړو په سنت باندے

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٣٥﴾ وَالَّذِينَ

نو نه به وی یره په دوی باندے او نه به دوی غمژن کیږی. او هغه کسان

كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا أُولَٰئِكَ

چه دروغژن کوی ایتونه زمونږ او لوئی کوی د هغے نه دغه کسان

أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٣٦﴾ فَمَنْ

اُور والا دی دوی به په هغے کښې همیشه وی. پس څوک

۳۵ دا څلورم خطاب دے د پاره د بیان د معیار د جنت او د جهنم. او د خطاب په اول کښې قُلنا پټ دے مطلب دا دے چه کله آدم علیه السلام راکوز شو نو هغه وخت نه دا خطاب د هغه اولاد ته متوجه دے نو هغه سلسله د رسالت جاری وه په محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے ختم شوه.

سوال: دا ایت خو دلالت کوی چه د رسولانو د راتللو سلسله د قرآن نه روستو هم جاری ده؟
جواب: مخکښې مونږ ذکر کړې دی چه دا خطابات څلور په هغه وخت کښې وو چه آدم علیه السلام ئے راکوز کړو په دے قرینے سره چه دا سے مضمون والا ایت په سورة بقره ۳۸ او سورة طٰهٰ ۱۲۳ کښې هم ذکر دے د پاره د غایة تشریعی د اهباط. نو د دے وجے نه د دے په ابتداء کښې قلنا پټ دے. جواب: ابن جریر د یسار سلمی روایت راوړے دے چه الله تعالیٰ آدم او د هغه اولاد په خپل کف (ورغوی) کښې واچول او دا خطاب ئے ورته کړے وؤ نو لفظ د قلنا پټ دے (روح المعانی).

۳۶ دا تخویف دے روستو د بشارت نه. تکذیب مقابل دے د تقوی او استکبار مقابل دے د اصلح. یا تکذیب په ژبے سره دے او استکبار په زړه سره دے. په اول ایت کښې فاء ئے په فَمَنِ اتَّقَىٰ کښې ذکر کړے وه او دلته په خبر کښې فاء ذکر نه کړه ځکه چه بنا د بشارت په تاکید او مبالغه باندے ده او بنا د تخویف په مسامحه باندے ده. دا رنګ

أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ

دیر ظالم دے ډېر هغه چا نه چه جوړ وي په الله تعالی باندے دروغ یا د روغژن گڼړي

بِاٰيٰتِهٖ ۚ أُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ ۗ

آیتونه زمونږ دغه کسان اوبه رسي دوي ته برخه د دوي لیکلے شوے (د عمر او رزق نه) په تقدیر کښې

حَتّٰٓى إِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ

ترهغے چه کله راشي دوي ته ملائک زمونږ سا اخلی د دوي نه

قَالُوْٓا أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۗ

دوي به ورته وائي څه شو هغه کسان چه تاسو به بلل په مصیبتونو کښې سیوا د الله تعالی نه

قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى أَنْفُسِهِمْ

(اوس ئے را او بلئ) دوي به وائي ورک شول زمونږ نه او اقرار به اوکړي په ځانونو خپلو

أَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ۝۳۷ قَالَ ادْخُلُوْا فِيْٓ أُمَمٍ

چه یقینًا دوي وو منکران د توحید نه - او به وائي الله تعالی داخل شئ په هغه ډلو کښې

فمن اتقی ئے مفرد راوړو او والذین کذبوا ئے جمع ذکر کړو اشاره ده چه ایمان والاړ دي او تکذیب والا ډیر دي۔

ربط دا دریم باب دے ترسے پورے په دے کښې اول زور نه ده بیا تخویف دے په بیان د حالاتو د زنکدان او برزخ او بیا د اخرت بیا زیرے دے اخروی بیا مکالمه د اصحاب اعراف او اخر کښې رد دے د شفاعت قهریه د یئے کښې ذکر دے زجر په افتراء کوونکو بیا ذکر دے د حالت د نزع او برزخ او په هغے کښې رد دے د شرک فی الدعاء۔ افتری ئه مراد د دے نه نسبت د شریک او ولد دے الله تعالی ته۔

او کذب بایته مراد د دینه هغه کسان دي چه په سلا کښې ذکر شول۔

نَصِيْبُهُمْ هر انسان د پاره په تقدیر کښې عمر او رزق او اعمال مقرر شویدی هغه د دهٔ حصه ده. مِنَ الْكِتٰبِ مراد د دے نه کتاب د تقدیر دے. رُسُلُنَا اشارة ده چه په وخت د مرګ کښې ډیر ملائک راځي هاں روح یو ملک قبض کړي او بیا ئے نورو ملائکو ته او سپاري لکه چه حدیث کښې ذکر دي د دے وجے نه

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ

چه تيرے شوے دي مخکښ ستاسو نه دَ پيريانو او انسانانو نه

فِي النَّارِ ۖ كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَعَنَتْ أُخْتَهَا ۖ

په اُور کښ هر وخت چه داخل شي يوه ډله لعنت به کوي په ملګرو خپلو

حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا قَالَتْ

ترڅو چه کله يوځائ شي په هغے کښ ټول او به وائي

أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا

روستني خلق دَ ړومبو (مريدان) په باره دَ مخکنو (پيرانو) کښ اے ربه زمونږه دے کسانو بے لاری کړي يو مونږ

فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِنَ النَّارِ ۖ قَالَ

نو ورکړه دوي ته عذاب دوچند دَ اُور نه - او به وائي الله تعالى

لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِنْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾

هر يو لره دوچند عذاب دے او ليکن نه پوهيږئ تاسو.

په سورة سجده ۱۲ کښ يو ملک ذکر دے. قَالُوا دا زجراً ويناده. ضَلُّوا عَنَّا اشاره ده چه کدوي معبودان چه صالحين وُو هغه کدوي دَ دعا نه ناخبر وُو دے وجے نه هغوي دَ دوي ته به غائب وي. أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ دا دليل دے چه دُعا دَ غيرالله کفر دے. دَ دے ۳۷ ايت نه معلومه ده چه مشرک ته په وخت دَ زنکدان کښ ويلے کيږي چه خپل مدګاران را اوبله که هغوي درسره مدد کولے شي. ليکن هغه معبودان نه په جسماني او نه په روحاني طريقه امداد کولے شي.

۳۸ دے ايت کښ حال دَ برزخ دے او خطاب ارواحو ته دے يا دا حال دَ حشر دے او خطاب به په ورځ دَ قيامت وي او دا ايتونه په باره دَ مشرکانو پيرانو او ملايانو کښ دي چه هغوي به دَ خپلو مريدانو او مقتديانو سره دا مکالمه کوي. لَعَنَتْ أُخْتَهَا دا سے په سورة عنکبوت ۲۵ کښ هم دي. أُخْتَهَا نه مراد مشابه دي په شرک او کفر کښ او تعبير په مؤنث سره دَ سپکوالي دَ پاره دے. ضِعْفًا يو عذاب دَ خپلے ګمراهئ او بل عذاب دَ ګمراه کولو ځکه چه حديث کښ راغلے دي چا چه دعوت اوکړو

وَقَالَتْ أُولَاهُمْ لِأُخْرَاهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ

او اوبه وائي مخکني د هغوي روستنو ته پس نيشته تاسو لره

عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ

په مونږ باندې څه احسان پس اوڅکئ عذاب په سبب د هغې چه تاسو

تَكْسِبُونَ ﴿۳۹﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا

کول - يقيناً هغه کسان چه دروغژن کړي دي آيتونه زمونږ

وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ

او ځان يې لوئے گڼلے د هغې نه نه به شي پرانستلے کيدے د دوي ارواحوته دروازے د اسمان

وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ

او نه به داخليدے شي جنت ته ترڅو چه ورننوځي اوښ په سوم

الْخِيَاطِ ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ ﴿۴۰﴾

د ستن کښ او د غسے سزا ورکوؤ مونږ مجرمانو ته .

گمراهئ ته نو په هغه باندے به د خپل گناه نه علاوه گناه د تابعدارئ کونکو د هغه هم وي.
لِكُلٍّ ضِعْفٌ عذاب د تابعدارو د پاره هم دوه وجے دي يو گمراهي قبلول او بل تقليد
کول د گمراهانو اشاره ده چه د جهل د وجے تقليد په کفر او شرک کښ عذر نه دے هاں
ضعف د عذاب د مشرانو به د پيروي په سبب د پيروالي د تابعدارانو سره.
ف۳۹ مِنْ فَضْلٍ ستاسو په مونږ څه احسان نيشته ځکه که مريدانو دوي له تحفے
ورکړيدي نو پيرانو ورله لنگرے ورکړے دي يا ستاسو په مونږ څه غوره والے نيشته
تاسو هم زمونږ په شان گنهگار يئ او دا دوي ته د لِكُلٍّ ضِعْفٌ نه معلومه شوه.
تَكْسِبُونَ کسب هغه عمل ته وئيلے شي چه هميشه کيږي يعني مشرکانو خپل
شرکي عملونه هميشه کول.
ف۴۰ مخکښ ايتونوکښ ذکر د دخول د دوي وو جهنم ته اوس دے ايتونوکښ ذکر
د محروم کيدلو د دوي دے د جنت نه. لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ الخ يعني د مؤمنانو د اعمالو او
دعاگانو او د ارواحو د پاره خو دروازے د اسمان پرانستے کيږي او د کافرانو د پاره

لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنْ فَوْقِهِمْ

دَپاره دَدوی دَ جهنم نه تولاړپانے په وی او دَپاسه دَ دوی په

غَوَاشٍ ؕ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۱﴾

برستنے (دَاور) وی او دغسے سزا ورکوو مونږ ظالمانو ته۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُكَلِّفُ

او هغه کسان چه ایمان یَے راوړیدلے او عملونه یَے کړیدی په طریقه دَنبی تکلیف نه ورکوو مونږ

نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَآ ؗ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ

هیڅ چاته مګر په قدر دَ وس دَ هغه دغه کسان جنت والا دی

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۴۲﴾ وَنَزَعْنَا مَا فِيْ

دوی به په هغے کښں همیشه وی۔ او اوبه باسو مونږ هغه چه په

نه پرانستے کیږی بلکه حدیث کښں راغلے دی چه دَ کافر روح چه دروازے دَ آسمان ته اوخیژوی نو واپس یَے شکته سجین ته راګوزارکړی او هغے ته روح خبیث وئیلے شی ځکه چه دَ اُوخ ورننوتل په سوم دَ ستنه کښں ممتنع دی نو دا رنګ دَ مشرکانو جنت کښں داخلیدل ممکن نه دی او دے ته تعلیق بالمحال وئیلے کیږی۔ دَ ابن مسعود رضی الله عنه نه یوکس تپوس اوکړو چه جمل څه څیز دے نو هغه ورته اُوئیل دَ اوښے خاوند۔ یعنی اشاره یَے اوکړه جهالت دَ تپوس کوونکی ته چه طلب دَ بلے معنی په دے کښں تکلف دے (شربینی)۔ او بعضو وئیلے دی چه په بل قراءت کښں الجمّل په شد سره راغلے دے او هغه رسئ دَ کیشتئ او دَ جهازونو ته وئیلے شی چه دَ سمندر په غاړه یَے په هغے سره تړی۔

سلک داهم په تخویف اخروی کښں داخل دے۔ مِهَادٌ هغه بستره چه غوړیدلے وی دَ پاره دَ سملا ستلو او غَوَاشٍ هغه چه دَ پاسه نه یَے پټوی او دا اشاره ده چه اور دَ جهنم به په دوی باندے احاطه کړے وی دَ هر طرف نه مجرمین یَے دَ حرمان سره ذکر کړو او ظالمین یَے دَ احاطے سره ذکر کړو ځکه چه ظلم غټ ګناه دَ دَ جرم نه۔

سلک دا زیرے اخروی دے۔ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اه دا جمله معترضه ده چه ایمان او عمل صالح ستاسو دَ وس نه بهر نه دی او اشاره ده چه مؤمن دَ پاره ضروری دی چه خپل وس او طاقت دَ جنت دَ حصول دَ پاره خرچ کړی۔

صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ

سینو دَ دوی کښ وی خه خفګان بهیږی به لاندے دَ بنګلو دَ دوی نه

الْاَنْهٰرُۚ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدٰىنَا

ولے اووائی به دوی صفتونه دَ خدائے ټول الله تعالیٰ لره دی هغه ذات چه راورسولو مونږ

لِهٰذَا ۗ وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا اَنْ هَدٰىنَا

دے ځائے ته او مونږ نه شو راورسیدلے دلته که نه رارسولے مونږ لره

اللّٰهُ ۚ لَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۗ

الله تعالیٰ یقینًا راغلی وو رسولان دَ رب زمونږ به حق بیان سره

وَنُوْدُوْٓا اَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ اُوْرِثْتُمُوْهَا

او آواز به اوکړیشی دوی ته چه دا جنت دے درکړے شویدے تاسو ته

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ

په وجه دَ هغه عمل چه تاسو کوؤ. او آواز به اوکړی جنت والا

۴۳ مطلب دادے چه که څوک اووائی چه په جنت کښ چه دَ یوبل نه دَ درجے اوچته وی نولاندے درجے والا به خفه کیږی او دیته غِل وئیلے شی نوجواب اوشو چه دا طبعي خفګان به الله تعالیٰ دَ دوی دَ زړونو نه اوباسی دا سے په سورة حجر ۴۷ کښ هم دی. هَدٰنَا لِهٰذَا دے ایت کښ دَ هدایت اُخری مرتبه مراد ده چه هغه جنت ته داخلول دی. بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ سوال: حدیث کښ راغلی دی چه جنت ته په عمل نه شی داخلیدلے بلکه په رحم دَ الله تعالیٰ به داخلیږی؟

جواب: یو توجیه داده چه هلته دَ رحمت نه مراد توحید دے او دے ایت کښ دَ مَا تَعْمَلُوْنَ نه مراد هم توحید دے بله توجیه داده چه رحمت سبب باطنی دے او عمل سبب ظاهری دے. بله توجیه داده چه رحمت سبب دَ دخول جنت دے او عملونه سبب دَ درجاتو دَ جنت دی. غِلٍّ دا بے اختیاره خفګان دے نو ګناه نه دے په دے شرط چه حسد او بغض ته او نه رسیږی. مِنْ تَحْتِهِمُ لاندے دَ بنګلو دَ دوی نه یا لاندے دَ تصرف او اختیار دَ دوی نه.

أَصْحٰبَ النَّارِ أَنْ قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا

اُور والو ته چه یقینًا مونده لے دے مونږه هغه (جنت) چه وعده کړے وه مونږ

رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُّمْ مَّا وَعَدَ رَبُّكُمْ

رب زمونږ حقه نو آیا اوموندو تاسو هغه (اور) چه وعده کړے وه رب ستاسو

حَقًّا ۖ قَالُوا نَعَمْ ۚ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ

حقه او به وائي دوی هاؤ نو اعلان به اوکړی یو اعلان کوونکے په مینځ د دوی کښ

أَنْ لَّعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٤﴾ الَّذِيْنَ

چه لعنت دَ الله تعالیٰ دے په ظالمانو باندے، دا هغه کسان دی

لَقَدْ جَآءَتْ ۴۳ دا ذکر دَ سبب دَ حصول دَ جنت دے په طور دَ خوشحالئ سره او دَ دے جملے نه روستو عبارت پټ دا دے "فاهتدینا" مونږ هدایت اوموندلو. اُوْرِثْتُمُوْهَا ذکر دَ میراث او مراد ترینه استحقاق دے پشان دَ میراث چه حق دَ وارث دے او بعض مفسرینو ذکر کړیدی چه حدیث کښ راغلے دی چه دَ هر شخص دَ پاره په جنت او جهنم کښ منزلونه دی نو چه کافران جهنم ته داخل شول نو دَ هغوی منزلونه دَ جنت مؤمنانو ته په میراث کښ پاتے شول دَ دے وجے نه اورثتموها ئے ذکر کړو.

۴۴ دَ دے اوازونو دَ وجے نه دَ دے ورځ یونوم یوم التناد دے لکه په سورة مؤمن ۳۲ کښ دے او دینه یوم الاذان هم وائي. طاؤس هشام بن عبدالملک بادشاه ته اوئیل اِتَّقِ اللّٰهَ وَاحْذَرْ يَوْمَ الْاَذَانِ، هغه ورته اوئیل یوم الاذان څه دے نو دا ایت ئے ورته اولوستلو او هشام بے هوشه پریوتو. طاؤس اوئیل هذا ذلّ الصفة فکیف ذل المعائنة، یعنی دا ذلت دَ بیان نه پیدا شو نو دَ معائنے ذلت به څنګه وی او دَ دے ایت نه منادات شروع کیږی په څلورو طریقو سره اوله طریقه نداء دَ جنت والو ده جهنم والو ته او په دے کښ مقصد تخویف اخروی دے.

مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا مراد هغه دی چه دَ ۳۷ نه تر ۴۱ پورے تخویفات ذکر شول کافران به دَ هغے اقرار اوکړی او دَ هغے وعیدونو اختتام ئے په الظالمین سره کړے و ونو دَ لعنت سره ئے هم ظالمین ذکر کړو.

يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا

چه منع كول ئې خلق دَ لار دَ الله تعالىٰ نه او لټوي ئې په هغې كښې

عِوَجًا ۚ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ كٰفِرُوْنَ ﴿۴۵﴾

كوږوالے (رېشكونو اچولو) او دوى دَ آخرت نه منكر دى۔

وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْاَعْرَافِ رِجَالٌ

او په مينځ دَ دوى كښې په پرده وى او په اوچت ځائې دَ دے حجاب په څه كسان وى

يَّعْرِفُوْنَ كُلًّا ۢ بِسِيْمٰهُمْ ۚ وَنَادَوْا اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ

چه پيژنى به هر يو لره په نخو دَ هغوى او آواز به اوكړى دوى جنت والا ته

اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۟ لَمْ يَدْخُلُوْهَا

چه سلام دے وى په تاسو باندے. نه دى داخل شوى (دا اعراف والا) جنت ته

۴۵ داتفسير دَ هغه ظلم دے چه په هغې سره دوى مستحق دَ دغه عذابونو اوګرزيدل عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ عام دے توحيد، ايمان، قرآن او سنت ته دَ هغې نه منع كول غټ ظلم دے۔

عِوَجًا په معنى دَ معوجة دے يعنى لټوى كږه لار- يا يبغونها په معنى دَ يبغون فيها دے عوجا په خپله معنى دے يعنى لټوى په دغه حقه لار كښې كوږوالے په شبهاتو او طعنونو سره۔

شربينى دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه نقل كړے دى چه مونږ ته كوى دَ پاره دَ غير الله او تعظيم دَ هغه څيزونو چه الله تعالىٰ ورله تعظيم نه دے وركړے او عوج په زير دَ عين سره استعماليږى په دين او معنوى څيزونو كښې او په زور دَ عين سره استعماليږى په اجسامو كښې او دا ۴۵ آيت په سورة هود ۱۹ كښې راغلے دَ هلته ئې دَ شهادتونو نه روستو ذكر كړے وو نو دَ تاكيد دَ پاره هم ضمير ئې دوه كرته ذكر كړيدے.

وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ

او دوی طمعه لري او کله چه واړولے شي نظرونه دَ دوی

تِلْقَآءَ اَصْحٰبِ النَّارِ قَالُوْا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا

طرف دَ اور والو ته دوی به او وائي اے ربه مه ګرځوے مونږ

مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۷﴾ وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ الْاَعْرَافِ

سره دَ قوم ظالمانو ته (په اور کښ)۔ او آواز به او کړي اعراف والا

رِجَالًا يَّعْرِفُوْنَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ قَالُوْا مَآ اَغْنٰى

هغه کسانو ته (په جهنم کښ) چه پیژني به هغوي لره په نخو دَ هغوي او به وائي څه فائده درکړه

عَنْكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

تاسو ته جمع کولو ستاسو او هغه چه تاسو په هغے لوئي کوله ۔

ع ۵ / ۸ / ۱۲

ﻫﻠﮯ دے حجاب ته سور (دیوال) هم وائي لکه سورة حدید ۱۳ کښ، او دَ دے پورته حصے ته اعراف وائي دَ دے ځائے ته دَ اعراف والو دوه ندا ګانے ذکر کوي اوله ندا ء جنت والو ته۔ دَ اعراف دَ اوسیدونکو په باره کښ دَ مفسرینو لس اقوال دي غوره قول په هغے کښ چه حدیث مرفوع ابن کثیر نقل کړے دے دا دے چه دا هغه خلق (مؤمنان) دي چه نیک اعمال او بد اعمال ئے برابر وي نو څه وخت پورے به دوی دَ جنت نه حصار کړے شي او دَ جهنم نه به ئے بچ ساتي لکه په دے آیت کښ لم یدخلوها ذکر دے بیا به ئے روستو جنت ته داخل کړي لکه چه په ۴۹ کښ راځي۔ بِسِيْمٰهُمْ نخے دَ جنت والو سپین مخونه او لا سونه او خپے۔ او نخے دَ جهنم والو تور مخونه او زیړے سترګے اَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ دا په طریقه دَ سلام تحیه سره دے یا جمله خبریه ده یعني بچ ئے تاسو دَ آفاتو او دَ اور دَ جهنم نه۔ وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ وجه دَ طمع دا ده چه دَ اور والو سره ئے نه دي یوځائے کړي نو طمع دَ جنت ئے پیدا شوه۔

ﻫﻠﮯ اشارة ده په صیغه دَ مجهول کښ چه دوی په خپله رضا سره جهنم طرفته نه ګوري الله تعالی به دَ دوی مخونه بغیر دَ اختیار دَ دوی ته اور طرف ته او ګرځوی نو دوی به او ویریږي هسے نه چه الله تعالی مونږه جهنم ته بوزي نو دُعا به او غواړي رَبَّنَا اه۔

ﻫﻠﮯ دا دویمه ندا ده دَ اعراف والو جهنمیانو ته۔ رِجَالًا مراد دَ دے نه مالدار او متکبرین دي چه منکر وو دَ توحید نه۔ مَآ اَغْنٰى ما نافیه یا استفهامیه دے۔ جَمْعُكُمْ نه مراد جمع کول

أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللَّهُ

(او به وائي ملائک کافرانو ته) آیا دا هغه کسان دي چه تاسو به قسم کوؤ چه او به نه رسوي دوی ته الله تعالیٰ

بِرَحْمَةٍ ۚ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ

هیڅ رحمت (او به وئیلے شي اعراف والو ته) داخل شئ جنت ته نه به وي هیڅ یره په تاسو باندے

وَلَا أَنْتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٤٩﴾ وَنَادَىٰ أَصْحَابُ النَّارِ

او نه به تاسو خفه کیږئ - او آواز به اوکړي اور والا

أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ

جنت والو ته چه راتوے کړئ په مونږ باندے د اوبو (د جنت) نه

أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ ۚ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَهُمَا

یا (را او غورځوئ) د هغے نه چه درکړي تاسو ته الله تعالیٰ - دوی به اُوائي یقیناً الله تعالیٰ منع کړي دا دواړه

عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٥٠﴾ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ

په کافرانو باندے، (دا کافران) هغه کسان دي چه جوړ کړے وو دین خپل

---

د مالونو یا ډلے د منکرو دی - وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ مراد د دے نه جاه د دنیا یا تابعداران (مریدان وغیره) دی -

۴۹ دا قول د ملائکو دے خطاب دے جهنم والو ته - اُدْخُلُوا دا قول د ملائکو دے اصحاب اعراف ته - أَقْسَمْتُمْ او لکه په سورة انعام ۵۳ او په سورة تطفیف ۲۹ نه تر ۳۲ پورے ذکر دی -

۵۰ دا خلورمه ندا ده هر کله چه اعراف والا د مینځ نه لرے شول - او دا ایت دلیل دے چه په جهنم والو باندے لوږه او تنده راوستلے شي او د جنت د نعمتونو نه دوی همیشه محرومه دی - مِمَّا رَزَقَكُمُ مراد د دے نه نور مشروبات د جنت دی نو افیضوا سره متعلق دے یا مراد د دے نه د خوراک څیزونه دی او القوا پټ دے - حَرَّمَهُمَا مراد د دے نه تحریم لغوی دے یعني منع کول ځکه چه په قیامت کښ تحریم او تحلیل شرعي نیشته دے -

لَهْوًا وَّلَعِبًا وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ

مشغله او لوبے او دهوکه کړے وُو دوی لره ژوند دنیوی

فَالْيَوْمَ نَنْسٰىهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ

پس نن به هیر ګړو (پریږدو) دوی په عذاب کښې لکه څنګه چه هیر کړے وه دوی پیښے (ملاقات) د دورځے

هٰذَا ۙ وَمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۵۱﴾

او (څکه) چه وو دوی چه زمونږ د ایتونو نه ئے انکار کوو۔

وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ

او یقیناً راوړے دے مونږ دوی ته کتاب په تفصیل بیان کړے مونږ هغه لره په علم سره

هُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾

هدایت دے او رحمت دے د پاره د هغه قوم چه ایمان لری۔

۵۱ د دے تفسیر سورۃ انعام ۷۰ کښې ذکر شوے دے او اسباب د عذاب دوه دی یو انکار د قیامت دویم د ایتونو نه انکار کول نو کَمَا کښې کاف تعلیلیه دے مَا مصدریه دے وَمَا كَانُوْا عطف دے په مَا نَسُوْا باندے۔ لَهْوًا وَّلَعِبًا شربینی فرق ذکر کړے دے یعنی هغه کار چه مناسب نه دے هغے ته همت صرف کول او همت ورته صرف کړی نو او خوشحالی طلب کول په هغه څیز چه په هغے خوشحالی نه حاصلیږی دا لعب دے۔ او الوسی وئیلی دی چه دواړه لفظونه شریک دی په اشتغال کښې په بے مقصده څیز باندے او فرق ئے دا دے چه لعب هغه دے چه مقصد په هغے کښې زر مسرت حاصلول وی او لهو هغه څیز دے چه مشغولتیا پیدا کوی اګر چه خوشحالی پکښې نه وی۔
فائده: په سورۃ انعام کښې لعب مخکښې کړے او په دے سورت کښې لهو مخکښې کړے ده وجه دا ده چه سورۃ انعام ۳۲ کښې لعب اول ذکر کړے دے نو د هغے په مناسبت سره په نک کښې هم اول ذکر کړو او په دے سورت کښې د مشرکانو په بربنډه باندے طواف او نورخیزونه حرامول ذکر کړل او هغه مشغولتیا ده او دوی ورته هم لوبے نه وئیلے نو د هغے په مناسبت سره لهو ئے دلته مخکښې ذکر کړو۔

غَرَّتْهُمُ، غرة غفلت دے په حال د بیدارئ کښې او طمع کول د انسان دی د اوګد عمر او خائسته ژوند او ډیر مال او حصول د جاه او د شهواتو د پاره او هغه سبب اوګرځی د غفلت د دین نه۔
۵۲ ترغیب دے قرآن ته او علت د هغه زجر دے چه مخکښې ایت کښې ذکر شوے دے

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ ؕ يَوْمَ يَاْتِيْ تَاْوِيْلُهٗ

انتظار نه کوی دوی مګر دَ عاقبت دَ انکار دَ دے کتاب په کومه ورځ چه راځي عاقبت دَ انکار دَ دے

يَقُوْلُ الَّذِيْنَ نَسُوْهُ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَآءَتْ

او وائي هغه کسان چه هیر کړے دے دا کتاب دَ مخکښ نه یقینًا راغلی وو

رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۚ فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ

رسولان دَ رب زمونږه په حق سره (لیکن مونږ اونه منل) نو آیا شته مونږ لره څه سفارشیان

فَيَشْفَعُوْا لَنَآ اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِيْ

پس چه سفارش اوکړي مونږ لره یا واپس کړے شو (دنیا ته) پس عمل به اوکړو غیر دَ هغه عمل نه

كُنَّا نَعْمَلُ ؕ قَدْ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ

چه مونږ کوو. یقینًا تاوان کښ واچول دوی ځانونه خپل او ورک به شي

عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۵۳﴾ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ

دَ دوی نه هغه چه دوی دروغ جوړول. یقینًا رب ستاسو الله تعالیٰ دے

ع ۶ / ۱۳

یعنی مونږ دوی لره تفصیل دَ احکامو دَ پاره هدایت او رحمت دا کتاب راوړے دے نو دوی ولے انکار کوی.

۵۳ دا هم بیره اخروی ده. تَاْوِيْلَهٗ ضمیر کتاب ته راجع دے او مراد دَ تاویل نه عاقبت دَ انکار دَ کتاب دے او هغه عاقبت (چه عذاب ابدی دے) بنسکاره کیږی به په ورځ دَ قیامت او قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ الخ په دے کښ اشاره ده چه دَ قرآن منکرین دَ ټولو رسولانو منکران دی او دا منکرین دَ مخکنو رسولانو دَ حال نه خبر شوی وو په قرآن کښ یا ضمیر دَ نَسُوْهُ راجع دے يَوْمَ ته نو په یکښ حال دَ مخکنو او روستنو ټولو منکرینو دے. فَهَلْ لَّنَا مِنْ شُفَعَآءَ یعنی دوی ته معلومه شوه چه دَ بچ کیدلو سبب خو یا شفاعت دے یا دَ نیک عمل دَ پاره دنیا ته واپس کیدل او دا دواړه نشي کیدلے.

شُفَعَآءَ کړ دے نه سفارشیان قهری (یعنی بے اذنه) مراد دی ځکه دا عقیده دَ مشرکانو وه په باره دَ معبودانو خپلو کښ لکه چه په سورة یونس ۱۸ کښ دی اَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ الخ دَ دے جواب په سورة انعام ۲۸ او سورة مومنون ۱۰۰ او سورة سجده ۱۲ او سورة فاطر کښ

الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِىْ سِتَّةِ

هغه ذات چه پیدا کړی دی اسمانونه او زمکه په (اندازه) د شپږ

اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ قف يُغْشِى

ورځو کښې بیا برابر شو (د خپل شان مناسب) په عرش پاندے اغوندوی

الَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا وَّالشَّمْسَ

شپه ورځ ته چه طلب کوی یو بل لره په تېزئ سره او پیدا کړے دے نمر

وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍ بِاَمْرِهٖ اَلَا لَهُ

او سپوږمئ او ستوری تابع کړے شوی دی د حکم د هغه. خبردار الله تعالیٰ لره

الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۵۴﴾

پیدا کول دی او اختیار دے برکات ورکوونکے دے الله تعالیٰ، پالونکے د عالمو دے -

شته دے . قَدْ خَسِرُوْٓا متعلق دے نرد فنعمل سره یعنی دوی خپل ژوند په ناکاره اعمالو کښې برباد کړے دے . وَضَلَّ اه متعلق دے د شفعاء سره .

۵۴ کد دے ځائے نه دویمه حصه د سورت ده په دے کښې درے بابونه دی اول باب تر ۵۸ پورے دے په دے کښې اول درے ایاتونو کښې مسئله د توحید ده په لس جملو سره او په هغې کښې تعریف د الله تعالیٰ دے په رد د شرك فى الربوبيت والخلق والأمر والبركات او په دُعا سره . بیا یو مثال دے بیا د پنځه انبیاؤ واقعات اول درے او پنځمه واقعه کښې ذکر دی چه دے انبیاؤ مسئله د توحید په بهادرئ سره بیان کړے وه او شلورمه واقعه کښې ذکر دی چه لوط علیه السلام د الله تعالیٰ نازل کړے شوی حکم ته خپل قوم را اوبللو او د شیطان د تابعدارئ نه یې خلق منع کړل او اخر کښې ایاتونه کد دے قصو سره تعلق لری او ابتلاء بالنعم والنقم ذکر کوی. ربط د ما قبل سره دا دے چه مخکښې او ئیلے شو چه د دوی شفعاء فائده نشی ورکولے ځکه چه هغوی معبودان نشی کیدلے معبود خو صرف الله تعالیٰ دے چه موصوف دے په دے صفتونو سره . د دے ایت حاصل دا دے چه الله تعالیٰ ستاسو رب[۱] دے خالق[۲] دے عرش والا[۳] دے نظام چلوونکے[۴] دے هر څه د هغه د حکم د لاندے دی اختیار[۵] منددے برکات ورکوونکے دے . اِنَّ رَبَّكُمُ شريعتى

وئیلے دی چه رب په معنیٰ دَ سیّد او مولا او مصلح دَ کاروتو او فائدے رسَوُنکے او مصیبتونه دفع کوونکے دے۔ فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ مراد دَ دے نه ورځے دَ آخرت دی چه هره ورځ زر کاله ده ابن کثیر وئیلے دی چه دا قول دَ مجاهد او دَ ضحاك دے دَ ابن عباس نه ئے روایت کوی یا مراد دَ دے نه ورځے دَ دنیا دی۔

سوال؛ ورځے دَ دنیا دَ نمر دَ ختلو او پریوتلو نه معلومیږی او هغه خو په دغه وخت نه وؤ پیدا شوے؟

جواب؛ مراد دَ دے نه مقدار دَ شپږو ورځو دے لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ لَهُمْ فِيهَا رِزْقُهُمْ بُكْرَةً وَعَشِيًّا۔ او دا شپږ ورځے سورة حٰم سجده بقره کښ ذکر دی اوله ورځ دَ اتوار ده او په جمعه باندے ختم شوے دے او دَ خالی ورځ خالی ده یعنی پیدائش دَ زمکے اسمانونو وغیره ئے په شپږو ورځو کښ کړے وو او دَ خالی (شنبے) ورځ هم دغسے پاتے وه۔ او کوم حدیث چه مسلم په باب دَ خلق آدم کښ راوړے دے چه په هغے کښ ابتدا دَ خلق دَ خالی ورځ ده او ټولے ورځے دَ پیدائش اووه دی نو هغے باندے ابن کثیر رد کړے دے۔ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ دا دَ هغه صفاتو نه دے چه په معنیٰ سره محکمات دی ځکه چه معنیٰ ظاهری ئے معلومه ده او په اعتبار دَ کیفیت سره متشابهات دی یعنی کیفیت ئے مجهول دے لکه چه دَ عرش معنیٰ معلومه ده او حقیقت ئے معلوم نه دے دارنګ استواء او علو دَ الله تعالیٰ معنًا معلومه ده لیکن کیفیت ئے معلوم نه دے نو عرش او استواء او اوچت والے معنیٰ ظاهری مراد ده بغیر دَ تشبیه او تمثیل او تاویل او تکییف او تجسیم نه او دا مذهب دَ سلف صالحینو دے په ټولو متشابهاتو کښ دَ امام مالك اوزاعی، ثوری، لیث، شافعی، احمد، او اسحاق بن راهویه امام ابوحنیفه وغیرهم.

دَ امام مالك مشهور قول دا دے چه الاستواء غیر مجهول والکیف غیر معلوم والایمان به واجب والسوال عنه بدعةٌ دَ نعیم بن حماد (دَ بخاری استاذ) نه روایت دے چه چا الله تعالیٰ مشابه کړو دَ مخلوق سره نو کفر ئے اوکړو او چا چه دَ الله تعالیٰ دَ یو صفت نه انکار اوکړو نو کفر ئے اوکړو او قول دَ سلف صالحینو تفویض نه دے ځکه چه تفویض په صفاتو کښ دا دے چه دَ استواء او ید وغیره بنکاره معانی (لغوی حقیقی) نه منی یعنی متشابه په معنیٰ او کیفیة ئے ګڼړی او قول دَ سلف کښ معنیٰ حقیقی لغوی سره به تعبیر کیدے شی لیکن کیفیت نه به بحث نه کیږی او دَ دے مسئلے زیات تفصیل او سوال وجواب دَ شیخ الاسلام په

فتاوی جلد ۵ او جلد ۳ او د ابن قیم کتاب الصواعق المرسله او د امام ذهبي مختصر کتاب العلو او نور ډیر کتابونه د سلف صالحینو کښې اوګورئ او ایتونه د استواء په قرآن کریم کښې په ګنړو سورتونو کښې دي یونس ۳ رعد ۲ طٰه ۵ فرقان ۵۹ حم سجده ۴ حدید ۴. او څوک چه د دے تاویل کوي په بادشاهئ سره یا د استولی معنی کوي په استولی سره نو شربیني په هغې باندے ردکړے دے چه دا شاذ قول دے دویم دا چه دا د حقیقت نه مجاز ته اوړیدل دي او کوم شعرونه چه پیش کیږي چه استوی په معنی د استولی دے په هغې باندے ردکړے دے او د دے مسئلے تفصیل ځما په یو مستقله رساله (غیر مطبوعه) کښې شته۔

يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ دا جمله دواړو طرفونو ته شامل ده مراد د دے نه تصرف انقلابي زماني دے چه دا د الله تعالیٰ په اختیار کښې دے۔ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا یعني په مینځ کښې دا سے وخت نه راځي چه نه شپه وي او نه ورځ وي۔ وَالشَّمْسَ الخ عطف دے په السموات باندے د خلق د لاندے دے۔ مُسَخَّرٰتٍ یعني تابع کړے شویدي د هغه حالاتو چه الله تعالیٰ ترینه اراده لري ښکاره کیدل۔ پټیدل۔ کسوف او خسوف را تلل او لرے کیدل نزدے کیدل وغیره۔ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ مخکښې صرف خلق د امورو خاصو ذکر کړے دے او په دے جمله کښې عام خلق او په طریقه د حصر سره ذکر کړیدے د پاره د افادے د توحید۔ وَالْاَمْرُ ټول تصرفات تکوینیه او تشریعیه دي نو کلام الله هم امر دے سفیان بن عیینه نه نقل دے چه امر کلام الله دے او معطوف دے په الخلق باندے او عطف مغایرت غواړي نو معلومه شوه چه کلام الله مخلوق نه دے او دا مذهب د سلف صالحینو دے او ابن جریر او ابن کثیر دلته حدیث د پلار د عبدالعزیز الشامي نه نقل کړے دے وَمَنْ زَعَمَ اَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰی جَعَلَ لِلْعِبَادِ مِنَ الْاَمْرِ شَيْئًا فَقَدْ كَفَرَ بِمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَلٰی اَنْبِيَائِهٖ ترجمه: چا چه عقیده اوساتله چه الله تعالیٰ ورکړیدے بندګانو له د خپل اختیار نه څه حصه نو هغه کفر اوکړو په هغه کتابونو چه الله تعالیٰ نازل کړیدي په خپلو انبیاؤ علیهم السلام باندے۔ تَبَارَكَ دا صفت خاص دے په الله تعالیٰ پورے دا رنګ مبارک لفظ په زیر د ر سره الله تعالیٰ پورے خاص دے او مبارک په زور د ر سره الله تعالیٰ ته نه شي ویلے کیدے۔ برکت ویلے کیږي فائدے پیدا کول د اسمان او د زمکے او نمر سپوږمئ وغیره فائدے او دا رنګ فائدے زیاتول او پیدا کوونکے د هر څه الله تعالیٰ دے نو د فائدو پیدا کوونکے

ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ

دُعا غواړئ دَ رب خپل نه په عاجزئ او په پټه یقینًا اللّٰه تعالیٰ مینه نه کوی

الْمُعْتَدِينَ ۝۵۵ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ

دَ حد نه تیرو تونکو سره۔ او ورانے مه کوئ (په شرک کولو سره) په زمکه کښ

هم اللّٰه تعالیٰ دے نو برکت ورکوونکے صرف اللّٰه تعالیٰ دے او دا صیغه په قرآن کښ اته کرته ذکر ده او تفصیل دَ دے په تنشیط الاذهان کښ مونږ ذکر کړے دے۔

۵۵ دا رد دے په شرک دَ دُعا باندے تفریع ده په ما قبل باندے چه مالک او اختیارمند او برکت ورکوونکے صرف اللّٰه تعالیٰ دے نو را مدد شه وئیل او حاجت غوښتل هم په هغه پورے خاص دی او دے آیت کښ دَ دُعا رُکن او شرطونه ذکر دی رکن دا دے چه خاص دَ رب نه غواړئ او شرطونه ظاهری تضرع او په پټه سره غوښتل او اعتداء نه کول یعنی دَ طریقے دَ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم نه خلاف کول اعتداء ده۔ اُدْعُوْا مراد دَ دے نه سوال او دُعا ده چه خاص قسم دَ عبادت دے (خازن سراج المنیر)۔ تَضَرُّعًا عاجزی او تذلل په ظاهری اندامونو سره چه پیدا کیږی دَ خشوع دَ زړه نه او دَ پوره یقین نه په وحدانیت او ربوبیت دَ اللّٰه تعالیٰ سره (ابن کثیر) وَخُفْيَةً په ژبه سره په غیر دَ اوچت والی دَ آواز نه او دَ حسن بصری نه روایت دے چه صحابه کرامو به کوشش کوو په دعا کښ او آواز دَ هغوی به او ریدلے لشو په غیر دَ نری آواز نه او دا ادب سنت دَ زکریا علیه السلام دے لکه په سورة مریم ۳ کښ دی۔ ټولو مفسرینو او فقهاؤ دَ دے آیت نه استدلال کړیدے چه رفع دَ صوت په ذکر او په دعا سره په غیر دَ مواضعو شرعیه نه بدعت دے۔

إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ په دے کښ دریم شرط دَ دُعا دے په پټ عبارت سره یعنی وَلَا تَعْتَدُوا او إِنَّهُ لَا يحب دَ دے علت دے او اعتداء دَ حدودو شرعیه نه تجاوز کولو ته وئیلے شی نو دَ اعتداء په دعا کښ مختلف صورتونه دی (۱) په الفاظو کښ لکه څوک اللهم انت السلام الا کښ دا الفاظ زیات کړی "حینا ربنا بالسلام اه" (۲) په رفع صوت او جهر کولو سره (۳) په مطلوب کښ لکه چه قَصْرًا أَبْيَضَ په يَمِيْنِ (سینه ما نړئ په ښی طرف دَ جنت کښ) دَ جنت کښ غواړی (حدیث) (۴) اجتماعی شکل په هغه محایونو کښ چه جمع په هغے کښ په دلیل شرعی سره ثابت نه وی لکه فرض او سنت مونځونو نه روستو او جنازے پسے په جمع دعا کانے کول (۵) لا سونه اوچتول

بَعْدَ اِصْلَاحِهَا وَادْعُوْهُ خَوْفًا وَّطَمَعًا ؕ

پس د اصلاح د هغې نه (په توحید سره) او دُعا غواړئ د الله تعالیٰ نه په یره او طمعې سره

اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۵۶﴾

یقینًا رحمت د الله تعالیٰ نیزدے دے خاښتنه عمل کوونکو ته۔

وَهُوَ الَّذِيْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ

او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه رالیږی هواګانے زیرے ورکوونکی مخکښ

يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ؕ حَتّٰۤى اِذَاۤ اَقَلَّتْ سَحَابًا

د رحمت د هغه نه تر هغې چه کله راپورته کړی وریځے

ثِقَالًا سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَنْزَلْنَا بِهِ الْمَآءَ

درنے (په اوبو) بوځو موږ هغه زمکے اوچے ته پس راوروو موږ په هغې باندے اوبه

فَاَخْرَجْنَا بِهٖ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ كَذٰلِكَ

نو راوباسو په هغې سره هر قسم میوے د غسے

په هغه ځایونوکښ چه ثابت نه وی اولاسونه په عامو دعاګانوکښ د حد نه زیات پورته کول. دے ایت کښ رد دے په شرک باندے ځکه فساد په معنیٰ د شرک دے او اصلاح په معنیٰ د توحید ده او دا دوه شرطونه یې ذکرکړه خوف او طمع چه د باطن سره تعلق لری. رَحْمَتَ نه مراد دلته قبلول د دُعا اوثواب دے. مُحْسِنِيْنَ هغه ځوک دی چه عمل په عقیده د توحید او په طریقه د سنت سره کوی او دا رنګ لَا تُفْسِدُوْا اه دا لفظ عام دے افساد د نفوسو په قتل سره او افساد د مالونو په غصب او غلاکولو سره او افساد د دین په کفر او شرک او بدعت سره او افساد د نسبونو په زنا او عمل د قوم لوط سره او اِصْلَاح نه مراد په رالیږلو د انبیاؤ او د کتابونو الٰهیو سره ده. خَوْفًا وَّطَمَعًا دا دواړه په دُعا د صالحینو کښ په سورة السجده ۱۶ کښ ذکر دی او د باران په وخت کښ په سورة رعد ۱۲ او د برق په وخت په سورة روم ۲۴ کښ ذکر دی. رَحْمَتَ اللّٰهِ رحمت په ډیر معانو سره دے دلته معنیٰ د دعا قبلول دی. قَرِيْبٌ مذکر راوړے دے ځکه چه رحمت الله تعالیٰ ته مضاف دے

نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَالْبَلَدُ

را اوباسو به مړی (د قبرونو نه) دے د پاره چه نصیحت واخلئ ۔ او زمکه

الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهٗ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِىْ

خوږه (ښه) را اوځی بوټی د هغې نه په حکم د رب د هغې او هغه زمکه

خَبُثَ لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ۭ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ

چه خوړه وی (بے کاره) نه را اوباسی مګر بے کاره بوټی دغسے قسم قسم بیانوو مونږ

الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ ﴿٥٨﴾ لَقَدْ اَرْسَلْنَا

ایتونه هغه قوم لره چه شکر کوی ۔ یقینًا لیږلے دے مونږ

نو په دےکښې ادب دے یا رحمت په معنیٰ د ثواب دے یا د دے وجے نه چه تانیث د رحمت حقیقی نه دے۔

۵۷ ۵۸ دا یو دلیل دے د توحید عطف دے په دے قول باندے یُغشی الیل او مثال هم دے د پاره د قرآن او د بیان د توحید لکه څنګه چه د باران نه مخکښې هواوی او درنے وریځے وی دغسے د قرآن نه مخکښې کتابونو کښې بشارتونه وو د قرآن او د رسول په باره کښې او په ابتداء کښې مشرکینو ډیرے سختے مقابلے او تیرے جوړے کړے وے او څنګه چه زمکے دوه قسمه وی د یو نه په باران سره فائدے والا بوټي را اوځی او د بل قسم نه بے کاره بوټي را اوځی دغسے د قرآن بیان بعضِ خلقونه فائدة ورکوی او بعضو ته نقصان۔ كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى په دے سره اثبات د قیامت دے په طریقه د قیاس کولو۔ بل دا چه هرکله چه انسان د زمکے فصل ته اوګوری نو هسے نه چه د خوشحالئ د وجے نه دو باره ژوند هیر کړی نو ورسره ئے دا ذکر کړو د پاره د ذکر د اخرت۔ رِيَاحَ څلور قسمونه دی صَبَا وریځے را اوچتوی شَمَال وریځے جمع کوی جنوب وریځے ګرځوی دبُور وریځے جدا جدا کوی۔ بُشْرًا لکه په سورة روم ۴۸ کښې۔ الثَّمَرٰتِ هر قسم امدانئ د زمکے ته عام دے غلے، میوے، معدنیات وغیره۔ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ یعنی هغه خلق چه دا نعمتونه الله تعالیٰ ته نسبت کوی او نفع اخلی په اوریدلو د قرآن سره او توحید او طاعت قبلوی۔

نُوۡحًا اِلٰی قَوۡمِهٖ فَقَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا

نوح علیه السلام قوم دَ هغه ته پس وے وئیل اے زما قومه بندګی خاص کړئ

اللّٰهَ مَا لَکُمۡ مِّنۡ اِلٰهٍ غَیۡرُهٗ ؕ اِنِّیۡۤ اَخَافُ

الله تعالیٰ لره نیشته تاسو لره څوک مددګار سیوا دَ الله تعالیٰ نه یقینًا زهٔ یریږم

عَلَیۡکُمۡ عَذَابَ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ ﴿۵۹﴾ قَالَ الۡمَلَاُ

په تاسو باندے دَ عذاب دَ ورځے لوئے نه۔ اوئیل غټانو

مِنۡ قَوۡمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىکَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ ﴿۶۰﴾

دَ قوم دَ هغه نه یقینًا مونږ وینو تا لره په ګمراهئ ښکاره کښی۔

۵۹ دَ دے ایت نه واقعات دَ شپږو انبیاء علیهم السلام ذکر کوی چه تعلق لری دَ دَرو اړو دعوؤ دَ سورت سره لیکن اول درے ښکاره تعلق لری دَ دریمے دعوے سره چه اثبات دَ توحید دے۔ او هرے قصے خلاصه درے امور دی اول دعوت دَ نبی دویم تکذیب دَ قوم دریم نزول دَ عذاب په هغوی باندے او ربط دَ دے دَ مخکښ ایت سره دا دے لکه چه مونږ هواګانے لیګو دَ باران سره دَ اختلاف دَ زمکونه نو دا رنګ لیږلے دی مونږ انبیاء دَ شرع سره دَ اختلاف دَ قوم نه چا تصدیق اوکړو او چا تکذیب دا واقعه اول دلیل نقلی دَ په مسئله دَ توحید فی العبادت باندے اشاره ده چه دا دَ ټولو انبیاؤ اتفاقی مسئله ده نوح علیه السلام اول رسول وؤ چه دَ مشرکینو دَ مقابلے دَ پاره رالیږلے شوے وؤ دَ دهٔ نه مخکښ هم انبیاء وؤ لیکن دَ شرک سره ئے مقابله نه وه نورا صلاحی احکامو باندے رالیږلے شوے وؤ۔ اِلٰی قَوۡمِهٖ دا دلیل دے چه نوح علیه السلام دَ ټولو انسانانو دَ پاره رسول نه وؤ صرف دَ خپل قوم وؤ لیکن هغه وخت په ټوله زمکه صرف دغه خلق وو نور څوک نه وو دے وجے نه مشهوره ده چه هغه هم ټولو خلقو ته مبعوث وو په حقیقت کښ دا خصوصیت زمونږ دَ نبی اخر الزمان صلی الله علیه وسلم دے او په دے ایت کښ ذکر دَ دعوت او دَ تخویف دے۔ اِلٰهٍ په معنیٰ حقدار دَ بندګئ دے نو دا تفریع ده په امر باندے یا مراد دَ الله نه واکدار متصرف دے نو دا علت دے دَ امر چه اعبدوا دے او دا دلیل دے چه مراد دَ اعبدوا نه توحید دے۔ عَذَابَ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ دَ دنیا او دَ اخرت دواړو ته شامل دے۔

۶۰ په دے ایت کښ تکذیب دَ قوم ئے ذکر کړو اِنَّا لَنَرٰىکَ یعنی توحید ته دعوت کول

قَالَ يٰقَوۡمِ لَيۡسَ بِىۡ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّىۡ رَسُوۡلٌ

او ئیل هغه اے قومه زما نیشته په ما باندے گمراهی لیکن زهٔ رسول یم

مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۶۱﴾ اُبَلِّغُكُمۡ رِسٰلٰتِ رَبِّىۡ

دَ طرف دَ رب العلمین نه. رسوم تاسو ته پیغامونه دَ رب خپل

وَاَنۡصَحُ لَكُمۡ وَاَعۡلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۶۲﴾

او خیر لټوم ستاسو او پوهیږم دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه په هغه څه چه تاسو پرے نه پوهیږئ۔

اَوَعَجِبۡتُمۡ اَنۡ جَآءَكُمۡ ذِكۡرٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ

ایا تعجب کوئ تاسو چه راغلی ده تاسو ته وحی دَ طرف دَ رب ستاسو نه

عَلٰى رَجُلٍ مِّنۡكُمۡ لِيُنۡذِرَكُمۡ وَلِتَتَّقُوۡا

په یو سړی باندے ستاسو نه دے دَ پاره چه اویروی تاسو او چه بچ شئ دَ شرک نه

او ګنځور (ود، سواع، یغوث، یعوق او نسر) دَ بندګئ نه منع کول داګمراهی ده نو اهل حق ته دَ ګمراهئ او دَ کم عقل والی وغیره بد نسبتونه دَ زړو کافرانو عادت دے۔ اَلۡمَلَاُ دَ قوم غټان او مالدار نسب دار خلق چه په هغوی سره مجلسونه ډک ښکاری یا هغوی ډک وی دَ دنیا په مالونو او اقتدار سره دلته دَ ملاء سره کفروا نه دے ذکر کړے اشاره ده چه هغه ټول کافران وو.

۶۱ دا جواب دے دَ طرف دَ نوح علیه السلام نه قوم ته لیکن ډیر په نرمه طریقه سره۔ ضَلٰلَةٌ په جنس باندے دلالت کوی په خلاف دَ لفظ ضلال. نو نفیٔ جنس سره نفی کامله راځی۔ وَلٰكِنِّىۡ رَسُوۡلٌ دَ توحید دَ بیان سره دا دعوی دَ رسالت ده۔

۶۲ دا هم په جواب کښ داخل دے په ذکر دَ دریے احوالو دَ رسول سره اول ابلاغ دویم نصیحت (خیرخواهی او اخلاص)، دریم علم دَ وحی۔ مِنَ اللّٰهِ دلیل دے چه علم دَ نبی صرف دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه وی۔ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ او علم دَ نبی دَ اُمت نه زیات وی ځکه چه په وحی سره وی۔

وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۶۳﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاَنْجَيْنٰهُ

او دپاره د دے چه رحم اوکړیشي په تاسو باندے ـ پس دوی دروغژن اوونیل هغه ته نو بچ کړو مونږ ده لره

وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ فِى الْفُلْكِ وَاَغْرَقْنَا

او هغه خوک چه د هغه سره وو په کشتۍ کښ او غرق کړل مونږه

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا

هغه کسان چه دروغژن کړی وو آیاتونه زمونږ یقینًا دوی وو

قَوْمًا عَمِيْنَ ﴿۶۴﴾ ع وَاِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا ؕ

قوم ړاندهٔ ـ او اولیږلو مونږ عادیانو ته رور د هغوی هود (علیه السلام)

ع ۸/۶/۱۵

سے د مخکښ نه د منکرینو په ذهن کښ دا وه چه د رسالت او بشریت په مینځ کښ منافات دے نو دا وهم د دے قوم وو بلکه د دوی دا قول په سورة مؤمنون سے کښ هم ذکر دے او دا عقیده اوس هم په باطل پرستو کښ شته دے چه د نبی د بشریت نه انکار کوی لیکن موجوده منکرینو نبی نه دے لیدلے نو وائي نبي وو خو بشر نه وو او مخکنو خلقو خو انبیاء لیدلے وو او ورته معلومه وه چه دا بشر دی نو د هغوی د نبوت نه یې انکار کوو نو سبب د انکار د ټولو یو دے چه هغه منافات دے په مینځ د بشریت او نبوت کښ او دا کفر دے ـ لِيُنْذِرَكُمْ دا فائده د رسالت ده په ترتیب سره یعنی رسالت د پاره د انذار دے او انذار سبب د تقوٰی دے او تقوٰی سبب د رحم الٰهی دے او دا آیت دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام بشر او سړی وی۔

سے په دے آیت کښ دوام د تکذیب ذکر شو یعنی تمادوا (همیش والے اوکړو دوی په تکذیب باندے) وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ د دوی تعداد کښ ډیر اقوال دی راجح دا ده چه شپږ کسان وو دریے ځامن د هغه سام حام یافث او دریے د هغوی بیبیانے وے الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا اه دا لفظ دلیل دے چه طوفان د وخت د نوح علیه السلام په ټوله زمکه باندے نه وو صرف د هغه د قوم په علاقه باندے وو او هغه علاقه د عراق وه ځکه چه په هغه وخت کښ په زمکه باندے نور خلق آباد نه وو ماسیوا د دغه قوم نه نو دا خبره چه مشهوره ده چه طوفان په ټوله زمکه باندے

قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ

اوئیل دهٔ اے قومه زما بندګی خاص کړئ الله تعالیٰ لره نیشته تاسو له

اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۶۵﴾ قَالَ الْمَلَاُ

مددګار سیوا د هغه نه آیا پس نه بچ کیږئ د شرک نه۔ اووئیل غټانو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا لَنَرٰىكَ

چه کفر ئے کړے وو د قوم د هغه نه یقینًا مونږ خامخا وینو تا لره

فِيْ سَفَاهَةٍ وَّ اِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۶۶﴾

په کم عقلتیا کښ او یقینًا ګمان کوو مونږ په تا یا ندے د دروغژنو نه۔

راغلی وۀ مراد دا دے چه هغه ټوله زمکه (چه انسان پرے اباد وۀ) او دا رنګ چاچه اثار د دے طوفان موندلے دی نو صرف په زمکه د عراق کوه ارارات د موصل سره نزدے ئے موندلے دی۔ اِنَّهُمْ كَانُوْا علت د عذاب دے۔ عَمِيْنَ نه مراد د زړونو ړوند والے دے لکه په سورة حج ۴۶ کښ دی۔

۶۵ دا دویم دلیل نقلی د توحید دے۔ عاد د اولاد د سام بن نوح نه وو په څلورم پُشته کښ او هود د عاد په اولاد کښ وو په دریم پُشته کښ بیا عاد د ټولے قبیلے نوم شو۔ اَخَاهُمْ مراد د اخوت نه نسبی وۀ یعنی په قومیت کښ ورسره شریک وۀ او کله اخوت په معنیٰ د خیرخوایئ سره وی۔ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ سره تخویف ذکر دے سوال: په اوله قصه کښ فقال وۀ او دلته قال دے۔

جواب۱: فا اشاره ده اتصال او دوام ته یعنی نوح علیه السلام د مبعوث کیدلو سره متصل او همیشه دعوت شروع کړے وۀ او دا د هغه خصوصی فضیلت وۀ۔

جواب۲: فا د تفصیل د پاره ده او دلته قال جمله مستانفه ده جواب د سوال دے چه څه ئے اوئیل نو جواب اوشو چه قال الخ۔

۶۶ دا تکذیب دے د طرف د قوم نه او اشاره ده چه چا توحید بیان کړیدے نو هغه ته کم عقل او دروغژن وئیلے شویدی۔ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا په دے کښ اشاره ده چه د هغه د قوم نه بعض غټانو ایمان راوړے وۀ۔ فِيْ سَفَاهَةٍ د عقل او پوهے او د رائے کمزوروالی ته وئیلے شی دا لفظ متعلق دے د مسئلے د اُعْبُدُوْا سره

قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِىْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّىْ

اوئیل دهٔ اے قومه زما نیشته په ما پانډے هیڅ کم عقل تیا لیکن زهٔ

رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۶۷﴾ اُبَلِّغُكُمْ

رسول یم دَ طرف دَ رب العالمین نه۔ رسوم تاسو ته

رِسٰلٰتِ رَبِّىْ وَاَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ اَمِيْنٌ ﴿۶۸﴾

پیغاموته دَ رب خپل او زهٔ تاسو لره خیرخواه امانت دار یم.

اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

آیا تعجب کوئ تاسو چه راغلے دہ تاسو ته وحی دَ طرف دَ رب ستاسو نه

عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ ؕ وَاذْكُرُوْٓا

په یو سړی باندے ستاسو نه دَپاره دَدے چه اویروی تاسو لره او یاد کړئ

اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ

کوم وخت چه جوړ کړئ تاسو الله تعالیٰ ابادوُنکی دَ زمکے پس دَ قوم دَ نوح نه

---

او مِنَ الْكٰذِبِيْنَ متعلق دے دَ تتقون سره چه په هغے کښ عذاب راتللو ته اشاره ده.

ﷺ اشاره ده چه رسول کمعقل نه وی بلکه دَ هغه عقل او علم دواړه کامل وی او په دے کښ دعوٰی دَ رسالت دَ هغه ذکر دہ.

ﷺ په دے کښ درے اوصاف دَ رسول ذکر دی. نَاصِحٌ اَمِيْنٌ په صیغه دَ اسم فاعل سره اشاره ده شهرت دَ دے صفاتو ته عمومًا. یا نَاصِحٌ په دعوت دَ توحید کښ او اَمِيْنٌ په دعوٰی دَ رسالت کښ.

سوال؛ په باره دَ نوح علیه السلام کښ اَنْصَحُ فعل ذکر روُ؟

جواب: فعل دلالت کوی په تجدد باندے یعنی دَ هغه دعوت په نوے نوے طریقه سره وُو لکه چه په سورة نوح کښ ذکر دی. او هرکله چه وصف دَ سفاهة کښ خیانت ته اشاره ده ځکه کمعقل سړے پوره خبره نه کوی نو دَ هغوی په رد کښ ئے دَ هود دَپاره اَمِيْنٌ لفظ زیات کړو۔

وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَصْطَةً ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ

او زیات یې کړه تاسو لره په پیدائښت کښې فراخي نو یادکړئ نعمتونه دَ

اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۶۹﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا

الله تعالیٰ دے دَپاره چه کامیاب شئ تاسو . او وئیل دوی آیا ته راغلے یې مونږ ته

لِنَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهٗ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ

دے دَپاره چه مونږ بندګی اوکړو دَ یو الله تعالیٰ او پریږدو هغه کسان چه بندګی کوله

اٰبَآؤُنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ

مشرانو زمونږ پس راوړه مونږ ته هغه (عذاب) چه ته یې وعدے مونږ که ته یې دَ

الصّٰدِقِيْنَ ﴿۷۰﴾ قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُمْ

رشتینو نه . او وئیل ده یقینًا لازم شوے دے په تاسو باندے

۶۹ ده باندے دا اعتراض وو چه ته بشر یې او سړے یې نو څنګه رسول شوے لکه چه په سورة ابراهیم ۱۰ او سورة مؤمنون ۳۳ کښې ذکر دے نو هغه ورته جواب ورکړو اَوَعَجِبْتُمْ سره. بَصْطَةً ډیروالے دَ نسل مراد دے یا غټ والے دَ بدن سره دَ دنګ والی دَ قد نه مراد دے. دَ حدیث صحیح نه معلوم ده چه دَ آدم علیه السلام قد شپیته ذراعه وو او اولاد به یې دَ هغه نه کمیږی نو کوم اسرائیلی روایات چه دَ عادیانو په باره کښې راغلے دی چه هغوی سل ذراعه وو یا په دوی کښې عوج نوم والا سړے آسمان ته رسیدلو دا روایات بے اعتباره دی. لِيُنْذِرَكُمْ هر کله چه دَ ده بیان کښې افلا تتقون مخکښې ذکر وُو دَ دے وجے نه دلته یې لِتَتَّقُوا ذکر نه کړو.
وَاذْكُرُوْٓا دا تاکید دَ دعوت دے په ذکر دَ نعمتونو سره دَ پاره دَ ترغیب.
فَاذْكُرُوْٓا اول ذکر په معنیٰ دَ یاداشت دے او دا ذکر په معنیٰ دَ شکر کولو دے.
اٰلَآءَ لوئے او ښکاره نعمتونو ته وئیلے کیږی.
۷۰ دا طریقه دَ تکذیب دَ هغوی وه یعنی دَ توحید نه تعجب کول آلوسی وئیلے دی چه دا ډیر انهماک دَ هغوی وُو په تقلید دَ اباؤ کښې. اَجِئْتَنَا، مجیئت یې دَ دے وجے نه اوئیل چه دے دَ نبوت نه مخکښې دَ هغوی نه جدا او سیدلو لکه چه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم په حراء کښې اوسیدلو مخکښې دَ نبوت نه یا دا قول په طریقه

مِّنْ رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَّغَضَبٌ ۭ اَتُجَادِلُوْنَنِيْ
دَ رب دَ طرف نه زنګ (عذاب) او غضب ایا جګړه کوئ تاسو زما سره

فِيْٓ اَسْمَاۗءٍ سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَاۗؤُكُمْ
په باره دَ هغه نومونو کښې چه ایخودے دی هغه تاسو او مشرانو ستاسو

مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ۭ فَانْتَظِرُوْٓا
نه دے نازل کړے الله تعالیٰ په دے باندے هیڅ دلیل نو (دَ عذاب) انتظار کوئ

اِنِّىْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿٧١﴾
یقینًا زهٔ ستاسو سره دَ انتظار کوونکو نه یم -

دَ استهزاء سره دے چه دوی وئیل ایا ته دَ اسمان نه دَ دے خبرے دَ پاره راغلے یئے یا دا چه نورے مسئلے راوړلو نه دوی کنایه اوکړه په نورے را تللو دَ هغه سره دا دلیل دَ چه دَ هغوی (او دا رنګ دَ ټولو مشرکانو) جګړه په نفسِ عبادت کښې او صرف په الله تعالیٰ کښې نه ده بلکه په توحید کښې وه چه هغوی دُعا، سجدے، نذر وغیره الله تعالیٰ لره خاص نه منل بلکه نورکسانئے ورسره په دے کښې حقدار ګنړل او دا سے په سورۃ اسراء ۴۲ او صافات ۳۵ او ص ۵ او زمر ۴۵ او مؤمن ۱۲ کښې هم دی فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اَه دا طلب دَ عذاب دے دَ وجے دَ ضد او عناد نه -
۷۱ قَدْ وَقَعَ په معنی دَ وجب دے په سبب دَ دغه وینا سره . رِجْسٌ په معنی دَ رِجْزٌ یعنی عذاب یا دَ زړونو زنګ . اَسْمَاۗءٍ دَ دینه مراد هغه صفات دی چه دوی به خپلو معبودانو لره منل او دَ هغے په باره کښې به ئے دَ رسول سره جګړه کوله . لکه دے زمانه کښې وائی دَ باده بابا ، دَ کوزن بابا ، دَ سرخوګی بابا ، دا تا ګنج بخش او غوث اعظم وغیره دا نومونه دَ هغه بزرګانو روستو خلقو ایښے دی قرآن او سنت کښې په هغے څه دلیل نیشته او دا تسمیه دَ مور او پلار دَ طرف نه نه وی بلکه په شرکی عقیدۃ سره دَ مشرکانو مشرانو او کشرانو دَ طرف نه وی . اٰبَاۗؤُكُمْ رد دے په تقلید دَ اٰباؤ نا ئے په شرکی نوم ذکر کولو کښې . مَا نَزَّلَ اشاره ده چه دَ شرک (او دَ هرے عقیدے) دَ اثبات دَ پاره دلیل منزله (ایاتونه او احادیث) پکار وی په غیر منزل دلیلونو (قیاسونه او حکایات خوبونو وغیره) سره عقیده نه ثابتیږی او دا سے سورۃ یوسف ۴۰

فَاَنۡجَیۡنٰهُ وَالَّذِیۡنَ مَعَهٗ بِرَحۡمَةٍ مِّنَّا

پس بچ کړو مونږ دے او هغه کسان چه د ده ملګری وو په سبب د رحمت زمونږ

وَقَطَعۡنَا دَابِرَ الَّذِیۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا

او پریکړے مونږ جرړے د هغه کسانو چه دروغژن یې ګڼړل ایاتونه زمونږ

وَمَا كَانُوۡا مُؤۡمِنِیۡنَ ﴿۷۲﴾ وَاِلٰی ثَمُوۡدَ

او نه وو دوی مؤمنان ۔ او لیږلے وو مونږ ثمودیانو ته

اَخَاهُمۡ صٰلِحًا ۘ قَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ

رور د هغوی صالح (علیه السلام) او وئیل هغه اے قومه زما بندګی خاص کړئ الله تعالیٰ لره

مَا لَكُمۡ مِّنۡ اِلٰهٍ غَیۡرُهٗ ؕ قَدۡ جَآءَتۡكُمۡ بَیِّنَةٌ

نیشته تاسو لره هیڅ څوک مددګار سیوا د هغه نه. یقینًا راغلے ده تاسو ته ښکاره معجزه

ع ۹ ۸ ۱۶

وقف لازم

او سورة نجم ۳۲ کښې هم ذکر دی فرق دا دے چه په دے سورت کښې معبودیت د الهو د دوی باندے رد دے او سورة یوسف کښې په عبادت کولو د هغوی باندے او سورة نجم کښې په دغه نومونو کیخودلو باندے رد دے او په لفظ نزل او انزل سره یې ذکر کړل اشاره ده چه په هغه کلام الٰهی کښې چه لږ لږ نازل شوے وی او هغه چه په یو کرت نازل شوے وی په دواړه طریقو کښې دلیل د شرک نیشته.

۷۲ په دے کښې د نجات سبب یې صرف رحمت وئیلے دے او رحمت په اصل کښې توفیق د ایمان او د توحید دے او دا رحمتِ خاصه دے او اشاره ده چه د انبیاؑ او د هغوی د ملګرو نجات د هغوی د عمل په وجه (وجوبی) سره نه دے.

دَابِرَ الَّذِیۡنَ كَذَّبُوۡا په دے کښې استیصالی عذاب مراد دے چه ټول نسل یې ورله تباه کړو.

وَمَا كَانُوۡا مُؤۡمِنِیۡنَ دا عطف دے په كَذَّبُوۡا باندے یعنی تکذیب او عدم ایمان سبب دے د پاره د عذاب د دوی عذاب یې په سورة حٰم سجده ۱۶ احقاف ۲۴ ۲۵ او الحاقه ۶ کښې ذکر کړے دے.

مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ

دَ طرف دَ رب ستاسو نه دا ده اوښه دَ الله تعالىٰ

لَكُمْ اٰيَةً فَذَرُوْهَا تَاْكُلْ فِیْٓ

تاسو لره معجزه پس پریږدئ دا چه خوراک کوی په

اَرْضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ

زمکه دَ الله تعالىٰ کښې او مه رسوئ هغې ته هیڅ تکلیف

فَيَاْخُذَكُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝٧٣ وَاذْكُرُوْٓا

پس اوبه نیسی تاسو لره عذاب دردناک. او یاد کړئ

اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْ بَعْدِ

کله چه اوګرځولئ تاسو الله تعالىٰ آبادوونکی دَ زمکے روستو

۷۳ دا دریم دلیل نقلی دے په مسئله دَ توحید باندے. ثمود ځوے دَ عاد وو بیا دَ هغه نسل ته قبیله دَ ثمود وئیلے کیږی. اوصالح په پنځه پشته کښې دَ ثمود په اولاد کښې وواو دوی دَ حجاز اودَ شام په مینځ کښې په لار دَ تبوک باندے آبادوو اوس هغه ځائ ته مدائن صالح وائي اوهغه کنډرات دی په دے آیت کښې دَ هود علیه السلام دعوت دَ توحید ذکر دے بیا دَ هغه قوم دَ طلب دَ معجزے دَ وجے نه دوی ته ئې اظهار دَ معجزے اوکړو. بَيِّنَةٌ معجزے سره اظهار دَ رسالت او اثبات دَ توحید کیږی دَ دے وجے نه هغې ته بینه وئیلے شی. مِنْ رَّبِّكُمْ کښې اشاره ده چه معجزه دَ نبی اختیار کښې نه وی. هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ دا بیان دَ معجزے دے. نَاقَةُ اللّٰهِ اضافت الله تعالىٰ ته اضافت دَ مخلوق دے خالق ته او تخصیص ئې دَ وجے دَ شرافت نه دے اوبله وجه دا ده چه بغیر دَ اسبابو ظاهریو نه پیدا شوه او اضافت په اَرْضِ اللّٰهِ کښې هم دغه مخکښې په شان دے. تَاْكُلْ فِیْٓ اَرْضِ اللّٰهِ مراد دا دے چه په تاسو باندے دَ دے رزق او مشقت نیشته لیکن دَ دے بے عزتی مه کوئ دا دلیل دے چه دَ معجزے بے عزتی کول سبب دَ عذاب دے.

عَادٍ وَّبَوَّاَكُمْ فِى الْاَرْضِ تَتَّخِذُوْنَ

دَ عادیانو نه، او ځائ ئې ورکړو تاسو ته په زمکه کښې چه جوړوئ تاسو

مِنْ سُهُوْلِهَا قُصُوْرًا وَّتَنْحِتُوْنَ الْجِبَالَ

دَ میدانونو دَ هغې نه بنګلې او کنئ دَ غرونو نه

بُيُوْتًا ۚ فَاذْكُرُوْٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا

کوټې ، پس یاد کړئ نعمتونه دَ الله تعالىٰ او مه ګرځئ

فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿۷۴﴾ قَالَ الْمَلَاُ

په زمکه کښې ورانې کوونکي - اُوئیل غټانو

الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لِلَّذِيْنَ

هغه چه لوئي ئې کړې وه (دَ مال دَ وجې نه) دَ قوم دَ هغه نه هغه چاته چه

اسْتُضْعِفُوْا لِمَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ اَتَعْلَمُوْنَ

کمزورے ګنړلے کیدل (دَ وجې دَ غریبۍ نه) هغه چاته چه ایمان ئې راوړے وو دَ دوی نه، آیا تاسو یقین کوئ

اَنَّ صٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۭ قَالُوْٓا

چه صالح (علیه السلام) رسول دے دَ طرف دَ رب خپل نه - دوی اُوئیل

ملا په دے ایت کښې تذکیر دے په نعمتونو سره دَ پاره دَ دے چه توحید او منځ ئې
نعمتونه دَ عادیانو انفسی او بدنی وو او نعمتونه دَ ثمودیانو دَ ابادوالي دَ صنعت کاري
وو. سُهُوْلِهَا یعنی په میدانی زمکه کښې ئې د ننګې بنګلې بې ضرورته جوړولے او په
غرونو کښې هم دَ کټو اباد ئې کولے او قوم ثمود دَ عماراتو او کټو په تراش کولو
کښې ډیر هنرمند وو او دَ دے وجې نه ډیر سرمایه دار وو.
مُفْسِدِيْنَ فسادِ عظیم دا وو چه نه ئې کسان وژل او خلق به ئې دَ ایمان او دَ منلو نه
دَ صالح علیه السلام نه منع کول لکه په سورة نمل کښې دی .

إِنَّا بِمَا أُرْسِلَ بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿٧٥﴾ قَالَ

یقیناً موږ په هغه څه چه دے رالیږلے شوے په هغے باندے، ایمان راوړے دے. او وئیل

الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا بِالَّذِي

هغه چا چه ځان یئے لوئے گنړلو یقیناً موږ په هغه څه

آمَنتُم بِهِ كَافِرُونَ ﴿٧٦﴾ فَعَقَرُوا النَّاقَةَ

چه ایمان یے راوړے دے تاسو انکار کوونکی یو. نو مړه (هلاکه) کړه دوی او ښه

وَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا يَا صَالِحُ

او نافرمانی اوکړه دوی د حکم د رب خپل نه او اوئیل دوی اے صالح (علیه السلام)

۷۵ په دے قوم کښں سرمایه داران ډیر وو نو د هغوی کفر د وجے د دے نه وو چه ځان یئے لوئے گنړلو ځکه یئے دلته اسْتَكْبَرُوا اوئیل.

اسْتُضْعِفُوا کمزوری د هغوی د وجے د غریبئ یا د نسب د وجے نه وه او حدیث هرقل (چه بخاری ذکر کړیدے) کښں دی چه تابعدار د انبیاؤ علیهم السلام اکثر ضعفاء د قوم وی لیکن لفظ د باب استفعال او صیغه د مجهول دلالت کوی چه هغوی په حقیقت کښں ضعیف نه وؤ بلکه مخالفینو ضعیف گنړل.

لِمَنْ آمَنَ اشاره ده چه ټولو ضعفاؤ ایمان نه وؤ راوړے.

أَتَعْلَمُونَ دا وینا د دوی په طریقه د دباؤ اچولو وه په مؤمنانو باندے لیکن هغوی په ترقئ سره جواب ورکړو یعنی صرف صالح باندے ایمان نه دے بلکه په مسئله د توحید باندے هم موږ ایمان راوړے دے نو مخالفت ډیر ښکاره شو.

۷۶ دا هم بیان د استکبار او د ضد د دوی دے او اشاره ده چه موږ ستاسو د وجے نه ایمان نه راوړو ځکه چه زموږ او ستاسو په مینځ کښں ډیر فرق دے.

ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِنْ كُنْتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿۷۷﴾

راوړه موږ ته هغه عذاب چه ته پرې ډاره وې موږه، که یې ته د پیغمبرانو نه.

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ

پس اونیو دوی لره زلزلې نو شول دوی په کورونو (کلی) خپلو کښې

جَاثِمِينَ ﴿۷۸﴾ فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ

پرمخې پراته (مړه). نو دوان شو (صالح علیه السلام) د دوینه او اوئیل یې اے قومه!

لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ

یقینًا رسولے دی ما تاسو ته پیغامونه د رب خپل او خیر مے لټولے دے تاسو لره

۷۷ عَقَرَ په اصل کښې خپو پریکولو ته وائي لیکن دلته مراد نحر دے نحر د اوښے یو کس اوکړو لکه په سورة قمر ۲۹ کښې دی د هغه نوم قدار بن سالف ذکر شوید او حدیث د مسلم کښې دی رجلٌ عزیزٌ عارِمٌ خَبِیْثٌ مَنِیْعٌ فِي رَهْطِهٖ مثل أَبِي زَمْعَةَ. یا مراد دا چه اول یې ورله خپې پرے کړے بیا یې مړه کړه. او نوراته کسان ورسره ملګری وو. عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ، امر په ۷۷ کښې ذکر وو. مِنَ الْمُرْسَلِينَ دا دلیل دے چه دوی ډیر مفسدان وو د رسالت نه منکروو او قوم عاد رسول ته الصادقین وئیلی وو یعنی صرف تکذیب یې کوو په اخبار د عذاب کښې.

۷۸ رَجْفَةٌ زلزله د زمکے ده. او سورة هود کښې (صیحه) ده یعنی دواړه عذابونه په دوی باندے جمع شوے وو یا د رجفه نه مراد تزلزل د زړه دے په سبب د صیحه سره یا مراد د صیحه نه هیبت ناک آواز دے په وخت د سخته زلزله کښې او په زلزلے سره د دوی ټول مکانات اوغورزیدل. فَأَصْبَحُوا دلالت کوی چه عذاب د شپے راغلے وو. دَارِ په معنی د هغه کلی دے چه مشتمل وی په ډیرو کورونو باندے د دے وجے نه مفرد ذکر شو.

جَاثِمِينَ د جثم نه دے په معنی د جوختیدلو په زمکه باندے او دارنګ کیناستل په زنګنانو باندے دواړه معانی لسان العرب کښې ذکر دی.

وَلٰكِنْ لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۷۹﴾ وَلُوْطًا

او لیکن نه خوخوئ تاسو خیرخواهان خپل - او درلیږلے وو موږ) لوط (علیه السلام)

اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ

کوم وخت چه اوئیل ده قوم خپل ته آیا راتلل کوئ تاسو بدکارئ ته

مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۰﴾

چه مخکښ والے نه دے کړے ستاسو نه پدے کار کښ هیچا د خلقو نه۔

۷۹ یٰقَوْمِ اٰه سوال: دا دے چه دا مړو ته خطاب دے معلومه شوه چه مړي اوري؟
جواب: دا خطاب د عذاب د راتلو نه مخکښ دے لکه چه د سورة هود د ترتیب نه معلومیږی ایت ۸۵ ۸۶۔
جواب۲: دا خطاب په طریقه د معجزے دے لکه واقعه د بدر کښ دا سے شوی وو او معجزه په نبی پورے خاص وی۔
جواب۳: چه دا افسوس دے لیکن افسوس د هغوی په انکار باندے دے نه په عذاب باندے نو د ایت د فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ سره تعارض نه راځی۔
په دے کښ اول جواب غوره دے ځکه چه مقصد د نبی الزام حجت دے لکه چه زمونږ نبی په خطبه د حجة الوداع کښ فرمائیلی وو اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ۔ او دا رنګ عادتِ الٰهیه دا دے چه د عذاب راوستلو نه مخکښ نبی او مؤمنان د هغه وطن نه او باسی او دلته فا په فَتَوَلّٰى کښ د پاره د تعقیب نه ده بلکه کلام کښ تقدیم او تاخیر دے۔
۸۰ دا څلورمه واقعه ده د دے تعلق د سورت د دویم دعوے سره دے چه لوط علیه السلام قوم لره د شیطان د تابعدارئ نه منع کړے وو خو هغوی منع نه شول نو عذاب پرے راغے او دا قوم په شرک کښ هم مبتلا وو لوط علیه السلام د دے قوم د نسب نه نه وو بلکه وراره وو د ابراهیم علیه السلام (لوط بن هاران بن تارخ (رازی)) د دے وجے نه اخوهم ئے اونه وئیل بیا د مَا سَبَقَكُمْ لفظ نه معلومه شوه چه د دے قبیح ګناه ایجاد دے قوم کړے وو نو دا لوئے ګناه دے په نسبت د هغے چه د بل تابعداری کوی دا رنګ یو بدعت کول دی او بل بدعت ایجاد کول دی دا دویم د اول نه غټ ګناه دے۔ لِقَوْمِهٖٓ دا قوم د هغه په دے اعتبار وؤ چه د هغوی د قیام (نظام دینی) د پاره رالیږلے شوے وو یا په دے وجه چه

إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ

یقینًا تاسو خامخا راتلل کوئ نارینو ته په شهوت سره تیرږدو نکې یئ د

النِّسَاءِ ۚ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ ﴿٨١﴾

زنانو (ښځو) نه بلکه تاسو قوم یئ مشرکان۔

وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَن قَالُوا

او نه وو جواب د قوم د هغه مګر دا چه وئیل ئې

أَخْرِجُوهُم مِّن قَرْيَتِكُمْ ۖ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ

او باسئ دوی لره د کلی ستاسو نه، یقینًا دوی داسې خلق دی

يَتَطَهَّرُونَ ﴿٨٢﴾ فَأَنجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ

چه ځان پاک ګنړی۔ پس بچ کړو مونږه دے او کورنئ د ده مګر ښځه د ده

---

سخرګنی د لوط علیه السلام وه۔ اَلْفَاحِشَةَ هغه ګناه چه ښکاره وی او عقل او عرف کښې سره د شرع نه بد ګڼړلے کیږی قرطبی وئیلي چه زنا ته ئې قرآن کښې فاحشه وئیلے ده او دے عمل د قوم لوط ته ئې هم فاحشه اوئیله معلومه شوه چه په دے عمل بانددے هم سزا د زنا به جاری کیږی۔

۸۱ دا بیان د هغه فاحشه دے۔ مُسْرِفُونَ نه مراد مشرکون دی او دا رنګ د دے تفسیر په سورة عنکبوت ۲۹ کښې راغلے دے۔

۸۲ د دے قوم یو جواب دا دے او دا سے په سورة نمل ۵۶ کښې دی او بل جواب د دوی په سورة عنکبوت ۲۹ کښې دے او په دواړه کښې طریقه د حصر ده نو فرق دا دے چه دا جواب د دوی په باره د لوط علیه السلام کښې وو او هغه د سورة عنکبوت جواب په باره د خپلو ځانونو کښې دے۔ اَخْرِجُوْهُمْ، لنخرجن ئې نه دے وئیلے اشاره ده چه دا قوم په سبب د دے خسیس عمل سره بے غیرته شوے وو نو یو بل ته وائي چه دوی او باسئ۔ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ الخ دا وینا د هغوی په طریقه د مسخرے سره وه قتادہ وئیلے دی عَابُوْهُمْ وَاللهِ بِغَيْرِ عَيْبٍ (قسم په الله تعالیٰ چه دوی د هغوی نقصان وئیلو په غیر د عیب نه په هغوی کښې)۔

كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۸۳﴾ وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ

وه هغه د پاتې كيدونكو نه (په عذاب كښې) . او راووروو مونږ په دوى باندې

مَّطَرًا ؕ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۸۴﴾ ع

باران ناآشنا . نو اوګوره چه څنګه شو انجام د مشركانو .

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ

او ليږلے وو مونږ مدين والو ته رور د هغوى شعيب (عليه السلام) . او وئيل ده اے قومه څما

اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ

بندګى خاص كړئ الله تعالىٰ لره نيشته تاسو لره هيڅ مددګار سيوا د هغه (الله) نه .

قَدْ جَآءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَوْفُوا

يقيناً راغلے ده تاسو ته معجزه ښكاره د طرف د رب ستاسو نه نو پوره كوئ

الْكَيْلَ وَالْمِيْزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ

پيمانه كول او تول كول او مه كموئ د خلقو نه

۸۳ ښځه د لوط عليه السلام مشركه وه څكه عذاب كښې پاتے شوه دا په سورة تحريم ۱۰ كښې ذكر دى . وَاَهْلَهٗ د سورة ذاريات ۳۶ نه معلومه ده چه سيوا د كور د هغه نه بل چا ايمان نه وو راوړے او تاريخ كښې ليكلے دى چه د هغه صرف دوه لونړه وے الْغٰبِرِيْنَ غبر د اضدادو نه دے تير شوے او باقى پاتے شوے دواړو ته وئيلے شى دلته دويمه معنىٰ مراد ده او صيغه د مذكر كښې اشاره ده چه د دے ښځے عذاب هم په شان د نارينو د هغه قوم وو اګر چه سبب ئے جدا جدا وو .

۸۴ دے آيت كښې د دوى يو قسم عذاب ذكر شو يعنى باران د كانړو په دليل د مَّطَرًا نكره سره او په سورة هود ۸۲ او حجر ۷۴ كښې نور عذابونه هم ذكر شوے دى دلته د دے يو عذاب ذكر خاص او شو اشاره ده چه اصل عذاب د هلاكت د دوى دا يو وو او نور ورسره مقدمات د عذاب وو او دا رنګ دا سزا د داسے عمل كوونكو په دنيا كښې هم ده .

أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ

مالونه دَ هغوی او ورانے مه کوئ په زمکه کښې پس دَ

إِصْلَاحِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم

اصلاح دَ هغې نه. دا (کارونه) فائده والادی تاسو لره که یئ تاسو

مُّؤْمِنِينَ ﴿٨٥﴾ وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ

ایمان والا. او مه کینئ په هره لار کښې

تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ

چه بیره دیئ او منع کوئ دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه

۸۵ دا پنځمه واقعه ده دَ دویمه او دریمه دعوے سره تعلق لری دلیل نقلی دے په مسئله دَ توحید باندے او منع کول دَ قوم دی دَ تابعداریٔ دَ شیطان نه په باره دَ حرامه امدنیٔ کښې. مدین ځوئے وو دَ ابراهیم علیه السلام او دَ هغه په نوم سره دا ښار مشهور شو او شعیب علیه السلام په دوه پشته کښې دَ اولاد دَ مدین نه وو او دۀ ته خطیب الانبیاء وئیلے کیږی. په دے قصه کښې اول دعوت دَ توحید دے بیا اثبات دَ رسالت او ذکر دَ معجزے (چه معین نه ده) دے بیا دعوت دے احکامو مالیوته دَ پاره دَ اصلاح بیا نهی ده دَ عام إفساد نه.

بَيِّنَةٌ دے نه معجزه مراد ده لیکن قرآن او سنت کښې دَ هغې څه تعین نیشته.

الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ په سورة هود ۸۵ کښې المکیال لفظ دے وجه دَ فرق دا ده چه دلته دَ الکیل والمیزان نه معنی مصدری مراد ده او په هغه سورت کښې آله دَ کیل او دَ وزن مراد ده.

وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ الخ دا لفظ شامل دے غلا او غصب او لوټ مار او حیلے کول دَ پاره دَ حرام مال اخستلو وغیره.

بَعْدَ إِصْلَاحِهَا اصلاح په بعثت دَ انبیاؤ علیهم السلام او رالیګل دَ احکامو شرعیو سره ده.

إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ یعنی خیر (ثواب) په هغه وخت وی چه تاسو ایمان راوړیٔ یا خیر نه مراد خیریت دے په وصف دَ انسانیت کښې او ایمان نه مراد معنی لغوی ده یا دا خطاب دَ دے وجے نه وو چه دوی دعوی دَ ایمان کوله.

مَنْ اٰمَنَ بِهٖ وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ وَاذْكُرُوْٓا

هغه څوک چه ایمان راوړی په هغه او لټوئ په هغې کښې کوږوالے ، او یاد کړئ هغه وخت

اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا فَكَثَّرَكُمْ ۪ وَانْظُرُوْا كَيْفَ

کوم وخت چه وئ تاسو لږ نو ډیر یې کړئ تاسو او اوګورئ څه رنګ

كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۸۶﴾ وَاِنْ كَانَ

وو انجام دَ ورانی کوونکو۔ او که وی

طَآئِفَةٌ مِّنْكُمْ اٰمَنُوْا بِالَّذِيْٓ اُرْسِلْتُ

یوه ډله ستاسو نه چه ایمان لری په هغه څه چه رالیږلے شوے یم څه

بِهٖ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوْا فَاصْبِرُوْا حَتّٰى

په هغې او بله ډله وی چه ایمان نه لری نو انتظار اوکړئ تر دے چه

يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۸۷﴾

فیصله اوکړی الله تعالیٰ په مینځ زمونږ کښې او هغه غوره فیصله کوونکے دے۔

۸۶ روستو دَ ذکر دَ ضلال نه اضلال ذکر کوی په منع سره وَلَا تَقْعُدُوْا اه مراد دَ صراط نه هغه لار ده چه دَ شعیب علیه السلام کور ته رسوونکے وه او مراد دَ قعود نه بنکاره کیناستل دی یا مراد دَ صراط نه لارے او کارونه دَ دین دی چه روستو یې هغې ته سبیل الله وئیلے دے۔ تُوْعِدُوْنَ منع کول په دوه طریقې سره وُو یو دا ډَکول او یره ورکول دویم په طریقه دَ شبهاتو او طعنونو سره په حق والا باندے۔ وَتَبْغُوْنَهَا اه تفسیر دے دَ دویمے معنٰے۔ عِوَجًا په زیر دَ عین سره استعمالیږی په معنوی څیزونوکښې او په زور سره په جسمونوکښې۔ وَاذْكُرُوْٓا ترغیب دے۔ وَانْظُرُوْا تخویف دے۔ قَلِيْلًا په اعتبار دَ مال یا دَ عدد دَ اشخاصو سره او دا اوامر نواهی او ترغیب او تخویف ذکر کول په تبلیغ کښې صفت دَ خطابت دے ځکه دهٔ ته خطیب وئیلے کیدلو۔
الْمُفْسِدِيْنَ دا لفظ شامل دے دَ دوی شرک، حرام خوریٔ او دَ حق نه منع کولو ته۔
۸۷ دا هم داخل دے په قول دَ شعیب علیه السلام کښې او دیته محاکمه دَ دعوت

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ

اوئیل غټانو هغه چه لوئي کړیوه دَ قوم دَ هغه نه

لَنُخْرِجَنَّكَ يٰشُعَيْبُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

خامخا اوبه باسو مونږ تا اے شعیب (علیه السلام) او هغه خوک چه ایمان ئے راوړے دے

مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا ؕ

ستا په ملګرتیا کښ دَ کلی زمونږ نه یا به واپس شئ په دین زمونږ کښ.

قَالَ اَوَلَوْ كُنَّا كٰرِهِيْنَ ﴿۸۸﴾ قَدِ افْتَرَيْنَا

اوئیل هغه اګرچه مونږ بد ګڼړو. یقینًا مونږ جوړ کړے به وی

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِيْ مِلَّتِكُمْ

په الله تعالی باندے دروغ که چرے واپس شو مونږ په دین ستاسو کښ

بَعْدَ اِذْ نَجّٰنَا اللّٰهُ مِنْهَا ؕ وَمَا يَكُوْنُ لَنَآ

پس دَ هغے نه چه بچ ساتلے یو مونږ الله تعالی دَ هغے نه. او نه دی جائز مونږ لره

---

وئیلے شی او تخویف دے په نرم عنوان سره. فَاصْبِرُوْا په معنی دَ انتظار دے په معنیٰ دَ صبر او دَ کلک کیدلو نه دے ځکه چه په غلط دین باندے دَ مضبوط کیدلو امر نبی نه کوی لفظ دَ حاکمین دلیل دے چه انسان ته هم حاکم وئیل جائز دی. او خَيْرُ يَة په حکم دَ الله تعالیٰ کښ دا دے چه هغه پوخ وی او بناء وی په عدل کامل او څوک ئے مقابله نشی کولے.

---

۸۸ په دے ایت کښ طریقه دَ تکذیب دَ هغوی ذکر ده. اَوْلَتَعُوْدُنَّ اه سوال دا دے چه عود په معنیٰ دَ واپس کیدلو دے مخکښ حال ته نو شعیب علیه السلام خو مخکښ دَ دوی په ملت کښ نه وو؟

اول جواب دا دے چه هرکله شعیب علیه السلام دَ نبوت نه مخکښ چپ وو نو دوی خیال اوکړو چه دے زمونږ ملګرے وو په دین کښ.

دویم جواب دا دے چه دا په اعتبار دَ نورو مؤمنانو سره وئیلے شوے دی چه هغوی مخکښ دَ دوی په دین کښ وو.

أَنْ نَّعُوْدَ فِيْهَا إِلَّآ أَنْ يَّشَآءَ اللهُ رَبُّنَاؕ

چه واپس شو په یکښ (دین ستاسو کښ) مګر دا چه اوغواړی الله تعالیٰ رب زمونړه۔

وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًاؕ عَلَى اللهِ

راګیر کړیدے رب زمونړ هر څیز په علم خپل کښ۔ خاص په الله تعالیٰ باندے

تَوَكَّلْنَاؕ رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا

ځان سپارلے دے مونږ۔ اے ربه زمونړه! فیصله اوکړے په مینځ زمونږ او په مینځ دَ قوم زمونږ کښ

بِالْحَقِّ وَأَنْتَ خَيْرُ الْفٰتِحِيْنَ ﴿۸۹﴾ وَقَالَ

حقه فیصله او ته غوره دَ فیصلے کوونکو نه یې۔ او اوئیل

الْمَلَأُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ

غټانو هغه کسان چه کفر یې کړے وو دَ قوم دَ هغه نه که تاسو تابعداری اوکړه

شُعَيْبًا إِنَّكُمْ إِذًا لَّخٰسِرُوْنَ ﴿۹۰﴾ فَأَخَذَتْهُمُ

دَ شعیب (علیه السلام)، یقیناً تاسو په شئ دَ تاوان والو نه۔ نو اونیوو دوی لره

دریم جواب دا دے چه عود په معنیٰ دَ داخلیدلو دے دَ ابتداء نه او دا معنیٰ په هغه حدیث کښ هم ده چه "يُعَادُ روحه في جسده"۔ اَسْتَكْبَرُوْا دوی هم سرمایه دار وُو دَ دے وجے دَ دوی په وصف کښ استکبار ذکر کړو په شان دَ ثمود یانو۔ قَالَ أَوَلَوْ كُنَّا كٰرِهِيْنَ دا جواب دے دَ طرف دَ شعیب علیه السلام نه پوخ جواب دے په نرمه لهجه سره چه مونږ خو ستاسو دین نه کړو۔

۸۹ دا آیت هم دَ قال دَ لاندے داخل دے قول دَ شعیب علیه السلام دے دلالت کوی چه مرتد کیدل ډیر لوئے ګناه دے دا په الله تعالیٰ باندے افتراء کول دی او په دے کښ اشاره ده چه بیا کول دَ عود کفر ته پوره ایمان دے لکه چه حدیث دَ "ذاق طعم الإيمان" کښ دی۔ إِلَّآ أَنْ يَّشَآءَ دا استثناء منقطع ده یا متصل مفرغ هم کیدیشی او مقصد په دیکښ تفویض الی الله دے تعلیق مراد نه دے او دا صریح دلیل دے چه کفر هم په مشیئت دَ الله تعالیٰ کښ داخل دے۔ وَسِعَ رَبُّنَا دا دوه جملے په طریقه دَ وسیلے سره دی په صفاتو دَ الله تعالیٰ سره او وروستو په رَبَّنَا افْتَحْ سره دعا ده رَبَّنَا افْتَحْ دا دعا دَ شر ده په لهجه دَ دعا دَ خیر کښ او دا هم خطابت دَ شعیب علیه السلام دے۔

۹۰ او هر کله چه دَ باؤ دَ مغوی مینځ فائده او نکړه نو بله طریقه یې اختیار کړله چه هغه

الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جٰثِمِينَ ﴿٩١﴾
زلزلے نو شول دوی په کلی خپل کښې پرمخې پراته (مړه) .
الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَأَنْ لَّمْ يَغْنَوْا
هغه کسان چه دروغ ژن یې گڼلو شعیب علیه السلامؑ، گویا که نه وو دیره شوی
فِيهَا ۛ الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَانُوا
په هغې (کلی) کښې ، هغه کسان چه دروغژن یې اوګڼلو شعیب علیه السلام لره شول
هُمُ الْخٰسِرِينَ ﴿٩٢﴾ فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ
دوی تاوان والا - پس روان شو د دوینه او ئیل یې
يٰقَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّي
اے قوم زما، یقیناً رسولے دی ما تاسو ته پیغامونه د رب زما
وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ
او خیرے لهولے دے ستاسو ، نو څنګه خفګان اوکرم په (هلاکت د) قوم

منع کول وو مؤمنانو لره د ایمان نه اتباع د نبی ته یې خسران اوئیلو دا زعم د باطل پرستو دے.

ملا د دوی هم بل عذاب صیحه ده چه په سورة هود ۹۴ کښې ذکر دے دا آیت پشان د ۸۸ دے.

۹۲ دا په مقابله د کافرانو کښې ده هغوی وئیل چه تابعداری د شعیب علیه السلام سبب د خسران دے الله تعالیٰ اوئیل چه تکذیب د شعیب علیه السلام سبب د خسران دے.

الَّذِينَ كَذَّبُوا مبتدا ده او خبر یې محذوف دے یعنی فنوا (فنا شول).

يَغْنَوْا دا د غنی نه ماخوذ دے (دیره کیدل په یو مکان کښې په عیش عشرت سره).

كَانُوا هُمُ الْخٰسِرِينَ دا حصر په نسبت د اتبعتم سره دے یعنی حصر اضافی دے.

كٰفِرِيْنَ ﴿٩٣﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّبِيٍّ

کافرانو باندے. او نه دے لیږلے مونږ په کلی (یا ښار) کښې څوک پیغمبر (چه هغوی انکار کړو)

اِلَّآ اَخَذْنَآ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ

مګر او نیول مونږ اوسیدونکی د هغې په سختو د مال او مرضونو سره

لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُوْنَ ﴿٩٤﴾ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ

دے د پاره چه دوی عاجزی اوکړی (الله تعالیٰ ته). بیا بدل کړه مونږ په ځائے

السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى عَفَوْا وَّقَالُوْا

د سختئ خوشحالی تر دے پورے چه زیات شو دوی او او ئیل دوی چه

قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَالسَّرَّآءُ

یقیناً رسیدلے دی مشرانو زمونږ ته تکلیفونه او خوشحالئ

۹۳ دا دلیل دے چه کله په کافرانو او ظالمانو عذاب او مرګ راشی نو په هغې باندے غم او خفګان ته دے پکار دا سے ایت په ۷۹ کښې تیر شو. فرق دا دے چه هلته رسالة مفرد وؤ او دلته جمع ده وجه دا ده چه شعیب علیه السلام په خپل دعوت کښې ډیر پیغامات ذکر کړل.

اٰسٰی غمخوری او همدردی کولو ته وئیلے شی. عَلٰی قَوْمٍ نه عَلٰی عذابهم مراد دے نو که د هغوی په کفر کولو باندے خفګان کوی نو جائز دے لکه نورو نصوصو نه معلومیږی.

۹۴ دا دریے ایتونه د مخکښې واقعاتو سره تعلق لری چه په دے قومونو باندے امتحان د مصیبتونو او بیا د نعمتونو راغلے وو اشاره ده چه الله تعالیٰ د دے قومونو هیڅ معذرت نه دے پریښودلے په هره طریقے سره دوی ته سبب د هدایت جوړ کړے وو او دیته ابتلاء بالنعم والنقم وئیلے شی لکه په سورة انعام ۴۲ کښې دی. اِلَّآ اَخَذْنَآ کښې د دے نه مخکښې کذبوا پټ دے چه دلیل په هغې باندے تیرے شوے قصے دی. بِالْبَاْسَآءِ په سختئ کښې انسان اکثر الله تعالیٰ ته رجوع کوی او توبه کوی دائے څکه مخکښې کړله.

فَأَخَذْنٰهُم بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۹۵﴾

نو اونیول مونږ دوی لره ناګاهه او دوی نه پوهیدل.

وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرٰى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا

او که چیرې یقیناً دې کلو والو ایمان راوړې وې او ځان یې بچ کړې وې (د شرک نه) خامخا پرانستې به مونږ وه

عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ وَلٰكِنْ

په دوی باندې برکتونه د اسمان او د زمکې نه لیکن دوی

كَذَّبُوْا فَأَخَذْنٰهُم بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۶﴾

دروغژن اوګڼړل (پیغمبران) نو اونیول مونږ دوی (په عذاب سره) په سبب د هغې عملونو چه دوی کول.

ف۹۵ په دې ایت کښې ابتلاء بالنعم ذکر کوی. اَلْحَسَنَةَ نه مراد وسعت د مالونو او صحت د بدنونو دې. عَفَوْا زیات شول. عفو زیاتیدلو ته وائی لکه حدیث کښې راځی واعفوا اللحی "زیاتې کړئ ګیرې". وَقَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰه یعنی دوی وئیل چه دا د زمانې رفتار او انقلاب دې چه کله تکلیف وی او کله خوشحالی دا د ګناهونو په وجه سره نه دې دالویئ قسوة (سخت والې) د زړونو دې چه په هیڅ حالت کښې الله تعالیٰ ته رجوع نه کوی او دا سبب د عذاب دې.
بَغْتَةً چه تاریخ ورځ او وخت یې معلوم نه وی سرهٔ د غفلت نه دې ته بغتة وئیلې شی اګرچه علامات راغلې وی لیکن د هغې نه عبرت نه اخلی.
ف۹۶ دا هم تعلق لری د مخکښې واقعاتو سره مطلب دا دې چه ایمان او د شرک نه ځان بچ کول سبب د نازلیدلو د برکتونو دې لیکن هغه قومونو شرک اوکړو او د الله تعالیٰ د حکم خلاف یې اوکړو نو په هغوی عذابونه راغلل او په دې ایت کښې مقصد وعظ دې روسنو قومونو ته چه ایمان او تقوی حاصل کړئ د پاره د ترقئ دنیوی. تقوی نه مراد د هر قسم کفر شرک او ګناهونو نه بچ کیدل دی لکه چه په سورة طلاق کښې ذکر دې. بَرَكٰتٍ نه مراد بارانونه او بوټې غلې میوې او وسعت د رزق دې دا سې په سورة هود ۳ ۵۲ او نوح ۱۱ ۱۲ کښې ذکر دی. فَأَخَذْنٰهُمْ مراد د دې نه هغه مختلف عذابونه دی چه تیر شوې قومونو باندې راغلې وو.

أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا

ایا په امن دی دا کلو والا د دینه چه راباندې دوینه عذاب زموږه

بَيَاتًا وَهُمْ نَائِمُونَ ﴿٩٧﴾ أَوَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ

د شپې او دوی به اوده وی. او ایا په امن دی دا کلو والا

أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴿٩٨﴾

د دینه چه راباندې دوی ته عذاب زموږه په وخت د ساحت کښې او دوی به لوبې کوی.

أَفَأَمِنُوا مَكْرَ اللَّهِ ۚ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللَّهِ

ایا بې یرې دی دوی د عذاب د الله تعالیٰ نه، پس نه بې یرې کیږی د عذاب د الله تعالیٰ نه

إِلَّا الْقَوْمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٩٩﴾ أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ

مګر قوم تاوان والا. ایا نه ده ښکاره شوې هغه کسانو ته

٩٧ دا څلور ایتونه د موجوده خلقو حال ذکر کوی کوم چه شرک کوی چه دوی هم د الله تعالیٰ د عذاب نه نشی بچ کیدلے که د شپې عذاب راشی او که د ورځے راشی. په دے ایت کښې عذاب د شپې ذکر کړے دے. اَفَاَمِنَ فَا د پاره د تعقیب ده او اَلْقُرٰی نه مراد موجوده خلق دی یعنی روستو د تکذیب نه د عذاب راتلل ضروری دی.

٩٨ په دے ایت کښې عذاب د ساحت وخت (د ورځے) ذکر دے او اشاره ده چه منکرین یا په خوب اوده وی یا په لوبو کښې مشغوله وی دا د دوی ژوند د دنیا دے چه په خوب او لعب کښې تیریږی معلومه شوه چه ټوله شپه خوب کول او د ساحت وخت کښې لوبې کول د مؤمنانو د شان سره مناسب نه دی.

٩٩ روستو د خاص اوقاتو نه اوس عموم د وختونو ته اشاره ده. مَکْرَ عذاب د الله تعالیٰ په طریقه د استدراج او مهلت سره دے. په دے ایت کښې د امن نه مراد بې خوفه کیدل دی په دنیا کښې یعنی د دوی په زړونو کښې د الله تعالیٰ د عذاب نه هیڅ یره نه وی او سورة انعام ایت ٨٢ کښې د آمن نه مراد بچ کیدل دی د عذاب د الله تعالیٰ نه په توحید سره نو تعارض نه راځی.

يَرِثُوْنَ الْاَرْضَ مِنْ بَعْدِ اَهْلِهَآ اَنْ لَّوْ نَشَآءُ

چه وارثان شوي دي دَ زمکے روستو دَ اوسيدونکو دَ هغے نه داخبره چې اوغواړو مونږ

اَصَبْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ

او به رسوو دوئ ته عذاب په سبب دَ ګناهونو دَ دوي، او مهر لګوو مونږ په زړونو دَ دوي

فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿١٠٠﴾ تِلْكَ الْقُرٰى نَقُصُّ

پس دوي خوږ نه ږدي. دغه کلي! بيانوو مونږ

عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآئِهَا ۚ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ

په تاسو باندے بعض دَ خبرونو دَ هغے نه، او يقيناً راغلے وو دوئ ته

رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا

رسولان دَ هغوي په ښکاره حکمونو (دليلونو) سره، پس نه وو هغوي چه ايمان ئې راوړے وے

بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ ؕ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ

په سبب دَ هغے چه انکار کړے وُو دوئ دَ مخکښ نه. دَ دے وجے نه مهر وهي الله تعالیٰ

عَلٰى قُلُوْبِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٠١﴾ وَمَا وَجَدْنَا

په زړونو دَ کافرانو باندے. او نه دے موندلے مونږ

سلا په دے ايت کښ زور نه دۀ او بيرۀ هم دۀ په عذاب دنيوي سره او په ايکښ تاکيد دَ مخکښ اياتونو دے په عذاب راتللو سره. يهد لهم دلته دَ هدايت نه مراد هدايت عقلي دے يعني عقل ته ښکاره کيدل. بِذُنُوْبِهِمْ اشاره دۀ چه په دے موجوده خلقو کښ هغه ټول ګناهونه جمع شوي دي کوم چه په مخکښ قومونو کښ يو يو دوه دوه موجود وُو او دَ دوي دَ غفلت سبب ئې ذکر کړو مهر په زړونو او حق نه اوريدل مهر دَ زړه سبب دے دَ پاره دَ مهر دَ غوږونو دَ دے وجے نه فَهُمْ کښ ئې فا ذکر کړله.

سلا په دے کښ دَ مخکښ قومونو ذکر دے دَ پاره دَ تذکير دَ موجوده خلقو چه حالت دَ موجودو مشابه دے دَ حالت دَ مخکنو سره چه هغوي ته رسولان راغلے وُو

لِاَكْثَرِهِمْ مِّنْ عَهْدٍۚ وَاِنْ وَّجَدْنَاۤ اَكْثَرَهُمْ

دېرو خلقو لره پوره والے دَ لوظ، او يقيناً موندلے دى موږ ډېرو خلقو لره

لَفٰسِقِيْنَ ﴿١٠٢﴾ ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ

خامخا نافرمان. بيا او ليږلو موږه روستو دَ دغې پيغمبرانو نه

مُّوْسٰى بِاٰيٰتِنَاۤ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۠ىِٕهٖ

موسٰى (عليه السلام) په معجزاتو زموږ فرعون ته او غټانو دَ قوم دَ هغه ته

فَظَلَمُوْا بِهَاۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

نو ظلم (انکار) يې اوکړو دَ هغې نه عناداً، نو اوګوره چه څنګه شو انجام

الْمُفْسِدِيْنَ ﴿١٠٣﴾ وَقَالَ مُوْسٰى يٰفِرْعَوْنُ

دَ ورانى کوونکو. او اوئيل موسٰى (عليه السلام) اے فرعونه

او دوى ته هم رسول راغلے دے ليکن په هغوى کښې درے درجے دَ مخالفت وے هغه په دے موجوده کښې هم دى هغه درے درجے دَ منکرينو دا دى اول تکذيب دويم دَ ايمان نه محروم والے. دريم مهر لګول.

١٠٢ دا متعلق دے دَ مخکنو او روستنو ټولو کافرانو سره او مشترک علت دَ عذاب دے. عَهْدٍ نه مراد وفا دَ وعدے دَ توحيد ده چه په عالم الارواح کښې اخستے شوے ده او په واسطه دَ پيغمبرانو تازه شوے ده. وَاِنْ مخفف دے دَ مثقل نه.

١٠٣ دَ دے ځائے نه دويم باب دے تر ١٦٢ پورے په دے کښې تفصيلي واقعه دَ موسٰى ده تقسيم ده په شپږ مقامانو کښې او دَ دے تعلق دَ سورت دَ اولے دعوے سره دے. يعنى موسٰى عليه السلام ډير مصيبتونه دَ الله تعالٰى دَ دين دَ پاره تير کړے دى او زړه يې نه دے تنګ شوے قصه دَ موسٰى عليه السلام په څلورو سورتونو کښې په تفصيل سره راغلے ده دا سورت او سورة طٰهٰ او سورة شعراء او سورة قصص په هر سورت کښې ابتدا او اختتام يې په جدا جدا طريقے سره دے او حکمتونه پکښې ډير دى ليکن لوئے حکمت پکښې تشجيع ده په بيان دَ حق کښې. په دے اول آيت کښې خلاصه دَ واقعے ده بعثت دَ

إِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٠٤﴾ حَقِيقٌ

يقيناً زه رسول يم دَ طرف دَ رب العالمين نه، لائق يم

عَلَىٰ أَن لَّا أَقُولَ عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ

په دے چه نه به وايم په الله تعالى سيوا دَ حق نه.

قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ

يقيناً راوړے دے ما تاسو ته بيان ښکاره دَ طرف دَ رب ستاسو نه

فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿١٠٥﴾

نو اوليږه زما سره بني اسرائيلو لره.

قَالَ إِن كُنتَ جِئْتَ بِآيَةٍ فَأْتِ بِهَا

اوئيل (فرعون) که راوړے وی تا څه معجزه نو راوپاندے کړه هغه

موسیٰ علیه السلام تکذیب دَ فرعونیا نو او بیا هلاکت دَ هغوی. مِنْ بَعْدِهِمْ دا دلیل دے چه په شعیب علیه السلام پسے موسیٰ علیه السلام رالیګلے شوے دے. فَظَلَمُوا بِهَا مراد دَ دے عنادی انکار دے لکه په سورة نمل ۱۴ کښ.

۱۰۳ کړ دے ځائے نه تر ۱۲۶ پورے اول مقام دے په دیکښ دعوت دے فرعون ته او هغه ته معجزے پیش کول بیا دَ ساحرانو سره مقابله کول او دَ ساحرانو بهادری پس دَ ایمان راوړلونه یعنی شجاعت دَ موسیٰ علیه السلام او دَ ساحرانو روستو دَ ایمان راوړلونه په دے کښ دوه مدعا ګانے دی یو رسالت دَ موسیٰ علیه السلام دویم توحید دَ ربوبیت. او یٰفِرْعَوْنُ کښ خطاب دے په نرمه لهجه سره ځکه چه دا دَ هغه لقب وو په نوم سره یئے خطاب نه دے کړے او دا دَ طریقو دَ دعوت نه دے ئ په اول جمله کښ اثبات دَ توحید دے دویمه جمله کښ تاکید دَ توحید او دَ رسالت دے په معجزه سره دریمه جمله کښ ازادول دَ موحدینو دی.

حَقِيقٌ مبالغه ده په حق کښ په معنیٰ دَ ثابت، او مبتدا حذف ده أنَا ثَابِتٌ مُسْتَمِرٌّ یا حَقِیقٌ په معنیٰ دَ حریص دے.

إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ فَأَلْقٰى

که یې ته د رشتینو نه . نو اوغورځوله هغه

عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۰۷﴾

همسا خپله نو ناګاهه هغه ښامار وو ښکاره .

وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَإِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿۱۰۸﴾

او راوویستلو لاس خپل (د ګریوان نه) نو ناګاهه هغه تک سپین وو کتونکو لره .

قَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ

اوئیل غټانو د قوم د فرعون نه

سلا اشاره ده چه فرعون هم د مطلق معجزاتو قائل وو لیکن ضد ی وو او هغه هم منله چه معجزه دلیل د صدق د رسول دے۔

سکا دا اوله معجزه ده دلالت کوی په انقلاب باندے سرۀ د تخویف او غلبے نه په مقابلینو باندے. مُبِيْنٌ یعنی حقیقت د هغې بدل شوے وۀ صرف نظربندی نه وه او دلته شربینی د هغې اژدها مقدار او هیبت ذکر کړے دے تردے پورې چه په فرعون باندے د یرے د وجے نه دستونه اوګیدل غلور سوه دستونه اوشول۔

سوال: دلته او سورة شعراء کښې یې ثعبان وئیلے دی او سورة نمل سلا او قصص سلا کښې جان (ننرے مار) وئیلے دے د دے څه تطبیق دے؟

جوابا: په صورت کښې ثعبان حقیقی وۀ لیکن په رفتار کښې په شان د جان تیز وۀ د دے وجے نه هلته یې کأنها وئیلے دی

جوابـ۲: په ابتداء د وحی کښې جان وۀ او د فرعون په مخکښې ثعبان وۀ د دے د پاره چه په هغه باندے ښه رعب راشی۔

سلا دا دویمه معجزه ده دلالت کوی په انقلاب سرۀ د رڼا او د بشارت نه. د نزع نه مخکښې ادخل یداک پټ دے په قرینه د سورة نمل سلا او قصص سلا۔

لِلنّٰظِرِيْنَ لفظ دلیل دے چه سپینوالے ناآشنا وۀ خلق یې په تعجب کښې اچول۔

إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ عَلِيمٌ ﴿١٠٩﴾ يُرِيدُ

یقینًا دا خامخا جادوګر دے پوهـ (ماهر)، غواړی

أَن يُخْرِجَكُم مِّنْ أَرْضِكُمْ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴿١١٠﴾

چه اوباسی تاسو دَ ملک ستاسو نه نوځه حکم کوئ تاسو.

قَالُوٓا۟ أَرْجِهْ وَأَخَاهُ وَأَرْسِلْ فِى ٱلْمَدَآئِنِ

دوی اوئیل مهلت ورکړه دهٔ لره او رورد دهٔ لره، او اولیږه په ښارونو کښی

حَٰشِرِينَ ﴿١١١﴾ يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ ﴿١١٢﴾

راجمع کوونکی، رابه ولی تاته هر جادوګر پوهـ (ماهر).

وَجَآءَ ٱلسَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوٓا۟ إِنَّ لَنَا

او راغلل جادوګر فرعون ته نو اوئیل دوی یقینًا موږ لره به

۱۰۹ اول فرعون سردارانو ته اوئیل چه دا ساحر دے لکه سورة شعراء ۳۴ کښی دی بیا دے مشرانو دَ هغه په تقلید کښی عامو خلقو ته دا سے اوئیل. هر کله چه سِحر په هغه زمانه کښی ډیر موجود وؤ او دا سے سحر وؤ چه په هغے سره به په نظر باندے اثر کیدلو دَ دے وجے نه دوی موسیٰ علیه السلام باندے دا طعن اولګوؤ.

۱۱۰ دا بدنامه لګول دی چه دے ستاسو نه دا وطن قبضه کوی او ساحر وئیل دَ عامو خلقو دهوکه کولو دَ پاره وؤ او دا قول دَ اقتدار والو دَ غصه کولو دَ پاره دے.

۱۱۱ دے ایت کښی مشوره ورکول دَ عامو خلقو دی دَ مقابلے کولو دَ موسیٰ علیه السلام سره.

۱۱۲ هغه وخت په مصر کښی دَ سِحر ډیره چرچه وه او دَ سِحر مدارسے وے او دَ هغے استاذان او ماهران وؤ. او عادتِ الٰهیه دا دے چه هر نبی له هغه معجزه ورکوی چه دَ هغے زمانے سره مناسب وی او سبب دَ غلبے شی.

لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۳﴾ قَالَ

خامخا مزدوری وی که شو موږ زورآور - اوئیل (فرعون)

نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ قَالُوْا

هاؤ! او یقیناً تاسو به خامخا د نیږدے کړے شوو نه یئ - دوی اوئیل

يٰمُوْسٰۤى اِمَّاۤ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّاۤ اَنْ نَّكُوْنَ

اے موسیٰ (علیه السلام) یا ته اوغورزوه او یا به شو

نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ﴿۱۱۵﴾ قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّاۤ

موږ (مخکښې) غورزوونکي - اوئیل موسیٰ علیه السلام اوغورزوئ تاسو، نو هر کله چه

اَلْقَوْا سَحَرُوْۤا اَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ

اوغورځول هغوی (رسئ او همساګانے) نو جادو ئے اوکړو په سترګو د خلقو باندے او اوېرول ئے هغوی

وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۱۶﴾ وَاَوْحَيْنَاۤ

او راغئے وړو جادو لوئے (په نیز د دوی) - او وحی اوکړه موږ

۱۱۳ باطل پرست خلق هر عمل د دنیا په مقصد باندے کوی ځکه دوی د اجرت ذکر مخکښې کوی. قَالُوْا کښې فا داخله نه کړه اشاره ده چه دا قول استیناف دے په جواب د سوال کښې دے د تاکید د پاره - اِنْ كُنَّا نَحْنُ دا دلیل د انصاف د هغوی دے چه هسے اجرت بغیر د غلبے نه، نه غواړی۔

۱۱۴ هغه ورله زیات رغبت ورکړو ځکه چه نزدیکت بادشاه ته ډیره لویه مرتبه ده. شربینی لیکلی دی مداد غوختل د فرعون د دوی نه ښکاره دلیل دے چه هغه عاجز ذلیل بنده وو دارنګ طلب د اجرت د ساحرانو دلیل دۍ چه هغوی قادر نه وۍ په قلب د اعیانو باندے کنه ځان له به ئے سره او سپین زر جوړول او اجرت طلب کولو ته به محتاج نه وۍ نو څوک چه د قلب اعیان دعویٰ کوی دروغ وائي۔

۱۱۵ دا ادب د ساحرانو دے د پاره د موسیٰ علیه السلام او د دے په وجه الله تعالیٰ دوی ته ایمان نصیب کړو دا شربینی لیکلی دی۔

۱۱۶ دا دلیل دے چه د سحر اثر حق دے او دا د کمال د چا سره منافي نه دے ځکه چه

إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ ۖ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ

موسیٰ (علیه السلام) ته چه اوغورزوه همسا خپله، نو ناګاهه هغه نيز کړل

مَا يَأْفِكُونَ ﴿١١٧﴾ فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ

هغه څه چه دوی جوړول. پس ښکاره شو حق او بے کاره شول

مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١١٨﴾ فَغُلِبُوا هُنَالِكَ

هغه عملونه چه دوی کول. نو کمزوري شول دوی په دغه وخت کښې

موسیٰ علیه السلام باندے هم اثر اوشو لکه په سورة طٰهٰ. ۱۱۶ کښې دی او دا سحر د نظربندئ وو په دے سره صرف د موسیٰ علیه السلام په قوت خیالیه باندے اثر شوے دے، سحر د انبیاء په قوت عاقله باندے اثر نشی کولے۔

وَاسْتَرْهَبُوهُمْ سین د پاره د مبالغے دے۔ عَظِيمٍ اشاره ده چه عصا ګانے او رسئ او ساحران ډیر زیات وو۔ دا عظمت د هغه دے یا مراد د عظمت نه د دوی په نیز باندے وو۔

۱۱۷ موسیٰ علیه السلام د وحی انتظار کوو څکه ئے اوفرمائیل وَأَوْحَيْنَا او اشاره ده چه معجزه په اختیار د نبی کښې نه وی چه څه وخت غواړی نو کولے شی نه بلکه هر وخت وحی ته محتاج وی۔ تَلْقَفُ ښکاره معنیٰ دا ده چه هغه ښامار د عصا د موسیٰ علیه السلام ټولے رسئ او عصا ګانے د هغوئ خپله خله کښې تیرے کړے بعض علماء وائی چه تیریدلو نه مراد دا دے چه د هغوی اثر ئے ختم کړو۔ يَأْفِكُونَ افك معنیٰ اړول د څیز د اصل نه او په باطل کښې استعمالیږی نو دوی صورتونه د رسو او همسا ګانو بدل کړے وو په مارانو سره نو اثر د هغے ختم کول دا هم تیرول دی یا هغه ختم کول دا هم کیدیشی لیکن اول قول غوره دے۔

۱۱۸ دا د مقابلے اوله نتیجه ده لفظ د وَقَعَ دلالت کوی په یقینی ظهور باندے چه هیڅ شک پکښې نه وی پاتے شوے۔ وَبَطَلَ بے کاره او بے اثره شول یا فنا شول دواړه احتمالونه دی۔

وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ ﴿١١٩﴾ وَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ

او شول دوی (دافرعونیان) ذلیلان - او وغورزولے شول جادوګر

سٰجِدِيْنَ ﴿١٢٠﴾ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٢١﴾

سجده کوونکی ، اوئیل دوی ایمان راوړے مونږ په رب العالمین باندے ،

رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿١٢٢﴾ قَالَ فِرْعَوْنُ

چه رب دَ موسٰی او دَ هارون دے - اوئیل فرعون

اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا

آیا ایمان راوړوتاسو په ده باندے مخکښ دَ اجازت ځما نه تاسو ته ، یقینًا دا معامله

لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِى الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا

خامخا یو چل دے چه کړیدے تاسو په ښار کښ دے دَ پاره چه اوباسئ

مِنْهَآ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿١٢٣﴾ لَاُقَطِّعَنَّ

دَ دینه اوسیدونکی دَ دے ، نو زر دے چه پوهه به شئ تاسو - خامخا پریکړے به کړم

سال په دے کښ ضمیرونه فرعونیانو ته راجع دی او صریح دلیل دے چه فرعون اِلٰه یا رب نشی کیدلے او دا دَ مقابلے بله ظاهری نتیجه ده -

سال دا دَ هغوی نیک بختی وه چه دَ حق ښکاره کیدلو سره ئے زر ایمان راوړلو او دَ حق دَ اثر دَ وجے نه دوی ایمان راوړلو ته مجبوره شول ځکه ئے مجهوله صیغه ذکر کړه "وَاُلْقِيَ" یا دَ جلتئ دَ سجدے کولو په وجه ئے صیغه دَ مجهول ذکر کړه -

سال دا اقرار او اعلان دَ ایمان دے او مخکنی آیت کښ عملی ایمان وو -

سال دا ئے ځکه اوئیل چه فرعون وهم او نکړی چه رب العٰلمین زه یم - وَهٰرُوْنَ لفظ کښ دَ وهم دفع کول وو یعنی فرعون او نه وائی چه رب موسٰی زه یم ځکه ما دَ ده تربیت کړے دے هر کله چه هٰرُوْنَ ئے ورسره ذکر کړو نو معلومه شوه چه هغه رب مراد دے چه موسٰی او هارون دَ هغه توحید طرف ته دعوت ورکوی -

سال دا دَ فرعون تلبیس دے په عامو خلقو باندے ورنه هغه ته ښه معلومه وه

أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ

لاسونه ستاسو او خپې ستاسو ادل بدل بیا به

لَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿١٢٤﴾ قَالُوا إِنَّا

خامخا په سولئ کړم تاسو ټول (په یو ځائ)۔ اوئیل دوی یقینًا مونږ به

إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴿١٢٥﴾ وَمَا تَنقِمُ مِنَّا

خپل رب طرف ته ګرځیدونکی یو۔ او بدله ګڼړے ته زمونږ نه

چه موسیٰ علیه السلام د دوی سره هیڅ جرګه نه ده کړے قَبْلَ أَنْ آذَنَ لَكُمْ په د سره فرعون د خپل استکبار ذکرکوی چه هرڅه د هغه اذن ته محتاج دی اوحال داچه ایمان راوړل اوحق منلوکښ د هیچا اذن ته حاجت نیشته۔

إِنَّ هَٰذَا لَمَكْرٌ دا خالص دروغ دی اوصریح دلیل دے په عجز د فرعون باندے چه هرکله هغه د مصر د حالاتو نه خبر نه لری نو الله اورب څرنګ کیدلے شی۔

لِتُخْرِجُوا مِنْهَا اشاره کوی چه د موسیٰ علیه السلام مقصد حکومت قبضه کول دی حال داچه د هغه مقصد اقامت د دین وو دا د باطل پرستو خلقو عادت دے چه په حق پرستو باندے د دنیا پرستئ طعن لګوی۔

فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ کښ د باؤ ذکرکوی او په طٰهٰ ۷۱ اوشعراء ۴۹ کښ وئیلے دی چه دا ستاسو مشر استاد دے نو په هغې کښ اشاره کوی چه سبب د موافقت ستاسو په مشوره کښ د ده سره دا دے چه دے ستاسو استاد دے نو په هغه سورتونو کښ سبب ذکر دے او په دے کښ مسبب ذکر دے سره د غایة نه چه لِتُخْرِجُوا دے ۱۲۴ دا تفصیل د فسوف تعلمون دے لاس خپے ادل بدل پریکول او بیا په سولئ خیژول دا د فرعون د وخت نه شروع شویدی دا سے ابن عباس نقل دے په دے کښ اشاره ده لوئے ظلم د فرعون ته ځکه چه کومه سزا الله تعالیٰ د قطاع الطریق او محاربه کوؤنکی د الله اورسول د پاره مقرر کړے ده مائده ۳۳ کښ تو هغه فرعون د ایمان والو د پاره مقرر کړه۔

۱۲۵ دا د ساحرانو (چه مسلمانان شول) بهادری اوتثبت دے یعنی په مرګ کښ خپله فائده ګڼړی چه خپل رب ته ورتلل دی۔

إِلَّآ أَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتْنَا ؕ

مګر دا خبره چه ایمان راوړیدے موږه په ایتونو د رب خپل، کله چه راغلل موږ ته۔

رَبَّنَآ أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّتَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ ﴿۱۲۶﴾

اے رب زموږ! راتوے کړے په موږه ډیر صبر او مړهٔ کړے موږ مسلمانان (په عقیدهٔ د توحید)۔

وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ أَتَذَرُ

او اوئیل غټانو د قوم فرعون ته (هغه ته) آیا پریږدے ته

مُوْسٰى وَقَوْمَهٗ لِيُفْسِدُوْا فِي الْأَرْضِ

موسٰی (علیه السلام) او قوم د هغه دے د پاره چه وران اوکړی په دے ملک کښ

وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ ؕ قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبْنَآءَهُمْ

او پریږدی بندګی ستا او د معبودانو ستا۔ اوئیل فرعون زر دے چه وژنو به ځامن د دوی

وَنَسْتَحْيِ نِسَآءَهُمْ ۚ وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قٰهِرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

او ژوندی به پریږدو (بے حیا کوو به) زنانه د دوی، او یقیناً موږ د دوی د پاسه زور اور یو۔

۱۲۶ یعنی کوم کار چه سبب د اکرام دے هغه نا سبب د عیب اوګڼړلو دا دلیل دے په دے خبره چه همیشه د حق پرستو سره خلقو دشمنی د ایمان په وجه کړیده لکه په سورة بروج ش کښ دی۔ مفسرینو لیکلی دی چه فرعون د دوی لاس خپے پریکړل او په سولئ ئے کړل۔ د مرګ وخت کښ دوی دا دعا لوستله۔ أَفْرِغْ دلالت کوی په کامل صبر باندے او دا رنګ طلب د صبر (چه فعل د بنده دے) د الله تعالیٰ نه دلیل دے چه بنده په خپل فعل کښ الله تعالیٰ ته محتاج دے۔ تَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ اشاره ده چه دلته ایمان او اسلام یو څیز دے او دا رنګ دین د ټولو انبیاؤ اسلام دے۔

۱۲۷ د دے ځائے نه دویم مقام دے په دریے ایتونو کښ۔ او په دے مقام کښ تور مصیبتونه په موسیٰ علیه السلام او د هغه په قوم بیا نیږی او ورسره د هغوی تثبیت۔ دے ایت کښ د فساد نه مراد اختلاف پیدا کیدل دی په سبب د بیان د حق سره او دے ته همیشه باطل پرستو فساد وئیلی دے

قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهِ اسْتَعِيْنُوْا بِاللّٰهِ

اوئیل موسٰی (علیہ السلام) قوم خپل ته مداد غواړئ په الله تعالٰی سره

وَاصْبِرُوْا ۚ اِنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ ۙ يُوْرِثُهَا مَنْ

او صبر کوئ، یقینًا زمکه دَ الله تعالٰی په اختیار کښې ده، ورکوی یې هغه چا ته چې

يَّشَاۤءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۲۸﴾

اوغواړی دَ بندګانو خپلو نه۔ او ښه انجام دَ پاره دَ پرهیزګارو دے۔

قَالُوْۤا اُوْذِيْنَا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَاْتِيَنَا

اوئیل دوی تکلیفونه راکړے شوی دی مونږ ته مخکښې دَ راتللو ستا نه

وَمِنْ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ؕ قَالَ عَسٰى رَبُّكُمْ

او روستو هم دَ راتللو ستا نه مونږ ته۔ اوئیل (موسٰی علیہ السلام) نیزدے ده چې رب ستاسو

اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى

هلاک به کړی دښمن ستاسو او روستو به اباد کړی تاسو په دے

الْاَرْضِ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۹﴾ ع

زمکه (ملک) کښې پس ګوری به (په طریقهٔ دَ امتحان) چې په کومه طریقه عمل کوئ تاسو۔

۱۵ ع ۳ ۵

---

وَاٰلِهَتَكَ دَ دے نه مراد هغه معبودان دی چه په مصر کښې دَ فرعون په امر سره دَ هغوی عبادت کیدلو چه په هغې کښې شکلونه دَ فرعون او غوا او پیسهٔ او نمر او سپوږمئ موجود وو فرعون هم پخپله دَ پیسهٔ عبادت کولو اګر چه فرعون په مناظره کښې مغلوب او عاجز شو لیکن سرهٔ دَ دینه ځان غالب ګنړی دا نهایت بے عقلی ده۔

۱۲۸ په دې ایت کښې موسٰی علیه السلام خپل قوم ته دَ مصیبتونو په خلاف کښې دوه علاجونه اوخودل استعانت بالله او صبر کول او دوه زیری یې بیان کړل یو دَ دُنیا بل دَ اخرت۔

الْاَرْضَ لِلّٰهِ ملکیت حقیقی دَ ټولے زمکے او دَ زمکے دَ مصر الله تعالٰی لره دے او په ملکیت حکمی سره یې الله تعالٰی ورکوی او تقسیم کوی۔

۱۲۹ دا قول دَ بنی اسرائیلو په طریقه دَ اظهار دَ تنګیٔ وو ځکه موسٰی علیه السلام

وَلَقَدْ اَخَذْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِيْنَ

او یقینًا نیولی وو مونږه فرعونیان په کلونو د سوکړې سره

وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۳۰﴾

او په کمښت د میوو سره د دې دپاره چې دوی نصیحت واخلي.

فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ

نو هرکله به چې راغله دوی ته خوشحالي دوی به وئیل دا زمونږه حق دے،

وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى

او که اوبه رسیده دوی ته څه تکلیف نو سپیره والے به ئې ګڼړلو د موسٰی (علیه السلام)

وَمَنْ مَّعَهٗ ؕ اَلَآ اِنَّمَا طٰٓئِرُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ

او د هغه چاچې د هغه ملګري وو. خبردار یقینًا سپیره والے د دوی مقرر وو د نیز د الله تعالٰی نه

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَقَالُوْا

لیکن ډیر د دوی نه پوهیږي. او وئیل دوی

مغوی ته نوږ دوه زیری دنیوی پیش کړل. اُوْذِيْنَا د هکتي اَذًى نه مراد قتل او استحیاء ده او نورې کارونه د ذلت د بني اسرائیلو نه اخستل اودادی روستنۍ نه مراد د تذلیل کارونه او بیا اراده د قتل اودا استحیاء ده. كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ دا دلیل دے چه په عملونوکښې مقصد، کیفیات او شرعی طریقې دی او دا ئې په سورة یونس ۱۳ کښې هم ذکر کړے دے.

۱۳۰ د دے ځائے نه دریم مقام دے تر ۱۳۱ پورے یو پکښې ذکر د امداد د الله تعالٰی دے د بنی اسرائیلو سره په رالیږلو د اووه عذابونو په فرعونیانو باندے او په اخرکښې د هغوی غرقول. په دے ایت کښې دوه عذابونه ذکرشول سِنِيْنَ عذاب د باران او صحرا والودے. وَنَقْصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ دا عذاب د باړونو والودے او ثمرات د زمکے ټولو امدنیاتو او تجارتي منافعو ته شامل دے.

۱۳۱ لَنَا هٰذِهٖ ځان به ئې د فراخئ او خوشحالئ حقدار ګڼړلو د الله تعالٰی فضل او رحم ته ئې هیڅ دخل نه ورکوؤ. يَطَّيَّرُوْا تطیر نه مراد دادے چه هرکله

مَهْمَا تَأْتِنَا بِهٖ مِنْ اٰيَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا ۙ

هرڅه چه راوړې ته مونږ ته ځه نښه دپاره د دے چه جادو اوکړے په مونږه په هغې سره

فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۲﴾ فَاَرْسَلْنَا

نو نه یو مونږ په تا ایمان راوړونکی۔ پس رااولیږو مونږ

عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ

په دوی باندے طوفان او مولخان او سپږے

وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ اٰيٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ ۫

او چینده خان ، او وینے (دا ټولے نښے وے) جدا جدا ،

فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿۱۳۳﴾

تو دوی لوئی اوکړه (د ایمان راوړلونه) او وو دوی قوم مجرمان ۔

مصیبتونه د هرڅوا ته راشی نو خپل بد عمل ته نسبت نه کوی بلکه بل چا ته نسبت کوی وائی چه دا فلانے شخص یا فلانے کور یا سفر وغیره سپیرۀ وو او حدیث کښ راغلے دی چه "لَا طِيَرَةَ فِي الْاِسْلَامِ"۔ دے ایت نه معلومه شوه چه همیشه باطل پرستو نیکانو خلقو ته سپیرۀ وئیلے دی او د خپلے بد حالئی نسبت ئے هغوی ته کړے دے لکه په سورۀ یس کښ دی۔ عِنْدَ اللّٰهِ د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دے چه مصیبتونه د دوی د طرف د الله تعالیٰ نه دی یا مقرر دی د الله تعالیٰ سره په تقدیر کښ۔ شربینی وئیلے دی چه سبب د دوی د سپیرۀ والی عملونه د دوی دی چه مکتوب دی د الله تعالیٰ سره۔ لَا يَعْلَمُوْنَ لیکن اکثر خلق د حوادثو مصیبتونو نسبت اسبابو محسوسو ته کوی او د الله تعالیٰ نه غافل وی او د هغه تقدیر هم نه منی۔ فائده: اَلْحَسَنَةُ ئے معرفه ذکر کړیده او سَيِّئَةٌ نکره ده اشاره ده چه حسنات ډیر دی او سیآت لږ دی۔

۱۳۲ دا د دوی سخت ضد او عناد وو ځکه چه هم ورته ایت وائی او هم ورته د سحر نسبت کوی۔

۱۳۳ بعض مفسرینو لیکلی دی چه موسیٰ علیه السلام دوی ته دعا د شر اوکړله نو دا عذابونه په دوی باندے شروع شول۔ فَاَرْسَلْنَا په دے کښ اشاره ده

وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوْا يٰمُوْسَى

او هرکله چه راپرېوتو په دوی باندې یو عذاب (د دغه عذابونو نه) دوی به وئیل اے موسیٰ

ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ج

دُعا اوغواړه مونږ لره د رب خپل نه په سبب د هغې چه لوظ ئې کړے دے ستا سره ،

لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ

که چرے لرے کړو ته (په دُعا سره) زمونږ نه دا عذاب خامخا ایمان به راوړو په تا

وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۱۳۴﴾

او خامخا او به لیږو ستا سره بنی اسرائیل ۔

ډیر والی ته او معلومه شوه چه د هغې د پاره اسمانی اسباب وو طوفان نه مراد هغه شے دے چه عام هلاکت راولی که سخت بارانونه وی یا عامه وباء وی لکه دلته بعض مفسرینو مرض د شری لیکلے دے نو دا عذاب مالی او بدنی دواړو ته شامل دے۔ وَالْجَرَادَ دا عذاب مالی دے ځکه ملخانو د دوی ټول فصلونه او میوے او خوړلے او دا د قحط نښه وی۔ او ملخان خوړل بغیر د ذبح نه جائز دی که مړه نوعه وی هم په حدیث ابو داؤد کښ راغلے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم نه خوړل ځکه چه طبعاً ئې بدګڼړل لکه ضب (خادمیږ د صحرا)۔ وَالْقُمَّلَ د دے یو قسم هغه دی چه تیارے غلے او خوری هغې ته سپګئ وئیلے شی دویم قسم هغه دی چه په ویښتو او بدن کښ وی او چیچل کوی دریم هغه دی چه په څاروو پورے او نخلی او خوراک کوی هغې ته ګنې وئیلے شی دا ټول قسمونه دلته مراد دی نو دا هم مالی او بدنی عذاب دے۔ وَالضَّفَادِعَ دا هم د دوی په خوراک او څښاک کښ داخلیدل او د دوی په سرونو او بدنونو باندې ورختل۔ وَالدَّمَ دا هم د دوی په خوراک او څښاک کښ ښکاره کیدله۔ مُفَصَّلٰتٍ عذابونه جدا جدا وو یو روایت کښ راغلے دی چه د هر دوو عذابونو په مینځ کښ اووه یا اته ورځے وقفه وه یا دا چه د دے دلالت کول په ایت الله باندې ښه ښکاره او واضح وو۔ فَاسْتَكْبَرُوْا دا مرض د عقیدے دے او مُجْرِمِيْنَ مرض د عملونو دے۔

سکلا دا ایت دلیل دے په دے خبره چه فرعونیانو الله تعالیٰ منلو او په مصیبت کښ د الله تعالیٰ نه د دُعا د غوښتنے قائیل وو او په دے ایت کښ

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَىٰ أَجَلٍ هُمْ

پس هرکله چه لرے به کړو موږ دَ دوی نه عذاب تر یو نیټې چه دوی به

بَالِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ ﴿۱۳۵﴾ فَانْتَقَمْنَا

رسیدونکی وو هغې ته دغه وخت دوی به ماتولو لوظ لره. پس بدل واخستو موږه

مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ فِي الْيَمِّ بِأَنَّهُمْ

دَ دوی نه نو غرق کړل موږ دوی په دریاب کښ په دے وجه چه دوی

كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ﴿۱۳۶﴾

دروغژن کړه ایاتونه زموږ او وو دوی دَ هغې نه بے پرواه.

معلومه شوه چه دَ موسیٰ علیه السلام دوه مقصده وو یو مسئله دَ توحید او بل ازادول دَ مؤحدینو. بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ مراد دَ عهد نه نبوت دے یا مراد ترینه اجابت دَ دعا دے او با په بما کښ متعلق ده په ادْعُ پورے یعنی په حق دَ دے چه الله تعالیٰ تا لره نبوت درکړے. یا وسیله اونیسه په هغه عهد سره، یا با دَ پاره دَ قسم ده. لَئِنْ كَشَفْتَ نسبت دَ کشف مجازی دے یعنی په سبب دَ دعا ستا سره چه په ادع سره ذکر ده او دا سے په سورة زخرف ۴۹ کښ هم دی.

۱۳۵ دے ایت کښ دَ دوی ضد او عناد ذکر شوید ے. إِلَىٰ أَجَلٍ مراد دَ دے نه هغه اوره یا اته ورځے دی چه الله تعالیٰ دَ هر عذاب دَ پاره مقرر کړے وے او دا سے په زخرف ۵۰ کښ هم دی.

۱۳۶ په دے ایت کښ دَ دوی اخري عذاب دَ غرق ذکر شوے دے او دَ هغې دوه وجے ذکر کړے دی. فَانْتَقَمْنَا نقمت په اصل کښ زائیل کول دَ نعمت دی په عذاب سره. الْيَمِّ ډوبونکی دریاب یا غولئ دَ دریاب ته وئیلے شی او ازهری نه نقل دے چه يَم بحر مالح او بحر عذب دواړو ته وئیلے شی لکه فَاقْذِفِيهِ فِي الْيَمِّ کښ عذب مراد وو او دلته بحر مالح (قلزم) مراد دے او بحر صرف مالح ته وئیلے شی. او دوه وجے دَ عذاب تکذیب او غفلت یئے ذکر کړو اگر چه دَ دوی نور هم ډیر گناهونه وو لیکن دا دواړه دَ ټولو گناهونو جرړے وے.

سوال: غفلت خو امر غیر اختیاری دے نو دا ئے ولے سبب دَ عذاب کښ

وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ

او ورکړل مونږ هغه قوم ته چه کمزوري کړے شوي وو (په مصر کښې)

مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ بٰرَكْنَا

مشرقونه د زمکے او مغربونه د هغے، هغه زمکه چه برکتونه اچولی دي مونږه

فِيْهَا ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى

په هغے کښې۔ او پوره شوه وعده د رب ستا ښائسته د

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ بِمَا صَبَرُوْا ؕ وَدَمَّرْنَا

بني اسرائيلو سره، په وجه د دے چه صبر ئے کړے وو۔ او هلاک کړل مونږ

مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ

هغه چه جوړول فرعون او قوم د هغه

وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ ﴿۱۳۷﴾ وَجَاوَزْنَا

او هغه باغونه چه دوي اچولے وو په سقفونو۔ او پورے ويستل مونږ

ذکر کړو؟

جواب: مراد د دے نه اعراض کول او بے پرواهي کول دي او ديته تغافل وئيلے شي دا مستلزم د دے توهين د آيا تونو لره۔

۱۳۷ د دے زمکے نه مراد زمکه د شام ده چه په هغے کښې دنيوي او اخروي برکات ډير دي بني اسرائيل اول د شام د زمکے وارثان شول بيا د داؤد عليه السلام او سليمان عليه السلام په وخت کښې د مصر وارثان هم شول۔

يُسْتَضْعَفُوْنَ مراد ترينه د دوي نه عبيدان جوړول او د اولاد ذبح او استحياء او سخت کارونه کول او ذليل کول دي او په سورة قصص ۵ ـ ۶ کښې هم ذکر دي۔ مَشَارِقَ او مَغَارِبَ اشاره ده ټولو طرفونو ته او هر کله چه د هرے علاقے مشرق او مغرب جدا جدا وي کړ د دے وجے نه جمع ئے ذکر کړل۔ الْاَرْضِ مراد د دے نه هغه علاقه ده چه د فرات نه تر بحر سرخ (قلزم) پورے ده دا بقاعي ذکر کړے دي په سورة مائده کښې او دا زمکه په سورة انبياء ۷۱ ـ ۸۱ کښې او سورة

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتَوْا عَلٰى قَوْمٍ

بنی اسرائیل د دریاب نه نوراتلل دوی په یو قوم باندے

يَّعْكُفُوْنَ عَلٰٓى اَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوْا

چه هغوی بندګی کوله د معبودانو خپلو ، دوی اوئیل

يٰمُوْسَى اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا لَهُمْ

اے موسٰی (علیه السلام) ! جوړ کړه مونږ لره د بندګئ حقدار لکه څرنګه چه دوی لره

اٰلِهَةٌ ۭ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

معبودان دی . اوئیل هغه یقینًا تاسو قوم یئ ناپوهه .

---

اسراء ۱ کښ ذکر دی۔ کَلِمَتُ رَبِّكَ هغه ذکر دی په سورة قصص ۵ ، ۶ کښ۔
مَاكَانَ يَصْنَعُ مراد د دے نه بنګلے او کار خانے وغیره وے۔
۱۳۸ دا څلورم مقام دے تر ۱۴۱ پورے په دے کښ بیان د کمزوری والی د عقیدے د بنی اسرائیلو دے او پوهه کول د موسٰی علیه السلام هغوی لره اشاره ده چه په بنی اسرائیلو کښ په وخت د وجود د نبی د هغوی کښ کمزوری دینی شروع شوے ده۔ وَجَاوَزْنَا دا مجاوزه (پیچ کول) په ورځ د عاشوراء د دے وجے نه هغوی دغه ورځ روژه نیوله او په دے اُمت کښ دغه روژه نیول سنت دی۔
عَلٰى قَوْمٍ دا قوم د لخم قبیلے وو او شکلونه ئے د غواګانو جوړ کړے وو او د هغے عبادت ئے کوو بعضو ناپوهو بنی اسرائیلو دا مطالبه کړے وه د وجے د زوړ عادت نه او د وجے د نوی ایمان راوړلو نه۔ او دغسے وینا په غزوة د حنین کښ بعض نوی مسلمانانو هم کړے وه چه مونږ لره یو ونه مقرر کړه چه په هغے پورے اسلحے زوړندے وو د پاره د برکت لکه څرنګ چه دے مشرکانو لره دا سے ونه ده او هغے ونے ته ذات انواط وئیلے کیدا و نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته زورنه او کړه چه تاسو هم د بنی اسرائیلو په شان وینا کوئ۔
سوال: دا دواړه واقعے خو د هغوی په کفر او ارتداد باندے دلالت کوی ؟
جواب: دا دے چه دا کفر نه دے ځکه چه د خپل نبی نه ئے د دغه مثل مطالبه کړے ده په دے عقیده باندے چه حلول د الله ممکن دے او دا جهل عام د

إِنَّ هٰٓؤُلَآءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ

یقینًا دا خلق هلاک به کړیشي هغه چه دوی مشغول دي په بندګۍ د هغے کښ او باطل دي

مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٣٩﴾ قَالَ أَغَيْرَ اللَّهِ

هغه عملونه چه دوی یې کوي. او وئیل (موسٰی علیه السلام) ایا سیوا د الله تعالیٰ نه

أَبْغِيكُمْ إِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ عَلَى الْعٰلَمِينَ ﴿١٤٠﴾

طلب کړم تاسو لره بل معبود او هغه (الله تعالیٰ) غوره والے در کړے تاسو لره په خلقو د زمانے (په سبب توحید)

وَإِذْ أَنجَيْنٰكُم مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ

او کله چه بچ کړی مونږ تاسو د فرعونیانو نه چه رسول یې تاسو ته

سُوٓءَ الْعَذَابِ يُقَتِّلُونَ أَبْنَآءَكُمْ

بد عذابونه وژل یې ځامن ستاسو

وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ وَفِي ذٰلِكُم

او بے حیائي پرېښودلے زنانه ستاسو او په دیکښ

---

په نوی مسلمانانو کښ. يَعْكُفُونَ عكوف وئيلے کیږی لازم نیول د یو څیز او توجه کول هغه ته په طریقه د تعظیم سره. تَجْهَلُونَ اشاره ده چه مشابهت د مشرکانو سره هم جهل دے.

۱۳۹ د اولے جملے مطلب دا دے چه دا معبودان فناه کیدونکی دي په لاسونو د مؤحدینو او د طرف د الله تعالیٰ نه هم په بلے طریقے سره. د دوی عبادت نه دے جائز. د دویمے جملے مطلب دا دے چه د دوی دا شرکی عملونه بے فائدے دی نه نفعه ورکولے شي او نه ضرر دفع کولے شي.

۱۴۰ دا زورنه ده قوم ته د موسیٰ علیه السلام اول یې ذکر کړه چه دا معبودان اهل د عبادت نه دي او س ذکر کوی چه الله تعالیٰ حقدار د بندګۍ دے په توحید سره ځکه چه دا سبب د فضیلت دے او طریقه د فضیلت ذکر ده په سورة مائده ۲۰ کښ.

بَلَآءٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ عَظِيۡمٌ ﴿۱۴۱﴾ وَوٰعَدۡنَا

نعمت (امتحان) وو دَ طرف دَربِ ستاسو نه لوئے۔ او وعده اوکړه موږه

مُوۡسٰى ثَلٰثِيۡنَ لَيۡلَةً وَّاَتۡمَمۡنٰهَا بِعَشۡرٍ

دَ موسٰی (علیه السلام) سره دَ دیرشو شپو او پوره کړی وه موږ هغه په لسو نورو سره

فَتَمَّ مِيۡقَاتُ رَبِّهٖۤ اَرۡبَعِيۡنَ لَيۡلَةً‌ ۚ وَقَالَ

نو پوره شو وخت مقرر دَ رب دَ خوانه خلوینت شپې او وئیل

مُوۡسٰى لِاَخِيۡهِ هٰرُوۡنَ اخۡلُفۡنِىۡ فِىۡ قَوۡمِىۡ

موسٰی (علیه السلام) خپل رور هارون (علیه السلام) ته چه نائب شه په قوم ځما کښ

وَاَصۡلِحۡ وَلَا تَتَّبِعۡ سَبِيۡلَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ ﴿۱۴۲﴾

او اصلاح لموه دَ دوی او مه ځه په لار دَ ورانی کوونکو پسې۔

۱۴۱ دے آیت کښ بیان دَ سبب دَ فضیلت دَ بنی اسرائیلو دے او تذکیر دَ نعمت دَ الله تعالٰی دے او دا دے آیت په سورة بقره ۴۹ او ابراهیم ۶ کښ هم ذکر دے.
۱۴۲ دَ دے ځائے نه پنځم مقام دے تر ۱۵۱ پورے په دے کښ ذکر دَ اول میقات دے دَ پاره دَ کتاب ورکولو او استخلاف دَ هارون علیه السلام دے او بیان دَ طلب دَ روئیت (لیدلو) دی دَ موسٰی علیه السلام الله تعالٰی لره او بیا شرک دَ بنی اسرائیلو په عبادت دَ سخی سره او غصه دَ موسٰی علیه السلام په هغے. دا خلوینت شپې میاشت دَ ذوالقعده او لس ورځے دَ ذوالحجه وے او روایاتو کښ راغلی دی چه دَ میاشت نه روستو موسٰی علیه السلام مسواک مستعمل کړو نو الله تعالٰی ورته لس ورځے نورے زیاتی کړے دَ دے وجے نه بِعَشۡرٍ ئے جدا ذکر کړو او په دے لسو کښ ورته تورات ملاؤ شو.
سوال: فَتَمَّ مِيۡقَاتُ رَبِّهٖۤ الخ دے ته څه ضرورت وو؟
جواب: مراد په دے کښ دفع دَ وهم ده یعنی څوک دا وهم اونکړی چه عشر دَ ثلثین نه جزء دے بلکه روستو دے دَ ثلثین نه. فرق په مینځ دَ میقات او وقت کښ دا دے چه وقت مطلق وخت ته وئیلے شی او میقات هغه وخت دے چه دَ څه کار دَ پاره مقرر کړے شی. وَقَالَ مُوۡسٰى اشاره ده چه په وخت

وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ

او هر کله چه راغئ موسیٰ (علیه السلام) دپاره د نیټے مقرر زمونږه او خبرے اوکړے ده سره رب دَده

قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ؕ قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ

ده اووئیل اے ربه ځما اوښایه ماته ځان خپل چه ځه اوګورم تاته. الله تعالیٰ اوفرمائیل هیچرته نشے لیدے مازه دنیا کښ

وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ

لیکن اوګوره دے غره ته که ټینګ شو دے په ځائے خپل باندے

فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ

نو زر ده چه او به وینے ته ما لره، نو هر کله چه نور (جلوه) ښکاره کړو رب دَده غره ته

جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ

او کړو ټوټه ټوټه هموار د زمکے سره او پریوتو موسیٰ (علیه السلام) بے هوشه، نو هر کله چه را وخت شو (په هوش شو)

قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۴۳﴾

او وئیل ئے پاکی ده تا لره ما توبه کړیده تاته او زه اول یم د مؤمنانو نه (په دے وخت کښ)

د غیبوبت د امیر کښ استخلاف ضروری دے که امامتِ کبریٰ وی یا صغریٰ وی.

سوال: هارون علیه السلام خو نبی وو نو نبی خو د بل چا نه خلیفه نه جوړیږی؟

جواب: انبیاؤ کښ درجات دی نو هارون علیه السلام نبی وو لیکن کار د خلافت په ذمه د موسیٰ علیه السلام وو نه په ذمه د ده. - وَاَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ اه د پاره د تاکید دی لکه سورة ص ۲۲ او ۲۶ کښ دی.

۱۴۳ :- د کلام د اوریدلو نه شوق د دیدان پیدا شو او دا سوال د موسیٰ علیه السلام د وجے د محبت نه دے او سوال د بنی اسرائیلو (ارنا الله جهرة) د بے ادبئ او د انکار د وجے نه وو ځکه هغه سبب د عذاب شو او حق مسلک دا دے چه لیدل د الله تعالیٰ په دنیا کښ ممکن دی لیکن واقع نه دی او د بعض علماؤ په نیز په دنیا کښ ممتنع دے. د امکان د پاره دلیلونه دا دی (۱) موسیٰ علیه السلام د دے طلب کړے دے او انبیاء علیهم السلام ممتنع نه طلب کوی ځکه چه طلب د ممتنع جهل دے او انبیاء د جهل نه پاک دی (۲) لن ترانی ووئیلے لن اُری ئے

قَالَ يٰمُوْسٰى اِنِّىْ اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ

او فرمائيل الله تعالىٰ اے موسىٰ (عليه السلام) يقيناً ما غوره كړے يې ته په خلقو باندے

بِرِسٰلٰتِىْ وَبِكَلَامِىْ ۖ فَخُذْ مَاۤ اٰتَيْتُكَ

په پيغامونو خپلو او په خبرو خپلو سره، نو اونيسه هغه (كتاب) چه دركړو ما تاته

وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾ وَكَتَبْنَا لَهٗ

او شه د شكر كوونكو نه (په بيانولو د دے سره). او ليكلے دے مونږ هغه لره

نه دے وئيلے (۳) تعليق يې په استقرار د جبل پورے كړے دے او دا ممكن دے او تعليق په ممكن پورے امكان فائده كوى۔

سوال: حرف د لن دلالت كوى په نفى تابيدى باندے او دا معتزلو وئيلى دى؟

جواب: لن دلالت كوى په نفى مؤكد باندے كه تابيدى وى او كه نه وى او د دے تحقيق شربينى په سراج المنير كښې ذكر كړے دے۔

سوال: موسىٰ عليه السلام تُبْتُ وئيلے دى؟

جواب: دا توبه د تواضع او د عبديت د وجے نه ده د گناه د وجے نه نه ده بالاجماع هاں توبه ده د دے وجے نه چه بے اجازته يې دا دُعا كړے ده۔ اوليا د الله تعالىٰ په آخرت كښې د پاره د جنت والو يقيني دى د دے تفصيل په سورة قيامه ۲۳ او سورة تطفيف ۱۵ كښې شته۔ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ دا يو مثال دے چه د غر ظاهرى قوت ډير زيات دے نو چه هغه د الله تعالىٰ د تجلى طاقت نه لرلو نو كمزورے وجود د انسان به څنگه طاقت اولرى. او اجماع ده د اُمت چه دا توبه د موسىٰ عليه السلام د گناه نه نه وه ځكه چه هغه گناه نه ده كړے او حديث صحيح كښې راغلے دى چه الله تعالىٰ په تجلى كښې صرف طرف د گوتے (كچه گوته) ښكاره كړے وۀ۔ او شربينى دلته وئيلے دى چه دلته د صاحب كشاف د خپل مذهب فاسد په اثبات كښې تاويلات دى د هغے نه ځان اوساتئ۔

۱۴۴ دا تسلى ده د الله تعالىٰ د طرف نه موسىٰ عليه السلام ته چه كه ديدار دې منع كړو ستا نه ليكن نور احسانات دې په تا كړيدى النَّاسِ نه مراد اُمتيان دى او د شكر نه مراد بيانول د كتاب د الله تعالىٰ دى او رازى وئيلے دى چه دا تسلى هم دلالت كوى په امكان د رويت باندے۔

فِي الْأَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً

په تختو کښې دَ هر قسم ضروري كار نه وعظ

وَّتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ

او تفصيل دَ هر ضروري حکمونو ، نو اونیسه دا په کوشش سره

وَّأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا بِأَحْسَنِهَا سَأُورِيكُمْ

او حکم کوه قوم خپل ته چه اونیسي (عمل کوي) دا په ښائسته طريقے سره. زر دے چه او به ښايم تاسو ته

دَارَ الْفٰسِقِينَ ﴿۱۴۵﴾ سَأَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِينَ

ملک دَ نافرمانو خلقو . خاما منع کوم دَ پوهے دَ ایتونو خپلو نه هغه کسان

يَتَكَبَّرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ

چه لوئي کوي په زمکه کښې په ناحقه سره .

وَإِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا بِهَا

او که اوويني دوي هره نښه دَ حق . نو نه راوړي ايمان په هغے باندے ،

۱۴۵ تورات په تختوکښې نازل شوے وو ليکن دَ هغے تختو شمار او جنس په صحيح روايا تو کښې نه دے معلوم نو په هغے کښې بحث کول عبث کار دے .

مَّوْعِظَةً دَ دے نه مراد زجرونه او تخويفات وغيره دي .

وَتَفْصِيلًا دَ دے نه مراد احکام دَ تورات دي .

بِأَحْسَنِهَا دا اضافت بيانيه دے يعني ټول احسن دے يا اشاره ده چه احسن عزيمت ته وئيلے شي او حسن رخصت ته وائي .

دَارَ الْفٰسِقِينَ دَ دے نه مراد يا خو زمکه دَ شام ده چه په هغے کښې جبابرة اوسيدل يا ملک دَ مصر دے يا دَ دے نه مراد جهنم دے په ورځ دَ قيامت په روستنئ توجيه سره خطاب دے مخالفت کوونکو دَ کتاب الله ته او په دے معنی سره دا تخويف دے او مخکنئ معنی سره دا بشارت دے .

وَإِن يَرَوْا سَبِيلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ

اوکه اوويني دوی لار د هدايت نو نه يې نيسي هغې لره

سَبِيلًا ۚ وَإِن يَرَوْا سَبِيلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ

لار (دَ تګ) - اوکه اوويني دوی لار دَ ګمراهۍ نو نيسي هغې لره

سَبِيلًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا

لار (دَ تګ) - دا په دے وجه چه دوی دروغژن ګڼړی اَيتونه زموږ

وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ﴿١٤٦﴾ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا

او دوی دَ هغې نه بے پروا دی - او هغه کسان چه دروغژن ګڼړی

بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ ۚ

اَيتونه زموږ او ملاقات دَ اٰخرت نو برباد دی عملونه دَ دوی۔

ف۱۴۶ مخکښ اَيت کښ ترغيب ذکرشو دَ پاره دَ عمل په تورات باندے نو په دے اَيت کښ زور نه ده دَ پاره دَ هغه چا چه هغوی دَ الله تعالیٰ دَ کتاب نه مخ اړوونکی دی دَ وجے دَ ضد او عناد نه او روستو جملے دلالت کوی دَ دوی په عناد کولو باندے دا اَيت دليل دے په دے خبره چه دَ چا په زړه کښ څه تکبر وی نو هغه دَ پوهے دَ کتاب الله نه محرومه وی او علماؤ هغه نهه صفات ذکرکړيدی چه هغه منع کوونکی دی دَ پوهے دَ قراٰن نه چه هغه په اتقان ص۲/۱۳۲ دَ سيوطی، او البرهان ص۲/۱۸۰ دَ زرکشی کښ ذکر دی۔ عَنْ اٰيٰتِيَ دليلونه دَ توحيد او اَيتونه دَ تورات او دَ قراٰن مراد دی۔ سَاَصْرِفُ يعنی دَ فهم دَ قراٰن نه منع کول په سبب دَ ختم او دَ طبع (مهر) سره په زړونو دَ دوی باندے۔ بِغَيْرِ الْحَقِّ مراد دَ دے نه دين باطل دے يعنی په دينِ باطل سره تکبر کوی او دا اشاره ده چه تکبر بالحق جائز دے يعنی تکبر دَ اهل حق په اهل باطل باندے او شربينی مشهور مثل ذکرکړيدے چه تکبر په مقابله دَ متکبر کښ صدقه ده۔

هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۴۷﴾

نه شي ورکيدې دوی بدله مګر د هغه عملونو چه دوی به کول.

وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَىٰ مِنْ بَعْدِهِ مِنْ

او جوړ کړو قوم د موسى (علیه السلام) روستو د تللو د هغه نه د

حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ ۚ أَلَمْ

کالو د دوی نه سخی يوه جوسه وه چه هغې له اواز وو. آيا دوی

يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ

سوچ نه کوو چه دا سخې خبرې نشي کولې د دوی سره او نه خودلې شي دوی ته

سَبِيلًا ۘ اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ ﴿۱۴۸﴾

لار (د فائدې) او نيولو دوی هغې سخي لره (په خدايئ سره) او وو دوی ظلم (شرک) کوونکي.

---

۱۴۷ دے ايت کښې يره اخروی ده د پاره د منکرينو. وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ کښې اشاره ده چه د دوی نه اميد د توبې کولو نيشته ځکه چه اخرت نه مني نو مراد دا دے چه سره د تکذيب نه مرشي بغير د توبې کولو نه. اَعْمَالُهُمْ مراد د دينه نيک عملونه د هغوی لکه صله رحمي او صدقه کول او ښه اخلاق د هغوی.

۱۴۸ دا بله واقعه ده په وخت د سفر کولو د موسى عليه السلام کښې ميقات اول ته او د دے تفصيل په سورة طٰهٰ ۸۵ کښې شته. دا ايت دليل دے په دے خبره چه هغه سخې د سامری صرف جوسه وه او اواز د سخي ترينه وتلو د هغې له غوښه او وينه نه وه جوړه شوې او دا قول غوره دے او په دے ايت کښې د معبودِ حق دوه صفات ذکر دی اول دا چه هغه له به صفت د کلام وی دويم دا چه هغه ښودنه د فائدے کولې شي او دا دواړه صفتونه په سخي کښې نيشته او نه په مړو کښې او نه په معبودانِ باطله کښې. اول اتخذ په معنی د جوړولو دے او دويم په معنی د معبود ګنړلو دے. حُلِيِّهِمْ دا اګرچه مستعار وو ليکن روستو د هلاکت د فرعونيانو نه هغه ميراث او ملکيت د بنی اسرائيلو او ګرځيدلو لکه په سورة دخان ۲۵ ۲۸ کښې دی. لَا يُكَلِّمُهُمْ دا صريح دليل دے چه الله تعالىٰ لره

وَلَمَّا سُقِطَ فِيٓ اَيْدِيْهِمْ وَرَاَوْا اَنَّهُمْ

او هر کله چه اوغورزولے شو ددوی په مخکښې او پوهه شو دوی چه یقیناً

قَدْ ضَلُّوْا ۙ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا

دوی گمراه شوی دی، نو اوئیل دوی که اونکړو رحم په مونږه رب زمونږ

وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۱۴۹﴾

او بخښنه ئے اونکړه مونږ ته نو خامخا شو به مونږ د تاوانیانو نه۔

وَلَمَّا رَجَعَ مُوْسٰۤى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ

او هر کله چه واپس شو موسیٰ (علیه السلام) خپل قوم ته غصه وو (په شرک کولو د قوم)،

اَسِفًا ۙ قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِيْ مِنْۢ بَعْدِيْ ۚ

غمژن وو، اوئیل ئے بد دے هغه کار چه کړی دے تاسو روستو زما نه،

اَعَجِلْتُمْ اَمْرَ رَبِّكُمْ ۚ وَاَلْقَى الْاَلْوَاحَ

ایا تلوار اوکړه تاسو د وعدے د رب ستاسو نه او کیخودلے ئے تختے

صفت د کلام شته دے ځکه چه دا وصف د معبودیت دے۔ قَوْمُ مُوْسٰى مراد د دینه بعض کسان دی تولو د سخی عبادت نه دے کړے په قرینه د سورة اعراف [۱۵۹] لره۔

[۱۴۹] د دے یو مطلب دا دے چه موسیٰ علیه السلام هغه سخے اوسیزلو او ایرے د هغے ئے دریاب ته او غورځولے لکه په سورة طٰهٰ [۹۸] کښې دی۔ دویم مطلب دا دے چه هر کله دوی پښیمانه شو په عبادت د سخی ځکه چه غورځیدل لګنا یه ده د پښیمانتیا نه کیدلو نه او سبب د پښیمانئ روستو ایت کښې ذکر دے۔

قَالُوْا ۙ دا ذکر د توبے د بنی اسرائیلو دے د عبادت د سخی نه او دا سبب د عفو دے چه په سورة بقره [۵۴] کښې ذکر دے۔ يَرْحَمْنَا دلته رحم په معنیٰ د اجابت د توبه دے او هغه مقدم دے په مغفرت باندے۔ او هر کله چه رحم په معنیٰ د بچ کولو وی د گناه نه، نو بیا مغفرت مقدم کیږی په رحم باندے لکه په دعا د ادم علیه السلام سورة اعراف [۲۳] کښې۔ او نور ځایونه هم دا سے ډیر ذکر دی۔

وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُ إِلَيْهِ ۚ قَالَ

او ونیوله یٔې سر دَ رور خپل راښکلو یٔې ځانته - او وئیل (هارون علیه السلام)

ابْنَ أُمَّ إِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا

اے دَ مور ځویه! یقیناً دے قوم کمزورے گنړلے وومه ځه او نیزدے وه

يَقْتُلُونَنِي فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْأَعْدَاءَ

چه وژلے وے ځه ، پس مه خوشحالوه په ما باندے دُشمنان

وَلَا تَجْعَلْنِي مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿۵۰﴾

او مه گنړه ما دَ قوم ظالمانو سره .

نښه دَ کتاب ورکولو نه روستو الله تعالیٰ دهٔ ته خبر ورکړو په باره دَ شرک دَ قوم دَ هغه کښں دَ دے وجے نه هغه غصه او واپس شو۔ او اصل ترتیب دَ واقعے سورۃ طٰهٰ کښں ذکر دے چه اول خطاب یٔې دَ قوم سره اوکړو بیا دَ هارون علیه السلام سره بیا دَ سامری سره۔ او دے سورت کښں ترتیب مقصود نه دے.
خَلَفْتُمُونِي اه خطاب دے عبادت کوونکو دَ سخی ته یعنی شرک دَ توحید په ځائے کیښودل دا نا کاره خلافت دے یا خطاب دے هارون علیه السلام او نورو مشرانو ته چه تاسو زما صحیح خلافت نه دے کړے ځکه چه تاسو دَ شرک نه منع نه دهٔ کړے۔ أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ تلوار نه مراد بدلول او امر نه مراد دین دَ توحید دے یا امر نه مراد وعده دَ څلویښتو ورځو ده او دا سے په سورۃ طٰهٰ ۸۶ کښں ذکر دی۔ وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ مراد دَ دینه کیښودل دی په حالت دَ غصه کښں غورځول په بے ادبئ سره نه دی مراد ځکه چه دا دَ نبی دَ شان سره نه ښائي او دا رنګ صحیح دلیل نیشته په دے خبره چه څه تختے دَ هغے ماتے شویدی او دلته ابن جریر دَ قتادہ نه څه اسرائیلی روایات نقل کړیدی چه په هغے باندے ابن عطیه او ابن کثیر رد کړیدے.
وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ دا نیول دَ وجے دَ غصے نه دی دَ خپل گمان دَ وجے نه نه دَ پاره دَ ذلیل کولو او سورۃ طٰهٰ کښں ذکر شویدی چه سر او گیره دواړه وو لیکن په هغے کښں تصریح نیشته په نیولو دَ گیرے باندے صرف لا تأخذ ذکر دے او هغه

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَأَدْخِلْنَا

اوویل (موسیٰ علیه السّلام) اے ربه ! ما بخنه اوکړه ماته او رور ځما ته او داخل کړه موږه

فِي رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿١٥١﴾

په خاص رحمت ستا کښې، او ته یې زیات مهربان دَ مهربانو نه۔

ع ۱۸ / ۸

إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ

یقیناً هغه کسان چه نیولے دے سخے په خدایئ سره ژر دے چه اوبه رسی دوی ته

غَضَبٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي الْحَيَاةِ

غضب دَ طرف دَ رب دَ دوی نه او رسوائی په ژوند

الدُّنْيَا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ ﴿١٥٢﴾

دنیوی کښې او دغسے سزا ورکوو موږ دروغ جوړوونکو ته۔

صریح نه دے۔ ابْنَ أُمَّ هارون علیه السلام دَ موسیٰ علیه السلام څکه رورو موږ او پلار یئے شریک وو لیکن ذکر دَ مور یئے صرف دَ رحم دَ وجے نه کړیدے وَكَادُوا يَقْتُلُونَنِي دا دلیل دے په دے خبره چه هارون علیه السلام دوی ته مسئله دَ توحید ښه په وضاحت سره بیان کړے وه څکه دوی دَ هغه قتل ته تیار شول۔ او دَ هغه بیان په سورة طٰهٰ ۹۰ کښې ذکر دے۔ تُشْمِتْ شماتة خوشحالی ښکاره کول په بد حالئ دَ دشمن باندے دا اشاره ده چه اختلاف دَ مؤحدینو په کورنئ کښې سبب دَ خوشحالئ دَ مشرکینو دے دَ دے وجے نه دا اختلاف حرام دے۔

۱۵۱ دا دُعا دَ دے وجے نه ده که دَ موسیٰ علیه السلام نه په حالت دَ غصه کښې څه قصور شوے وی او دَ هارون علیه السلام نه په باره دَ اصلاح دَ قوم کښې څه کوتاهی شوے وی نو هغه معاف کړے دا مستلزم نه دے چه دوی دے گناه کړے وی۔

۱۵۲ دے ایت کښې زورنه ده هغه بنی اسرائیلو ته چه دَ عبادت دَ سخی نه یئے توبه نه وه کړے لکه سامری او دَ هغه ملگری او هغه اولاد دَ بنی اسرائیلو چه په دے عمل باندے راضی وی۔ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ امام مالکؒ نه

وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ ثُمَّ تَابُوا

او هغه کسان چه عملونه کوي ناکاره بیا توبه او باسي

مِنۢ بَعۡدِهَا وَاٰمَنُوٓا اِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعۡدِهَا

پس د دے (عملونو) نه او ایمان ئې راوړو، یقیناً رب ستا پس د دے توبے نه

لَغَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۱۵۳﴾ وَلَمَّا سَكَتَ عَنۡ مُّوۡسَى

خامخا بخونکے رحم کوونکے دے۔ او هر کله چه په آرام شوه د موسٰی علیه السلام نه

الۡغَضَبُ اَخَذَ الۡاَلۡوَاحَ ۖۚ وَفِىۡ نُسۡخَتِهَا

غصه راواخستے ئې تختے، او په لیکلوشوو د هغے کښې

هُدًى وَّرَحۡمَةٌ لِّلَّذِيۡنَ هُمۡ لِرَبِّهِمۡ يَرۡهَبُوۡنَ ﴿۱۵۴﴾

هدایت وو او رحمت وو هغه خلقو لره چه هغوی خاص د رب خپل نه یره کوی۔

روایت دے چه مفترین نه مراد مبتدعین دی او هر بدعتی د هغه په سر باندے ذلت وی او ابن کثیر نقل کړے دے د حسن بصری نه چه ذلت د بدعت به د دوی په اوږو باندے وی اګرچه په خچر او ترکی اسونو باندے دوی سواره وی او ابو قلابه نه روایت دے چه دا هر بدعتی ته تر قیامته پورے شامل دے او نور هم د اسبابو د غضب او ذلت ته په دوی باندے په سورة بقره ۶۱ او العمران ۱۱۲ کښې ذکر دی۔

۱۵۳ دا ایت ترغیب دے توبے ته پس د شرک نه۔ مِنۢ بَعۡدِهَا کښې اشاره ده قرب د توبے ته یعنی مخکښې د مرګ نه۔ وَاٰمَنُوٓا په دے کښې اشاره ده چه په السیئات کښې کفر او شرک داخل دے او دا رنګ اشاره ده استقامت ته په توبه کولو باندے۔ دویم مِنۢ بَعۡدِهَا کښې ضمیر راجع دے التوبة ته۔

۱۵۴ دا ایت دلیل دے په دے خبره چه موسٰی علیه السلام کوم الواح ایخے وو نو هغه تولے ئې راواخستے نو معلومه شوه چه د هغے نه هیڅ نه وو مات شوی ځکه چه اکثره قاعده دا ده چه معرفه معاد شی معرفه ته نو دویم بعینه اول وی نو کومے تختے ئې چه کیخودلے وے بعینه هغه ئې راواخستلے سکوت، سکون او زوال ته ویلے شی نو صفت د غضب دپاره کیدیشی او سکت په معنی د ترک کلام سره

وَاخْتَارَ مُوسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا

او غوره کړل (او ټاکل) موسٰی (علیه السلام) د قوم خپل نه اویا سړی

لِّمِيْقَاتِنَا ۚ فَلَمَّآ اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ

دپاره د وخت مقرر زمونږ، نو هر کله چه اونیول دوی لره زلزلے اوئیل (موسٰی علیه السلام)

رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَاِيَّايَ ؕ

اے ربه خما که تا غوښتلے نو هلاک کړے به دے وے دوی مخکښِ د دینه او ما لره.

اَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا ۚ اِنْ هِيَ

آیا هلاکوے ته موږ لره په هغې کار چه کړیدے کم عقلو زمونږ نه ، نه دے دا

اِلَّا فِتْنَتُكَ ؕ تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَآءُ وَتَهْدِيْ

مګر امتحان ستا. ګمراه کوے ته په دے سره چالره چه او غواړے او هدایت کوے

مَنْ تَشَآءُ ؕ اَنْتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا

چالره چه او غواړے. ته مدد ګار یې زمونږ نو بخښنه اوکړه موږ لره او رحم اوکړه په موږ

وَاَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ ﴿۱۵۵﴾ وَاكْتُبْ لَنَا

او ته غوره د بخونکو نه یې. او توفیق راکړه موږ له

---

راځی هغه دلته مراد نه دے. یَرْهَبُوْنَ اشاره ده چه رهبت سبب دے د پاره د فائدے اخستلو د کتاب الله نه. نُسْخَتِهَا کښ اشاره ده چه موسٰی علیه السلام لره لیکلے شوے کتاب (تختے) ورکړے شوے وُو.

۱۵۵ د دے ایت نه شپږم مقام دے تر ۱۹۸ پورے په دے کښ ذکر د دویم میقات دے او نزول د عذاب دے او دُعا د موسٰی علیه السلام ده او بیا صفات د آخری نبی دی او ذکر د رسالت د هغه دے بیا تذکیر دے په نعمتونو او په عذابونو سره. د دے زلزلے د راتلو سبب سورة بقره ۵۵ کښ تیر شوے دے تنار په دوی باندے د برے طرف نه راغے زلزله د لاندے نه یا مراد د رجفے نه فیل کیدل د زړونو دی د وجے د تندار نه. قَوْمَهٗ مِنْ دلته پټ دے یا داچه سبعین عطف

فِي هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ
په دے دنیا کښې دَ نیکو کارونو او په اٰخرت کښې (خائسته بدله)
اِنَّا هُدْنَا اِلَيْكَ ۭ قَالَ عَذَابِيْٓ اُصِيْبُ
یقیناً مونږ توبه کړیده تا ته . اوفرمائیل الله تعالیٰ عذاب خما رسووم یئے
بِهٖ مَنْ اَشَاۗءُ ۚ وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ۭ
هغه چا ته چه اوغواړم . او رحمت زما رسیدلے دے هر څه ته .
فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ وَيُؤْتُوْنَ
نو خاخما خاص کووم به دا رحمت هغه چا لره چه ځان ساتی دَ شرک نه او ورکوی
الزَّكٰوةَ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ ۝۱۵۶
زکوٰة او هغه کسانو ته چه هغوی په اٰیاتونو زمونږ ایمان راوړی .

بیان یا بدل دے دَ قومه نه بیا تقدیر دَ من ته حاجت نیشته ـ لِمِيْقَاتِنَا دا میقات دویم دے دَ پاره دَ تعلیم دَ طریقے دَ توبے دَ عبادت دَ سخی نه ـ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ الخ مقصد دا دے چه دَ دے وخت نه مخکښې هم تا دوی دَ هلاکت نه بچ ساتلے دی نو اوس هم دوی بچ کړے دَ هلاکت دا ئمه نه یعنی دوی ژوندی کړے نو دا سفارش دے دَ پاره دَ ژوندی کولو دَ هغوی ـ بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاۗءُ دا اجتهاد دَ موسیٰ علیه السلام وو چه نسبت دَ دے عذاب یئے هغه چا ته اوکړو چه هغوی دَ سخی عبادت کړے وو ـ یا مراد دَ سفهاءُ نه بعض کسان دی دَ دے اویاء سړونه چه هغوی سوال کړے وو دَ لیدلو دَ الله تعالیٰ او نورکسان پرے غلی شول نو عذاب په ټولو راغے ـ اِنْ هِيَ ضمیر دَ هِیَ راجع دے فعل دَ سفهاؤ ته په تاویل دَ فتنه سره ـ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ یعنی ته ټول ګناهونه ښیے او بغیر دَ شرمنده کولو نه مغفرت کوے او دَ دے دُعا نه روستو تقدیر دا دے چه هغوی ژوندی شول لکه په سورة بقره ۵۵ کښې دی .

۱۵۶ مراد دَ حَسَنَةً نه توفیق دَ نیکو اعمالو دے او هغه ژوند دَ دنیا چه صرف کولے شی دَ پاره دَ اٰخرت ـ عَذَابِيْٓ اشاره ده چه نیول په ګناه سره او عفو کول په اختیار دَ الله تعالیٰ کښې دی ـ وَرَحْمَتِيْ یعنی دَ عذاب نه بچ کول رحمت دَ الله تعالیٰ

الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ

دا هغه کسان دي چه تابعداري کوي دَ رسول دَ نبي اُمّي

الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ

هغه چه موندي دوي ذکر دَ هغه ليکلے شوے دَ دوي سره

فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ يَأْمُرُهُم

په تورات او انجيل کښې، حکم کوي دوي ته

بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنكَرِ

په هره نيکۍ او منع کوي دوي لره دَ هرے بدۍ ته

وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ

او حلالوي دوي لره پاک څيزونه (په بيان کولو سره) او حراموي په دوي بانده

الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ

ګنده څيزونه (په بيان کولو) او لرے کوي دَ دوي نه درانه حکمونه دَ دوي

اومراد دَ دے نه رحمتِ عامه دنيويه دے او دا سے په سورة مؤمن کښې دي. وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ بعض مفسرينو وئيلے دي چه دا نازل شو نو ابليس او وئيل زه هم طمع کوم دَ هغه رحمت نو په هغه بانده رد اوکړے شو په دے قول سره چه فَسَأَكْتُبُهَا اه بيا يهود يا نو نصارا دعوی اوکړه دَ دے صفاتو چه دا په موږ کښې شته دے نو الله تعالی نازل کړو وروستے ايت چه په هغے کښې رحمت دَ الله تعالی خاص کړے شو په اخري اُمت پورے دَ وجے دَ صفت دَ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ اه نه. او دا سے په سورة انعام ۱۵۶ ،۱۵۷ کښې هم تير شويدي. يَتَّقُونَ مراد دَ دے نه دَ ټولو اقسامو دَ شرك او كفر او ګناهونو كبيره نه بچ كيدال دي. وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ هر كله چه ادا دَ زكوٰة په بني اسرائيلو بانده ډير ګران وو نو ځکه دَ هغے تخصيص ئے اوكړو ابن كثير وئيلے دي چه مراد دَ دے نه عام دے كه زكوٰة دَ مال وي او كه دَ نفس وي. بِآيَاتِنَا ټول احكام منزله مراد دي چه په تورات كښې وي يا انجيل يا قرآن كښې).

وَالْاَغْلٰلَ الَّتِیْ كَانَتْ عَلَیْهِمْ ؕ فَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا

او سختئ سزاګانے هغه چه وے په دوی باندے ۔ نو هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے

بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ

په دے پیغمبر او ملګرتیا ئے کړیده ددهٔ او مدد ئے کړیدے ددهٔ او تابعداری کړیده د هغه رڼا

الَّذِیْۤ اُنْزِلَ مَعَهٗۤ ۙ اُولٰٓىٕكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۵۷﴾

چه نازل کړے شویده په دهٔ باندے نو دغه کسان خاص دوی کامیاب دی۔

۱۹ع ۹

۱۵۷ هرکله چه یهودو نصاری دعوی اوکړله چه تیر شوی درے صفتونه په مونږ کښې موجود دی نو رحمت په مونږ پورے خاص دے نو دا صفت ئے ذکر کړو چه هغوی تر دینه خارج شی او په دے آیت کښې د آخری نبی چه لس صفات ذکر دی نو د غسے صفات د هغه په تورات او انجیل کښې هم ذکر وو۔ رَسُوْلَ په اعتبار د پیغام راوړلو دے د الله تعالی د طرف نه۔ او نَبِیّ په اعتبار د خبر ورکولو د اُمت ته او په اعتبار د لوئے مرتبے سره۔ او اُمِّیّ صفت د مدحے د هغه دے دا د بل چا د پاره د مدحے صفت نه شی کیدے او په دے صفت کښې معجزه ده او د هغے تفصیلی وجے تفسیر سراج المنیر لیکلے دی او بل قول دا دے چه اُمّی منسوب دے ام القری ته۔ یَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا یعنی نوم او صفات د هغه او دلیل په دے باندے حدیث د مسند احمد دے چه ابن کثیر هغے ته حدیث جیّد وئیلے دے او یهود نصاری اګرچه په تحریف د هغے کښې ډیر کوشش کړے دے لیکن بیا هم داسے عبارات موجود دی چه دلالت کوی په رسالت د نبی آخر الزمان باندے۔ یَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ د عطاء نه نقل دے چه په معروف کښې ترک د شرکیاتو او خائسته اخلاق او صله رحمی سا تل داخل دی او منکر کښې ټول شرکیات او قطع د صله رحمئ داخل ده۔
مَعْرُوْفِ هغه څیز دے چه په کتاب او سنت سره د هغے ښه والے معلوم وی او منکر هر هغه څیز دے چه مخالف وی د دلیل شرعی نه۔ وَیُحِلُّ نسبت د حلال او حرمت نبی صلی الله علیه وسلم ته په طریقه د بیان کولو سره دے نه په طریقه د تشریع سره په دلیل د حدیث د بخاری ص۳۴۶/۲ په باره د نکاح کولو د علی رضی الله عنه کولو د ابوجهل سره او حدیث مسلم ص۲۰۹/۱ کښې په باره د اوګه کښې۔
الطَّیِّبٰتِ مراد د دے نه هغه څیزونه دی چه مشرکینو او یهود او نصاراؤ بغیر

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ

ته ورته اووايه اے خلقو! يقينًا زۀ رسول د الله يم

إِلَيْكُمْ جَمِيعًا ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ

تاسو ټولو ته (راولېږلے شوے يم) چه الله تعالىٰ هغه ذات دے، چه خاص هغه لره بادشاهي د اسمانونو

وَٱلْأَرْضِ ۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ۖ

او د زمکے ده، نشته حقدار د بندګۍ بغير د هغه نه ژوندي کول او مړه کول کوي،

فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ ٱلنَّبِىِّ ٱلْأُمِّىِّ

نو ايمان راوړئ په الله تعالىٰ او په رسول د هغه چه نبي امي دے

ٱلَّذِى يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَكَلِمَٰتِهِۦ وَٱتَّبِعُوهُ

هغه چه ايمان لري په الله تعالىٰ او په احکامو د هغه او تابعداري اوکړئ د هغه

د دليل نه په ځان باندے حرام کړے وُو چه هغے ته تحريم د غيرالله وئيلے شي او خَبَٰٓئِثَ نه مراد خنزير، وينه او ربوا وغيره ده چه يهودو نصاراؤ ځان له حلال کړے دي يا مراد د دے نه عام دے ابن کثير د بعضِ علماؤ نه نقل کړيدي چه هغه څيز چه شرعًا حلال دے نو هغه طيب دے او بدن او دين لره نفع ورکوونکے دے او هغه څيز چه حرام دے شرعًا نو هغه خبيث او ضرر ورکوونکے د دين او د بدن دے. إِصْرَهُمْ وَٱلْأَغْلَٰلَ دے دواړو کښ فرق دا دے إِصْرَ هغه ګناهونو ته وائي چه هغه بغير د توبے نه نه معاف کيږي يا مراد د دينه ګران ګران عملونه دي او أَغْلَٰلَ نه مراد سختے سزاګانے دي په سبب د بدو عملونو د دوی وَعَزَّرُوهُ د دے نه مراد حفاظت د دين د رسول الله دے په رد کولو د مشرکانو او د مبتدعينو سره - وَنَصَرُوهُ د دے نه مراد اشاعت د دين د رسول الله دے په جهاد او په قتال سره - حاصل دا دے چه دعا د موسیٰ عليه السلام چه مخکښ ايت کښ ذکر ده د هغه قوم ته ئے هم فائده ورکړه ليکن خاصه فائده ئے د نبي صلی الله عليه وسلّم امّت ته ورکړه -

لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۱۵۸﴾ وَمِنْ قَوْمِ مُوسَىٰ أُمَّةٌ

دے ډپاره چه هدایت اومومئ . او بعض د قوم د موسیٰ (علیه السلام) نه یوه ډله ده

يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ ﴿۱۵۹﴾

چه بیان کوی د حق (حق ته بلنه کوی) او په دے حق سره فیصلے کوی .

وَقَطَّعْنَاهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا

او تقسیم کړل مونږه دوی دولس خاندانونه مختلفے ډلے .

وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ إِذِ اسْتَسْقَاهُ قَوْمُهُ

او وحی اوکړه مونږ موسیٰ (علیه السلام) ته کله چه اوبه اوغوښتے د هغه نه قوم د هغه

۱۵۸ هرکله چه صفات د نبی صلی الله علیه وسلم ذکر شول نو اوس ذکر کوی دعوتِ عامه د هغه سره د ذکر د مقصد د رسالت نه چه هغه توحید دے او امر دے په ایمان او اتباع د هغه سره د پاره د حصول د هدایت او په دے ایت کښ بیان د عموم د رسالت د اخری پیغمبر دے یهود او نصاراؤ وغیره ټولو انسانانو ته تر قیامته پورے او دا سے په سورة العمران ۲۰ او انعام ۱۹ کښ دی . او الَّذِي لَهُ تر سره بیان د هغے مسئلے د توحید دے چه په هغے سره دا نبی صلی الله علیه وسلم رالیږلے شوے دے اول توحید د ربوبیت دویم توحید د الوهیت دے الْأُمِّيِّ صفت یے د دے وجے ذکر کړو چه دا صفتِ خاصه د اخری نبی دے .
يُؤْمِنُ بِاللَّهِ دا دلیل دے په دے خبره چه پیغمبر هم مکلف دے په احکامو د الله تعالیٰ سره او دا رنګ د دے نبی عقیده هم د خپل دعوت سره موافق ده.
**فائده:** په دے ایت کښ ایمان یے سره د اتباع نه سبب د هدایت ګرځولے دے نو معلومه شوه چه صرف تصدیق د نبی په غیر د اتباع نه فائده نه ورکوی.
۱۵۹ دے ایت کښ اشاره ده چه د بنی اسرائیلو نه داسے خلق شته دے چه د اخری نبی تابعداری دوی په زمانه د موسیٰ علیه السلام کښ وو او دا رنګ په زمانه د نبی اخر الزمان کښ هم بعض کسان وو .

أَنِ اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۚ فَانبَجَسَتْ

چه اووهه پۀ همسا خپلې سره دغه ګټې لره نو را اووتلې

مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ

دَ هغې نه دولس چینې . یقینًا پیژندلو هرے

أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۚ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ

ډلے ګودر خپل . او سورے (سایه) کړه موږ په دوی باندے

الْغَمَامَ وَأَنزَلْنَا عَلَيْهِمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَىٰ ۚ

وریځ او را اولیږل موږ په دوی باندے ترنجبین او مرزان -

كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ ۚ وَمَا ظَلَمُونَا

(اُوئیل موږ) خورئ دَ مزیدار هغې نه چه درکړیدي موږ تاسو ته . او نه وو کړے موږ په دوی ظلم

وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١٦٠﴾

لیکن وو دوی چه په ځانونو خپلو باندے ئې ظلم کوو -

۱۶۰ هرکله چه عموم دَ رسالت دَ اخري نبي او دعوت دَ هغه ذکر شو نو اوس بني اسرائیلو ته تذکیر بالنِعم والنِقم ذکر کوي دَ پاره دَ ترغیب او تخویف تر ۱۶۸ پورے نو په دے ایت کښې تذکیر دے بني اسرائیلو ته په څلورو انعاما تو سره - اول انعام، تقسیمول دَ دوی وو په دولس[۱۲] جماعتونو کښې دَ تنظیم دَ پاره - بني اسرائیل دَ یعقوب علیه السلام دَ دولس ځامنو اولاد وُو او دَ هر یو نه مستقل خاندان او جماعت جوړ شو او دَ هر یو جماعت جدا جدا نقیب وُو نو دا منظم کیدل سرهٔ دَ کثرت نه انعام وُو - دویم انعام اوبهٔ راویستل وو دَ ګټې نه - دریم انعام سورے کول دَ وریځ - څلورم انعام مَن او سلوی - فَانبَجَسَتْ، انبجاس په معنی دَ لږے لږے اوبو راوتلو دے - او انفجار په معنی دَ ډیرو اوبو راوتلو دے - نو اول اوبه لږے لږے راوتے بیا ډیرے شوے او دَ دے انعاما تو ذکر په سورۃ بقرۃ ۶۰ ۵۷ کښې تیر شوے دے - اثْنَتَيْ عَشْرَةَ حال دے او اَسْبَاطًا بدل دے دَ حال نه او اُمَمًا صفت دَ اسباطا دے - فائده: په سورۃ بقرۃ کښې

وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ

او کله چه اُوئیلے شو دوی ته او سیږئ پدے کلی کښی

وَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ وَقُوْلُوْا حِطَّةٌ

او خورئ دَ هغے نه کوم ځائے چه خوښه وی ستاسو او وایئ لفظ دَ حطة

وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ

او ورننوځئ دروازے ته سرخکته کوونکی ، نو اوبه بخو تاسو ته

خَطِيْٓـٰٔتِكُمْ ۭ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٦١﴾

گناهونه ستاسو ۔ خامخا زیات به کړو ثواب دَ خائسته عمل کوونکو ۔

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ قَوْلًا

پس بدل کړه ظالمانو دَ دوی نه ویناً

غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ

(رواخستے ئے) غیر دَ هغے نه کوم چه وئیلے شوے وه دوی ته پس راولیږو مونږ په دوی باندے

مقصد تفصیل دَ انعاماتو وړ نو دَ کمال دَ انعام دَ پاره ئے هلته انفجار ذکر کړو اودلته انبجاس ذکر شو۔

۱۶۱ دے کښی ذکر دَ پنځم انعام دے چه مشتمل دے په څلورو اوامرو باندے دوه انعامات دی او دوه احکام دی تفسیر ئے تیر شوے دے سورة بقره ۵۸ کښی ۔سورة بقره کښی داخلیدال ذکر کړے وو او دلته کښی ئے اوسیدال ذکر کړه ځکه داخلیدال مخکښی وی دَ اوسیدلو نه او ترتیب قرآنی کښی سورة بقره مخکښی ده په دے سورت باندے ۔

رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۶۲﴾

سخت عذاب دَ بره طرف نه. په سبب دَ هغې چه دوی ظلم کوو.

وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ

او تپوس اوکړه دَ دوی نه په باره دَ هغه کلی کښې چه وو هغه

حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ۘ اِذْ يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ

په غاړه دَ دریاب، کله چه دوی تیریدل کول (حد شرعی نه) په ورځ دَ خالی کښې

اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ

کله چه راتلل دوی ته مهیان دَ دوی په ورځ دَ خالی کښې

شُرَّعًا وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُوْنَ ۙ لَا تَاْتِيْهِمْ ۛ

ښکاره، او کله به چه ورځ دَ خالی نه وه په دوی باندې، نه به راتلل دوی ته (مهیان)

كَذٰلِكَ ۛ نَبْلُوْهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۱۶۳﴾

دغسې ازمیښت کوو مونږ په دوی باندې په سبب دَ هغې چه دوی تیریدل دَ حکم دَ الله تعالیٰ نه.

وَاِذْ قَالَتْ اُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُوْنَ

او کوم وخت چه اوئیل یو ډلې دَ دوی نه ولې وعظ کوئ

ع۲۰ ۵ ۱۶

وقف لازم

معانقة

۱۶۲ دا تذکیر دے په اول عذاب سره تفسیر ئے بیان شوے دے په سورة بقره ۵۹ کښې او سبب دَ دے عذاب تبدیل دَ قول شرعی او عمل شرعی دے او په دے ایت او دَ سورة بقره ۵۹ کښې اختلاف دَ عبارت دے په اته طریقو سره چه دَ هغې تفصیل په سورة بقره کښې ذکر دے۔

۱۶۳ دا تذکیر دے په دویم عذاب سره چه سبب ئے حیله کول وو۔ او دا واقعه یهودیانو پټوله دَ وجے دَ شرم نه نو ځکه الله اوفرمائیل وَسْـَٔلْهُمْ او دَ دے کلی نوم ایله وو او دے زمانه کښې هغې ته عقبۀ داؤد وائي۔ دے ایت کښې اشاره ده چه کله الله تعالیٰ امتحان کوی نو حرام شیزونه ډیر کړی او حلال کم کړی۔ دویم په دے کښې اشاره ده چه حیلې کول په احکامو شرعیو کښې

قَوْمَا ۙ اللّٰهُ مُهْلِكُهُمْ اَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا

هغه قوم ته چه الله تعالىٰ يه هلاک كړي هغوى (په دنيا كښ) يا به عذاب وركړي هغوى ته عذاب

شَدِيْدًا ؕ قَالُوْا مَعْذِرَةً اِلٰى رَبِّكُمْ

سخت (په آخرت كښ) - دوى اُووئيل (دا خو) د پاره د عذر پيش كولو رب ستاسو ته

وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۶۴﴾ فَلَمَّا نَسُوْا

او اميد دے چه دوى به بچ شى (د دے گناه نه) - نو هر كله چه هير كړو دوى

مَا ذُكِّرُوْا بِهٖۤ اَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ يَنْهَوْنَ

هغه ذكر (حكم) چه بيان شويو دوى ته، نو بچ كړل مونږ هغه كسان چه منع يې كوله

دے ته عدوان وائي او دا حرام دى - اهلِ علم وائي چه هر هغه حيله چه حكمت شرعيه باطلوى يا په هغې سره رسيدل كيږى حراموته نو هغه ناجائز ده با لاتفاق مثال د هغې په دے زمانه كښ حيله د اسقاطِ مروجه ده چه په دے سره حكمت شرعى ته نقصان رسى ځكه چه خلق په سبب د دے زړه ورشى په پريښودلو د مانځه او د غسے د نورو فرائضو بل دا چه فدا يه شرعيه د مانځه او د روژے دا حق د فقيرانو دے او د دے حيلے په وجه يې مالدار ولره اخستل جائز كوى نو دا حيله حرام ده او بدعت دے او دا سے په سورة بقره ۶۵ كښ تير شويدى وَسْئَلْهُمْ مراد د سوال نه توبيخ او تقرير د گناه د دوى دے او په دے واقعه كښ دليل دے په صدق د نبى صلى الله عليه وسلم چه امى وؤ چه دا واقعه يې نه د چا نه اوريدلے ده او نه يې لوستلے ده او علماؤ د يهود و ته يې وربا ده كړله - حَاضِرَةَ الْبَحْرِ مراد د دے نه بحر قلزم دے او مراد د حاضره نه مجاور (په غاړه) دے ځكه چه حضور نقيض (مقابل) د غيبت دے د دے وجے نه غائب شخص ته حضور او حضرت وئيل موهم شرك دے -

۱۶۴ دا ايت دلالت كوى په دے باندے چه په هغې خلقو كښ درے ډلے شوے يوے ډلے منع كوله د دے حيلے نه او دويمے ډلے منع كول هغوى لره د تبليغ د دے مسئلے نه نو هغه ځكنئ ډلے ورته جواب اوكړو چه په دے بيان كولو كښ دوه فائدے دى يو فائده زمونږ ذمه وارى ادا كول دى چه الله تعالىٰ زمونږ

عَنِ السُّوْٓءِ وَاَخَذْنَا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

دَ بدئ نه او اونیول مونږ ظالمان

بِعَذَابٍۭ بَئِيْسٍۭ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۱۶۵﴾

په عذاب سخت سره په سبب دَ دے چه دوی نافرمانی کوله۔

فَلَمَّا عَتَوْا عَنْ مَّا نُهُوْا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ

پس هر کله چه دوی نافرمانی اوکړه دَ هغے نه چه دوی منع شوی وو دَ هغے نه، نو اُوئیل مونږ دوی ته

كُوْنُوْا قِرَدَةً خَاسِئِيْنَ ﴿۱۶۶﴾ وَاِذْ تَاَذَّنَ

شئ شادوګان (بیزوګان) ذلیل۔ او کله چه اعلان اوکړو

غاړه اَزاده کړی او دویمه فائده اُمید دے چه داخلق پوهه شی اودَ دے ګناه نه به ځان بچ اوساتی۔ اودریمه ډله هغه وه چه داحیله یئے کوله نو په اٰیت ۱۶۳ کښ ذکر دَ حیله ګرو وۀ او په ۱۶۴ کښ ذکر دَ دویمے ډلے (چه منع یئے کوله دَ وعظ کولو نه صراحةً) اودریمه ډله په کښ ضمناً ذکر شویده۔ مَعْذِرَةً دا دلیل دے چه نهی عن المنکر فرض دہ اګرچه اوریدونکی وربانلدے عمل نه کوی او غیر ضروری عن روئة

۱۶۵ دا اٰیت دلالت کوی په دے خبره چه دَ عذاب نه بچ شوے دہ صرف اوله ډله او په دویمه ډله هم سخت عذاب راغلے دے چه دَ هغے عِلم دَ الله تعالیٰ سره دے۔ نو په دے اٰیت کښ مراد دَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا نه هغه دویمه ډله دہ۔ دا قول قرطبی دَ ابن عباس رضی الله عنه نه روایت راوړے دے اګرچه دَ هغه نه دَ دے خلاف روایت هم شته دے۔

۱۶۶ په دے اٰیت کښ عذاب دَ دریمے ډلے ذکر دے اودَ دوی جرم دَ دویمے ډلے نه زیات وو ځکه دَ دوی په باره کښ ئے لفظ دَ عَتَوْا اوفرمائیلو او عذاب دَ دوی دَ هغوی نه سخت وۀ۔ فائده: هر کله چه په حیلے سره مسخ دَ دین راځی دَ دے وجے نه عذاب په مسخ سره ورکړے شو دَ پاره دَ مناسبت۔

رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

رب ستا چه خامخا راليږي به په دوی باندے تر ورځے دَ قيامت پورے

مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ؕ اِنَّ رَبَّكَ

هغه څوک چه رسوی به دوی ته بد عذاب ۰ يقيناً رب ستا

لَسَرِيْعُ الْعِقَابِ ۖۚ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۶۷﴾

خامخا زر عذاب ورکوونکے دے، او يقيناً هغه خامخا بخونکے رحم کوونکے دے.

وَقَطَّعْنٰهُمْ فِى الْاَرْضِ اُمَمًا ۚ مِنْهُمُ

او ټس نس کړل مونږه دوی په زمکه کښ مختلفې ډلے، بعض دَ دوی نه

الصّٰلِحُوْنَ وَمِنْهُمْ دُوْنَ ذٰلِكَ ز

نيکان دی او بعض دَ دوی نه سيوا دی دَ دے نه

وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ

او ازميښت اوکړو مونږ په دوی باندے په خوشحالو او په تکليفونو سره دے دَ پاره چه دوی

يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۶۸﴾ فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

راوګرځی (دَ نافرمانئ نه)۔ پس پيدا شول روستو دَ دوی نه

۱۶۷ دے ايت کښ يره دنيوی ده هغه چالره چه هغوی دين دَ الله تعالیٰ بدلوی په حيلو وغيرو سره چه په دوی باندے به حاکمان مقرر شی چه دوی لړ به ذليل کړی او جزيه به ترينه اخلی لکه چه مقرر شو په دوی باندے يونان والا کله انيين بيا کله انيين بيا نصاری بيا امت دَ محمد صلی الله عليه وسلم او په اخر کښ به عيسیٰ عليه السلام مقرر شی۔

۱۶۸ دے ايت کښ هم يره دنيوی ده چه دَ دے ګناه نه روستو په دوی کښ مختلفې ډلے پيدا شوے او په زمکه کښ مختلف مکانونو کښ تقسيم شول دَ پاره دَ دے چه يو ځائے کيږی نه او اتفاق ئے رانشی نو دا هم عذاب دے او امتحان اوشو په دوی باندے په نعمتونو او په عذابونو سره۔

خَلْفٌ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ يَاْخُذُوْنَ عَرَضَ

ناکاره خلق واړه خستو کتاب په میراث کښې اخلی (حرام) مال

هٰذَا الْاَدْنٰى وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ۚ

دَ دې ذلیل ژوند او وائی دوی خامخا بخنه به کیږی مونږ ته

وَاِنْ يَّاْتِهِمْ عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ ؕ

او که راشي دوی ته حرام مال دغسې نور نو هغه هم اخلی.

اَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ الْكِتٰبِ

ایا نه دې اخستې شوې دَ دوی نه کلک لوظ په کتاب کښې

اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ

چه نه به وائی دَ الله تعالیٰ په باره کښې مگر حقه خبره

وَدَرَسُوْا مَا فِيْهِ ؕ وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ

او لوستلې دي دوی هغه حکمونه چه په دې کتاب کښې دی. او کور روستنې (جنت) غوره دے

لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

هغه کسانو لره چه ځان ساتی دَ شرک نه. ایا نو عقل نه لرئ تاسو ؟

۱۶۹ دَ دے ځائے نه تر اخره پورے دَ دے حصے دریم باب دے په دے کښې دَ یهودیانو یوقول په ځلورو طریقو سره ردکړیدے او بیا ایتونه دی چه تعلق لری دَ سورت دَ درے وارو دعوو سره او هغه اووه زواجردی. او رد دَ شرک دے تفصیلاً او په اخر کښې اداب دَ دعوت الی الله دی. په دے ایت کښې ذکر دَ روستو خلقو دے پس دَ بیان دَ حال دَ مشرانو دَ دوی نه.

خَلْفٌ په سکون دَ لام سره ناکاره نائبانو ته وائی مطلب دا دے چه دَ روستنو ملایانو دَ دین په ذریعه حرام مالونه خوړل او وئیل به ئے چه دا مونږ ته حلال دی ځکه چه مونږه بښلے شوے یو. لکه په دے امت کښې هم بعض پیران او ملایان حرام خوری او دا بهانه کوی چه دا مونږ لره حلال دی زمونږ دَ مرتبے

وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ

او هغه کسان چه عمل کوی په کتاب دَ الله تعالیٰ او پابندی کوی دَ مانځه.

اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ ﴿۱۷۰﴾ وَاِذْ نَتَقْنَا

یقیناً نه بربادوؤ مونږ ثواب دَ داسے اصلاح (نیکئ) کوونکو. او کله چه پورته کړو مونږ

الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَاَنَّهٗ ظُلَّةٌ وَّظَنُّوْٓا

غر دَ دوی دَپاسه گویاکه دا چترئ وه او یقین اوکړو دوی

اَنَّهٗ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۚ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ

چه یقیناً دا راپریوتونکے دے په دوی باندے (راوئیل مونږ) اونیسئ هغه کتاب چه درکړے مونږ تاسو ته

بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۷۱﴾ ع

په کوشش سره او یادوئ هغه چه په دے کتاب کښ دی دے دَپاره چه متقیان شئ.

دَوجے نه اومفسر آلوسی دَ دے په شرح کښ حال دَ بعض پیرانو او صوفیاؤ ذکر کړے دے. غرضٌ په زور دَ راسره ټول سامان دَ دنیا ته وئیلے شی او په سکون دَ راسره سامانونه بغیر دَ روپو اشرفونه. اَلَمْ يُؤْخَذْ دا اول رد دے دَ دوی په قول باندے چه که دوی بښلے شوے وے نو ولے دَ دوی نه دا لوظ اخستلے کیدلو. اِلَّا الْحَقَّ حکم قطعی دَ خپل مغفرت سره دَ کولو دَ گناه نه دا ناحقه خبره ده. دَرَسُوْا اٰه اشاره ده چه دا حال دَ علماؤ دَ کتاب دے. وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ دَ ایت په ابتداء کښ دَ دوی دنیا پرستی ذکر کړه نو په آخر کښ ترغیب الی الاٰخرة ذکر کوی. نکلہ دے ایت کښ دَ نیکانو ذکر دے او دلیل دے په دے خبره چه څوک دَ الله تعالیٰ په کتاب باندے عمل کوی او بیا نوی ئے هم او دَ مانځه پابندی وی نو دا بیاؔن دَ امر مصلح (دعوت کوونکی نیکئ ته) دے او شکاره نښه ده دَ تمسک بالکتاب او هغه اصلاح کوونکی دی اگرچه مخالفین هغوی ته شریان وائی.

ملکلہ دا دویم رد دے دَ هغوی په قول باندے. مطلب دا دے که تاسو بښلے شوی یئ نو ولے ستاسو په مشرانو باندے دَ لوظ اخستلو په وخت کښ غر پورته کړے شوے وؤ او مجبوره شوئ لوظ کولو ته بیا دا ایت صریح دے په دے خبره کښ چه دا غر په دوی باندے په حقیقت کښ پورته کړے شوے وؤ

وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيٓ ءَادَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ

او کله چه واخستو رب ستا د بنیادمو (انسانانو) نه د شاګانو د هغوی نه

ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ

اولاد د هغوی او حال دا چه ګواهان کړیو دوی په ځانونو خپلو باندے

أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا بَلَىٰ ۛ شَهِدْنَآ

چه آیا نه یم رب ستاسو؟ ۔ دوی اُوئیل ولے نه یُے ، ګواهی کوو مونږ۔

أَن تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَٰذَا

(تو دا وعده در یاده کړه مونږه) چه او نه وایئ تاسو په ورځ د قیامت چه یقیناً مونږه د دے (توحید) نه

غَافِلِينَ ﴿١٧٢﴾ أَوْ تَقُولُوٓا إِنَّمَآ أَشْرَكَ

بے خبره وو ، یا او نه وایئ تاسو چه یقیناً شرک کړے وو

او دا سے په سورة بقره ۶۳ ۹۳ کښ ذکر دی.

نَتَقْنَا، نتق په لغت کښ څه څیز لره د ویخ نه راویستل او ویشتل دی دلته مراد پورته کول دی په دلیل د فوق او ظلّه سره - او ظُلَّةٌ هر هغه څیز ته وئیلے شی چه سورے کوی که چت د کوټے وی یا وریځ وی یا چترئ وی.

۱۷۲ دا دریم رد دے د هغوی په قول باندے که تاسو بخلے شوی یئ نو ولے ستاسو نه دا عهد د توحید اخستلے کیدا او بیا ولے یئ په واسطه د پیغمبرانو او د کتابونو سره یاد دولو. دے آیت کښ وعده د عالم ارواح د وخت مراد ده د هغے په باره کښ اګرچه مرفوع صحیح حدیث نیشته لیکن موقوف صحیح حدیث شته او په دے باب کښ موقوف حدیث په شان د حدیث مرفوع قبلیږی حاصل د هغے دا دے چه د آدم علیه السلام د شا نه د هغه ټول اولاد په شکل د نرو میږو کښ راویستلے شو او هغوی نه دا لوظ واخستلے شو او بعض مفسرینو د دے آیت نه مراد کړے دے پیدائش د هر یو په توحید باندے او هغے نه کنا یه کړے شوے ده په لوظ اخستلو سره. په اول تفسیر باندے د بنی آدم نه مراد آدم علیه السلام دے یا دا چه هغه وخت یُے دوی دا سے پیدا کړل لکه چه روستو یُے په سلسلے سره پیدا کړے دی لیکن دا قول د صریح حدیث نه خلاف دے

اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْ بَعْدِهِمْ ۚ
مشرانو زمونږ د دینه مخکښ او وو مونږه اولاد روستو د هغوی نه

اَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۱۷۳﴾
نو ایا هلاکوے ته مونږ په هغه کار چه کړیدے باطل پرستو خلقو۔

وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمْ
او دغسے تفصیلي بیانوو مونږه ایاتونه (د دوی د یاد داشت د پاره) او د دې د پاره چه دوی

يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۷۴﴾ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ
را اوګرځي (حق ته)۔ او بیان کړه په دوی باندے خبر د هغه چا

او په اول قول باندے هم اعتراض دے چه دا د فصیح کلام نه خلاف دے چه د
ادم په ځائے یئے بني ادم ذکر کړے دے نو عزالدین بن عبدالسلام توجیه ذکر
کړیده چه واشهدهم حال دے په تقدیر د قد سره او معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ د اولاد
ادم د شاګانو نه اولاد اخستلے دے تر زمانے (اُمت) د محمد صلی الله علیه وسلم پورے
او حال دا دے چه دوی یئے په ورځ د ذر په ځانونو باندے هم ګواهان کړے وو
نو په دے کښ د ایت په ظاهر او په حدیث موقوف دواړو باندے عمل اوشو
دا غوره قول دے۔

۱۷۳ د ایت حاصل دا دے چه د مشرکانو نه عهد نه وے اخستلے شوے او د رسول
په ذریعه یاداشت نه وے ورکړے شوے چه دوی به دوه بهانے کولے یو غفلت
(ناخبری) او دویم تقلید د مشرانو نو روستو د رالیکلو د رسولانو نه د چا جهل عذر
نه دے او دا رنګ تقلید هم جائز نه دے۔

۱۷۴ دا هم تاکید د ما قبل دے یعني تفصیل د ایاتونو سبب د ازالے د غفلت
او د رجوع دے د تقلید نه۔

اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ

چه ورکړي وو مونږ هغه ته علم د اٰياتونو زمونږ نو اووتلو د هغې نه (په بې عملۍ د هغې سره) نو ورپسې اولګيدلو

الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ﴿۱۷۵﴾

شيطان نو شو دے د ګمراهانو نه.

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ

او که غوښتلے مونږه خامخا پورته کړے به وه مونږه مرتبه د دهٔ په عمل د اٰياتونو سره ليکن دے کوز شو

اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ ۚ فَمَثَلُهٗ

دنيا ته او روان شو په خواهش خپل پسے، نو حال د دهٔ

كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ اِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ

پشان د حال د هغه سپي شو، که حمله کوے ته په هغه باندے نو ژبه را وباسي

۱۷۵ دا اٰخلورم رد دے په قول د هغوی باندے که تاسو بښلے شوي يئ نو بيا څه وجه ده چه ستاسو عالم د وجے د بد عملۍ نه په شان د سپي شو. د ډيرو صحابه کرامو نه دا نقل کړے شوے دے چه دغه عالم بلعام ابن باعوراء ووچه دے ډير لوئے عالم وؤ دولس زره شاګردان د دهٔ په مجلس کښ به وؤ او دعوت يئ کوؤ ايمان ته ليکن د هغه وخت يو بادشاه ورله د مال حرص ورکړو چه د هغې په وجه يئ د موسیٰ عليه السلام خلاف شروع کړو او د تورات نه يئ مخ اوګرځوو او وئيلے شويدي چه په دُنيا کښ اول دهٔ کتاب ليکلے وو په دے مسئله باندے چه د دُنيا د پاره څوک جوړوونکے نيشته يعنی دُنيا قديم ده. په دے اٰيت کښ اشاره ده چه شيطان انسان لره په هغه وخت کښ ګمراه کوي چه هغه د الله تعالیٰ د اٰيتونو نه مخ واړوي. اٰيٰتِنَا مراد د دينه اٰياتونه وحييه دي يعنی په تورات او د هغې نه وړاندے په نور کتابونو الٰهيو باندے عالم وو او د علم د دهٔ د اسم اعظم د پاره صحيح دليل نيشته. فَانْسَلَخَ مِنْهَا. انسلاخ په اصل کښ د ځاروی نه څرمن ويستلو ته وئيلے شي يا مار چه پوستکے اوغورزوی يعنی دهٔ د کتاب الله نه انکار اوکړو او په هغه باندے

أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ۚ ذَٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ
اوکه پریږدې هغه لره نو هم ژبه راوباسي دا مثال دَ هغې قوم دے
الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ۚ فَاقْصُصِ
چه دروغژن کړی ایاتونه زمونږه پس بیان کړه
الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿١٧٦﴾
دا بیان دے دَپاره چه دوی فکر اوکړی -

عمل پرېښودلو. فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ اتباع کنا یه ده دَ لزوم نه یعنی شیطان دَده په گمراه کولو پسے اونښتلو. الْغَاوِينَ گمراهان دَ عقیدے اودَ عمل.
ملاکا لَوْ شِئْنَا اشاره ده چه هدایت په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے. لَرَفَعْنَاهُ بِهَا په عقیده او عمل کولو سره په کتاب الله باندے رفعت، عزت اولو یه مرتبه حاصلیږی. دے ایت کښ اول دَ ده دوه گناهونه ذکر شوے دی یو محبت دَدُنیا سره، أَخْلَدَ کښ میلان اولزوم دواړه داخل دی. بل تابعداری دَخواهش او دا دواړه جرړ دَ ټولو گناهونو دے. دے دَ سپی سره مشابهه کړے شو په لهَث کښ اولهث وائي دے ته چه ژبه یئے راویستلے وی اوخُله خوځوی اوهنګیږی لکه چه دا حالت دَ سپی په هر وخت کښ وی که ته یئے شړے اوکه نه شړے نو دارنګ حال دَ هغه عالم شو چه هغه ته وعظ کیدے شو یا نه شو کیدے خو دَ خپل ذلت نه نه منع کیدلو. إِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ تشبیه دَ مطلق سپی سره نه ده بلکه هغه سپے چه لاهث وی تو ښکاری (معلم سپے) دَ دے نه خارج دے.
كَمَثَلِ الْكَلْبِ په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه دے په شکل دَ سپی لاهث شو یعنی ژبه یئے حقیقت کښ راښهر شوه. دویم قول، دا تشبیه ده په صفت کښ یعنی لهث دلالت کوی په ډیر حرص دَ دنیا اوکَخوراک باندے.
فائده: مفسرینو لیکلے دی چه دا مثال شامل دے علماؤ دَ دے اُمت ته هم چه هغوی په قرآن او په سنت عمل پرېښودلے وی او په کفرشرك بدعاتو خواهشاتو کښ اخته شی دَ دنیا دَ محبت اودَ هغې دَ حصول دَپاره نو هغه دَ دغسے سپی سره مشابهت لری. لکه څنګه چه سپے چاپسے غپیږی خو چه لږ خوراک ورته واچولے شی نو غلے شی. او دارنګ په خپل هم جنسو باندے حمله کوی.

سَآءَ مَثَلًا ۨالْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

بد دے په مثال کښې هغه قوم چه دروغژن کړی

بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۷۷﴾

ایاتونه زموږ او په خپلو ځانونو دوی ظلم کوی۔

مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِیْ ۚ وَمَنْ

هغه څوک چه هدایت اوکړی هغه ته الله تعالیٰ نو هغه لار موندونکے دے، او هغه څوک چه

يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۷۸﴾

بے لارے ئے کړی نو دغه کسان بس دوی تاوان والا دی۔

او داُرنګ خپل قے هم واپس ستې کَ دے وجے نه په حدیث کَ بخاری کښې کَ هغه چا مثال ئے کَ سپی سره ورکړے دے چاله چه بخشش یا خیرات ورکړی اوبیائے تری نه واپس اخلی۔ او داُرنګ دے چه په لارے روان وی نو خرطم په زمکه راکاږی او بوئیول کوی۔ داُرنګ دے کَ بدن نور اجزاء نه بوئیوی ما سیوا کَ دُبر خپل نه۔ او داُرنګ کله چه په کته باندے اُویشتلے شی نو کته پسے منډه کړی اوپه هغے باندے چک اولګوی۔ او داُرنګ مردار ه ورته ډیره خوښه وی په نسبت کَ تازه او حلالے غوښے۔ او داُرنګ په مرداره باندے کَ ځان سره بل سپے هیچرے نه پریږدی۔ او داُرنګ چه متیازے کوی نو خپه اوچته کړی او په پاک بوټی یا کته باندے بول کوی کَ دے کَ پاره چه زه پلیت لشم۔ او دا ټول اوصاف دلالت کوی په ډیر حرص او خساست باندے۔ يَتَفَكَّرُوْنَ علامه طیبی لیکلی دی چه چا کَ دے زمانے په ناکاره ملا یا نو کښې فکر اوکړو نو یقینًا اوبه مومی دوی کَ بلعام نه زیات ناکاره۔ او سمعانی په تفسیر کښې لیکلی دی چه دا ډیر سخت ایت دے په باره کَ علماؤ کښې ځکه ډیر لږ اهل علم به وی چه کَ محبت کَ دنیا او اتباع کَ هوا نه خالی وی۔ یا الله موږ کَ دے خصلتونو نه بچ کړے او څوک چه دا ایت په حق والو باندے تطبیق کوی نو هغه هلاک کړے۔

۱۷۷ دا ایت دلالت کوی په تعمیم او تقبیح کَ دے مثال باندے۔

۱۷۸ دا ایت تعلق لری کَ سورت کَ اولے دعوے سره او داُرنګ په دے ایت کښې

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِّنَ الْجِنِّ

او یقیناً پیدا کړیدی موږ د جهنم دپاره ډیر د پیریانو نه

وَالْإِنسِ ۖ لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ

او انسانانو نه، دوی لره داسے زړونه دی چه نه پوهیږی په هغے سره (په خبرو د الله) او دوی لره

أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ

داسے سترګے دی چه نه وینی په هغے سره (حق لره)، او دوی لره داسے غوږونه دی چه نه اوری

بِهَا ۚ أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ۚ

په هغے سره (حق لره)، دغه کسان په شان د څارووو دی بلکه د هغوی نه زیات دی (په نا پوهئ کښ)

أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ﴿١٧٩﴾ وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ

دغه کسان هم دوی بے پروا دی۔ او خاص الله تعالیٰ لره نومونه (او صفتونه) دی

الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا ۖ وَذَرُوا الَّذِينَ

ښائسته ښائسته نو دُعا غواړئ د هغه نه په وسیله د هغے سره، او پریږدئ هغه کسان

دوه ډلے ذکر دی چه پس د دغے مثال نه دا ډلے معلومیږی او د دے آیت نه زواجر شروع شول دا اول زجر دے۔

ملګا دا آیت تعلق لری د سورت د دویمے دعوے سره او دا رنګ په تیرشوی آیت کښ چه دویمه ډله وه د هغے حال ذکر کوی او دویم زجر دے۔

سوال: سورة الذاريات کښ ئے فرمائیلی دی چه جن او انس مے د عبادت د پاره پیدا کړے دی او دے آیت کښ ذکر دی چه ډیرو د جهنم د پاره پیدا دی؟

جواب (۱) سورة الذاريات کښ غاية تشريعي ذکر ده او په دے آیت کښ غایه تکويني ذکر ده۔

جواب (۲) دا دے چه په آیت کښ لام په لجهنم کښ د پاره د عاقبت دے۔

لَهُمْ قُلُوبٌ الخ اشاره ده چه اسباب د علم د دوی برباد دی دا پشان د آیت د ختم الله علی قلوبهم الخ دے او تشبیه په دے آیت کښ د څارووسره په دے خبره کښ ده چه د هغوی مقصد هم صرف خوراک او څښاک او شهوت چلول دی

يُلْحِدُونَ فِىٓ اَسْمَآئِهٖ ؕ سَيُجْزَوْنَ

چه کږ لېچ کوي په نومونو (او صفتونو) د الله تعالیٰ کښې. ژر دے بدله به ورکړېشي دوي ته

مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸۰﴾ وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ

د هغه عملونو چه دوي به ئے کوي۔ او د هغه چا نه چه پیدا کړي مونږه

دغه مقصد د دے کافرانو هم دے۔ بَلْ هُمْ اَضَلُّ دا د دے وجے نه چه څاروکښې شعور د دے خبرے شته چه د خپلے فائدے او د نقصان په ځايونو پوهيږي دا رنګ خپل مالک پيژنی او د هغه تابعداروی او په دے کسانوکښې دا سے نيشته ۔ نمبر ۱۸۰ دا ايت تعلق لری د سورت د دريمے دعوے سره چه حاجات صرف د يو الله تعالیٰ نه غواړئ او هغه سره په بلنه کښې شريک مه جوړوئ او دا دريم زجر دے او دا سے په قران کښې په څلورو سورتونوکښې دی سورة اسراء نمبر ۱۱۰ طٰهٰ نمبر ۸ حشر ۲۴ او دلته نومونو د الله تعالیٰ ته حسنٰی ځکه وائي چه دا دلالت کوی د هغه په پيژندګلئ او په توحيد او په وجود او په کمال د هغه باندے۔ او د حسنٰی بله وجه دا ده چه دا خاص دی په الله تعالیٰ پورے د دے اطلاق په غير الله نه کيږی سيوا د هغے نه چه الله تعالیٰ مستثنیٰ کړيدی او بله وجه دا ده چه دا نومونه الله تعالیٰ د پاره ځکه دی الله تعالیٰ په دے تسميه کښې هيڅ محتاج نه دے بله وجه دا چه دا اسماء قديم دی حادث نه دی۔ بله دا چه اسماء د الله تعالیٰ توقيفی دی په نقل د قران او حديث باندے بناء دی۔ فَادْعُوْهُ بِهَا دا دليل دے په دے باندے چه په دعاکښې وسيله د الله تعالیٰ نومونه او صفات پيش کول پکار دی لکه څنګه چه د قران او د سنت په ډيرو دعاګانوکښې نومونه او صفات د الله تعالیٰ په طريقه د وسيلے سره ذکر دی او د دے ايت په تفسيرکښې قول د امام ابوحنيفه فقهاؤ نقل کړے دے "چه نه دی مناسب هيڅ لره چه دعا او غواړی د الله تعالیٰ نه مګر په وسيله د نومونو او صفتونو د الله تعالیٰ"۔ دا رنګ د "فادعوا" بله معنٰی دا ده چه ذکرکوئ الله تعالیٰ لره په دغه نومونو سره نو د دے وجے نه ذکر د الله تعالیٰ او دعا د هغه په لفظ د خدائ سره توسل جائز نه دے صرف د معنے په لحاظ سره د اطلاق کولو جواز لری لکه د خالق معنی پيدا کوونکے نو د مالک معنی خدا ده۔ يُلْحِدُوْنَ کوږ والے په نومونو د الله تعالیٰ کښې په يو څو طريقو سره دے

أُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿١٨١﴾

يوه ډله ده چه بيان كوى دَ حق او په هغې فيصلې كوى۔

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ

او هغه كسان چه دروغژن گڼړى ايتونه زموږ پس زر ده چه او به نيسو هغوى لره

مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٨٢﴾ وَاُمْلِىْ لَهُمْ

په اسې طريقه چه دوى به نه پوهيږى۔ او مهلت وركوم دوى ته۔

اِنَّ كَيْدِىْ مَتِيْنٌ ﴿١٨٣﴾ اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا

يقينًا تدبير ځما ډير كلك دى۔ ايا دوى سوچ نه كوى (په قرآن كښ)

مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ؕ اِنْ هُوَ

چه نشته دَ ددى په خيرخواه باندے هيڅ ليونتوب۔ نه دے هغه

يو طريقه شرک كول دى په هغې كښ چه دَ الله تعالىٰ نومونه او صفتونه بل چاله هم منى۔ دويمه طريقه صفت كول دَ الله تعالىٰ دى په داسې صفت سره چه دَ هغه دَ شان سره نه ښائي او نه نقل وى۔ دريمه طريقه انكار كوى دَ هغه دَ بعض نومونو او دَ صفتونو نه۔

۱۸۱ دا ايت دليل دے په دے خبره باندے چه تر قيامت پورے په دے امت كښ داسې كسان به وى چه دعوت به كوى حق طرف ته او مقابله به كوى دَ ملحدينو سره۔ او دا سے مضمون په صحيح حديث كښ هم راغلے دے چه ابن كثير رحمه الله نقل كړے دے۔

۱۸۲ دا ايت تعلق لرى دَ سورت دَ اولے دعوے سره او دا رنګ دا ذكر دَ دويمے ډلے دے په مقابله دَ هغه ډله كښ چه په رومبى ايت كښ ذكر شوه او ځلورم زجر دے۔ استدراج دے ته وائي چه يو انسان ګناه هو نه كوى او توبه نه او باسى (يعنى پخپله ګمراهۍ كښ پوخ شويوى) او سره دَ دے نه الله تعالىٰ هغه له نعمتونه دَ دنيا وركوى او كله نا اشنا كار و نه هم دَ هغه نه ښكاره كوى او بيا هم دے دَ الله تعالىٰ شكر نه كوى۔ لكه دا سے حالت به دَ دجال وى۔

۱۸۳ دا هم دَ استدراج يو قسم دے چه مهلت وركوى او عذاب پرے نه راولى

إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿١٨٤﴾ أَوَلَمْ يَنظُرُوا

مګر يرۀ وركوونكے دے ښكاره - او ايا دوى نه ګورى (په نظر د عبرت)

فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا

په بادشاهئ د اسمانونو او د زمكے كښ او په هغې كښ

خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ وَأَنْ عَسَىٰ

چه پيدا كړى دى الله تعالىٰ هر يو څيز، او په دے خبره كښ

أَن يَكُونَ قَدِ اقْتَرَبَ أَجَلُهُمْ ۖ فَبِأَيِّ

چه يقيناً نيزدے راغلے ده نيټه د دوى، نو په كومه

حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴿١٨٥﴾ مَن يُضْلِلِ

خبره پاتى ده پس د قرآن نه دوى ايمان راوړى. هغه څوك چه بے لارے كړى

او په ايت كښ يره وركول دى د عذاب دنيوى نه او دا سے په سورة العمران ۱۵۱ كښ هم دى۔

۱۸۴ دا پنځم زجر دے منكرينو د رسالت ته چه دوى كه په قران پاك كښ سوچ كړے وے يا د دے نبي په حالاتو او صفاتو كښ فكر كړے وے دوى ته به معلوم شوے وے چه دا رسول رشتينے دے مجنون نه دے۔

۱۸۵ دا شپږم زجر دے منكرينو د توحيد ته چه دوى ولے سوچ نه كوى د اسمانونو او د زمكے په نظام چليدلو كښ او دا رنګ په ټولو مخلوقاتو كښ چه دوى ته توحيد معلوم شى دا رنګ دوى دا سوچ ولے نه كوى چه زمونږ نيټه د مرګ يا د عذاب رانزدے ده نو چه د هغې نه مخكښ مسئله د توحيد اومنى ۔ حَدِيثٍ هغه كلام ته وئيلے شى چه نقل كيږى نو قران هم دا سے دے چه نقل كړے دے جبرائيل د الله تعالىٰ نه او نبي صلى الله عليه وسلم نقل كړيدے د جبرائيل نه دا په معنىٰ د حادث نه دے لكه چه معتزله وائي او دا ايت دليل دے چه روستو د قران نه بل منزل كتاب نيشته او روستو د محمد صلى الله عليه وسلم نه بل رسول نيشته۔

اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ۚ وَيَذَرُهُمْ فِي

هغه لره الله تعالیٰ تو نېښته په لار روانوونکے هغه لره - او پرېږدي دوی لره په

طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۸۶﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ

سرکشۍ دَ دوی کښې سرګردانه (ګمراه) - تپوس کوی دوی ستا نه

عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ۚ قُلْ اِنَّمَا

په باره دَ قیامت کښې چه کله به وی راتلل دَ هغې - ته وړته اووایه یقینًا

عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ

علم دَ هغې دَ رب ځما سره دے ، نه به ښکاره کوی هغې لره په وخت دَ هغې

اِلَّا هُوَ ۚ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

مګر الله تعالیٰ . درنه خبره ده په اسمانونو او په زمکه کښې

لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ۚ يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ

نه به راځی تاسو ته مګر ناساپه - تپوس کوی دوی ستا نه ، چه ګویا که ته

حَفِيٌّ عَنْهَا ۚ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ

تلاش کوونکے دَ هغې یې - ته وړته اووایه یقینًا علم دَ هغې دَ الله تعالیٰ سره دے

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

لیکن ډیر خلق نه پوهیږی -

۱۸۶ دا اُومه زورنه ده منکرینو ته او وجه ده دَ پاره دَ سوچ نه کولو چه مخکښې ایت کښې تیر شو او هغه وجه اضلال او طغیان او عمه (ګمراه ووکیدل) دی -

۱۸۷ دا اتمه زورنه ده په باره دَ انکار دَ قیامت کښې او دا علت دَ سرکشۍ دَ هغوی دے چه مخکښې ایت کښې ذکر شو - يَسْـَٔلُوْنَكَ دا سوال په طریقه دَ استهزاء سره دے او سَاعَةِ قیامت ته وئیلے شی اول دَ دے وجے نه چه ناڅاپه واقع کیږی دویم دَ دے وجے نه چه دَ اعمالو فیصله به کیږی په یو ساعت کښې دریم دَ دے

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِىْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا

ته ووايه څه اختيار نه لرم د ځان دپاره د هيڅ نفعے او نه د ضرر

اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ۚ وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ

مګر هغه چه اوغواړي الله تعالیٰ - او که څه زه پوهيدلے په غيب باندے

لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ ۚ وَمَا مَسَّنِىَ

نو خامخا ډيرے به حاصلے کړے وے ما فائدے ، او نه به رسيدلے ما ته

السُّوْٓءُ ۚ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ

څه تکليف نه يم څه مګر يره ورکوونکے او زيرے ورکوونکے

وجه نه چه سرهٔ د اوګړ والی نه د الله تعالیٰ په نيز پشان د يو ساعت دے۔
عِنْدَ رَبِّىْ يعنی علم د وخت د ساعت، الله تعالیٰ ځان سره خاص کړيدے هيچا ته ئے
دغه علم نه دے ورکړے۔ لِوَقْتِهَآ لام په معنی د فی سره دے۔ بَغْتَةً نه مراد
غفلت دے د خلقو يعنی خلق به په خپلو کارونو کښی مشغول او غافل وی
اګرچه د هغے علامات به راغلے وی۔ په دے ايت کښی تپوس دوه ځله ذکر
دے دواړو کښی فرق دا دے چه اول تپوس په باره د وخت د قيامت کښی دے
او دويم تپوس په باره د حقيقت او تفصيل د قيامت کښی دے۔ ثَقُلَتْ د دے
يو معنیٰ دا ده چه د دے هيبت زيات دے په اسمانونو او په زمکے والو بله
معنیٰ دا ده چه د دے علم پټ دے په اسمانونو والو او په زمکے والو د کوم څيز
چه علم پټ وی نو درونده وی په نفس باندے۔ حَفِىٌّ وټيلے کيږی تلاش کوونکی
ته او دا رنګ عالم ته مراد دا دے چه دوی په تا خيال کوی چه ته عالم ئے په
قيامت باندے نو ځکه ستا نه د هغے تپوس نه کوی۔
سوال: په اول جواب کښی رَبِّىْ او په دويم کښی لفظ د الله دے؟
جواب: اول کښی مسئله د وخت ده او وخت مقرر کول او د هغے قائم کول کار د
ربوبيت دے او په دويم کښی مسئله د تفصيل د احوالو او د اهوالو دے او د هغے
سره مناسب لفظ د الله دے چه اعظم اسم دے۔

لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۸۸﴾ هُوَ الَّذِىۡ خَلَقَكُمۡ

هغه قوم لره چه ایمان لري. خاص الله تعالی هغه ذات دے چه پیدا کړي یئ تاسو

مِّنۡ نَّفۡسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا

د جنس یو نه او پیدا کړیده د دغه جنس نه بی بی د ده

لِيَسۡكُنَ اِلَيۡهَا ۚ فَلَمَّا تَغَشّٰٮهَا حَمَلَتۡ

دے د پاره چه آرام اوکړي هغه ته (سره) - پس هر کله چه پټه یئ کړه هغه لره، نو حمل یئ واخست

حَمۡلًا خَفِيۡفًا فَمَرَّتۡ بِهٖ ۚ فَلَمَّاۤ

حمل سپک نو تله راتله کوی سره د هغه نه، نو هر کله چه

اَثۡقَلَتۡ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنۡ اٰتَيۡتَنَا

درنه شوه، نو دُعا اوکړه دواړو د الله تعالی نه چه رب د دوی دے، که راکړو تا موږ ته

۱۸۸ دا هم ترقی ده په جواب د سوال مخکښې کښې چه زه ځان لره اختیار نه لرم د نفعے او د ضرر نو د قیامت علم به څنګه اولرم. په دے ایت کښې رد د شرک فی التصرف او شرک فی العلم دواړو دے د پیغمبر نه . اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ دے ته استثناء منقطع وائی معنیٰ دا ده چه څه الله تعالیٰ اوغواړی هغه کیږی. اول وجه دا ده چه دا استثناء په سورة جن ۲۲ کښې نیشته او متصله استثناء لازمًا ذکر کیږی بله وجه دا چه مشیئت د الله تعالیٰ د نفعے او ضرر نه غیر دے. فائده: دا ۴۹ په سورة یونس کښې هم شته. سوال: هلته ضَرًّا مخکښې کړیدے او په دے ځائے کښې نَفعًا مخکښې کړے دے؟ - جواب: دلته ذکر د علم دے او علم نفع ده او هلته ذکر د عذاب دے او عذاب ضرر دے. وَلَوۡ كُنۡتُ، لَوۡ په عربئ کښې د پاره د نفی استعمالیږی یعنی زه په غیب نه پوهیږم ځکه ما ته تکلیفونه را رسیدلی دی په خیر حاصلولو کښې. یعنی کلمه د لَوۡ دلالت کوی په نفی د جزئینو سره نو علم غیب او استکثار د نفعے دواړه منفی دی. وَمَا مَسَّنِيَ السُّوۡٓءُ دا جمله حال دے په طریقه د قید سره د پاره د ما قبل یعنی که علم د غیب وے نو ماته تکلیفه ډیر خیر حاصل کړے وے لیکن نبی صلی الله علیه وسلم ډیر تکلیفونه تیر کړے دی.

صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۸۹﴾

روغ موږ ته بچے خامخا شو به موږ د شکرگذارونه -

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ

نو هرکله چه ورکړو دوی ته الله تعالیٰ روغ موږ بچے، نو جوړ کړل دوی الله تعالیٰ لره شریکان

فِيْمَآ اٰتٰىهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۱۹۰﴾

په هغه بچی کښ چه ورکړے دے دوی ته، پس لوئے دے الله تعالیٰ د هغے نه چه دوی ورسره شریکوی -

۱۸۹ دا ایت تعلق لری د سورت د دویم او دریم دعوے سره او په ایت کښ تهمه زورنه ده هغه شخص خاوندانو ته چه هغوی اولاد د الله تعالیٰ نه غواړی او هرکله چه اولاد دے پیدا شي بیا د هغے نسبت د الله تعالیٰ نه سیوا بل چا ته کوی او شرک کوی.

مِنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ دا سے په سورة نحل ۷۲ او روم ۲۱ کښ دی په معنیٰ د جنس سره نو دلته هم په معنیٰ د جنس سره دے او ایت د ابتداء نه د ټولو انسانانو سره تعلق لری او دا قول سمعانی د عکرمه نه نقل کړے دے۔

فائده: بعضو روایاتو کښ ذکر ده چه دا ایت په باره د آدم علیه السلام او حوا کښ دے ابن کثیر په هغے باندے په تفصیل سره رد کړے دے اول دا چه عمر بن ابراهیم ته ابو حاتم ضعیف وئیلے دی دویم دا چه دا د سمرة نه موقوف نقل دے دریم دا چه حسن بصری د دے راوی دے او هغه پخپله وئیلے دی چه دویم ایت کښ مراد اولادِ آدم او حوا دی او راوی چه د خپل روایت نه خلاف کوی نو دا دلیل دے چه د غه حدیث مرفوع ثابت نه دے او ابن کثیر په اخر د بحث کښ او قرطبی او رازی وئیلے دی چه دا واقعه د اسرائیلیاتو نه ده ځکه د دے یقینی تصدیق نشی کیدلے او چا چه وئیلے دی چه دا شرک فی التسمیه دے حقیقی شرک نه دے دا قول باطل دے ځکه چه روستو ایاتو نه ټول د شرک حقیقی په رد کښ دی۔ نو مراد په ایت کښ په اولاد د آدم علیه السلام کښ مشرکان خلق دی او د نفس نه مراد دے ځائے کښ جنس دے۔

۱۹۰ الله تعالیٰ سره شریک جوړول په اولاد کښ په یوشو طریقو سره دی یو دا چه وائي چه دا اولادِ ما لره فلانکی ولی او بزرګ راکړے دے دویم دا چه د هغه نوم عبد النبی یا بنده علی یا پیر بخش وغیره کیږدی۔ بل دا چه هغه اولاد نذر کړی

أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا وَّهُمْ

ایا دوی شریکوی هغه څیزونه چه نشی پیدا کولے هیڅ څیز او دوی

يُخْلَقُونَ ﴿١٩١﴾ وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ

پیدا کړے شوی دی۔ او نه طاقت لری (دا شریکان) دے مشرکانو لره

نَصْرًا وَّلَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٢﴾ وَإِن

د مدد کولو او نه د خپلو ځانونو سره مدد کولے شی۔ او که

تَدْعُوهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ

تاسو بلئ دے شرکاؤ لره لار خودنے ته نو نه شی دررسیدے دوی تاسو ته۔

سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنتُمْ

برابر حال دے ستاسو که بلئ دوی لره او که تاسو

صَامِتُونَ ﴿١٩٣﴾ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ

چُپ یئ۔ یقینًا هغه کسان چه بلئ تاسو هغوی لره (په حاجتونو کښ)

په نوم د غیر الله باندے اودا ټول اقسام د شرک حقیقی دی په دلیل د دے قول سره چه فتعالی الله عما یشرکون۔

١٩١ دے ایت کښ او ورپسے ایت کښ رد د شرک فی الخالقیت دے یعنی مخلوق د خالق سره لشی شریک کیدلے لکه سورة نحل ١٧ کښ هم دی۔

١٩٢ په دے کښ رد دے په شرک فی الاستعانت باندے۔ وَلَا أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ یعنی د خپل ځان نه هیڅ ضرر، مصیبت لشی دفع کولے په دے معبودانو باندے مرضونه تکالیف راځی مرګ پرے راځی خو دوی یئے د ځان نه نشی دفع کولے که څوک د دوی قبرونه ماتوی (یا د دوی قبرونه نړوی) یا تربته غلافونه او جنډے لرے کوی او سوزوی نو دوی یئے مدافعت نشی کولے او دا سے وصف والا معبود نشی کیدلے۔

١٩٣ په دے ایت کښ او ورپسے ایت کښ رد د شرک فی الدعاء دے۔ هُمْ ضمیر راجع دے معبود من دون الله ته۔ إِلَى الْهُدَىٰ مراد د دے نه طلب د هدایت او د خیر دے لکه چه د الله تعالی نه طلب د خیر او د هدایت کیدے شی او هغه

مِن دُونِ اللَّهِ عِبَادٌ أَمْثَالُكُمْ فَادْعُوهُمْ

سیوا دَ الله تعالیٰ نه دا بندګان دی ستاسو پشان پس اوبلئ دوی

فَلْيَسْتَجِيبُوا لَكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿۱۹۴﴾

نو بویه دے کړی خه حاجت ستاسو که تاسو رشتینی یئ۔

أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَا أَمْ لَهُمْ

ایا دوی لره خپے شته چه تلے شی، په هغے سره ایا دَ دوی

أَيْدٍ يَبْطِشُونَ بِهَا أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ

لاسونه شته چه نیکول کولے شی په هغے سره، ایا دَ دوی سترګے شته

يُبْصِرُونَ بِهَا أَمْ لَهُمْ آذَانٌ

چه لیدل اوکړی په هغے سره، ایا دَ دوی غوږونه شته

يَسْمَعُونَ بِهَا قُلِ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ

چه اوریدل اوکړی په هغے سره؟ (نیشته)۔ ته اووایه را اوبلئ شریکان ستاسو (د پاره دَ ضرر حما)

اجابت کوی لیکن دا معبودان هیڅ اجابت نشی کولے که بتان وی او که قبرونه وی۔ په دے ایت کښ بل قول دا دے چه هم ضمیر مشرکانو ته راجع دے او مراد ترے ته عنادیان مشرکان دی لیکن دا دَ سیاق دَ کلام نه لرے تفسیر دے عَلَيْكُمْ په دے کښ اشاره ده چه دَ دوی نه په حاجت طلب کولو اونه کولو کښ تاسو ته هیڅ فائده نیشته۔

۱۹۴ دا ایت بنکاره رد دے په هغے کسانو چه دَ بندګانو عبادت کوی که ژوندی وی او که مړه وی او دَ هغوی نه حاجتونه غواړی او دا ۱۹ په سورة کهف ۱۰۲ کښ هم دی نو دارد دے په مشرکین بالعباد باندے خصوصًا۔ اشاره ده چه عبدیت منافی دے دَ معبودیت سره۔ او که مراد دے نه بتان شی نو شربینی او رازی وئیلے دی چه مطلب دا دے چه تاسو دا په شکل دَ انسانانو باندے جوړوئ نو که دوی واقعی ژوندی انسانان شی ستاسو پشان نو هم ستاسو حاجت روائی نشی کولے۔ فَادْعُوهُمْ دا په طریقه دَ زورنے سره دے۔ نو دَ دینه مراد صرف بتان نه دی۔

ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنظِرُونِ ﴿١٩٥﴾ إِنَّ وَلِيِّـۧ اللَّهُ
بیا چل ول اوکړئ ما سره او مهلت مه راکوئ ما ته - یقیناً بچ کوونکے زما الله تعالیٰ دے
الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَابَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى
هغه ذات چه نازل کړیدے کتاب ، او هغه بچ کوی (بچاؤ ورکوی)
الصَّالِحِينَ ﴿١٩٦﴾ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ
نیکانو لره - او هغه کسان چه رامداد شه وایئ تاسو هغوی ته
مِن دُونِهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ
سیوا د الله تعالیٰ نه طاقت نه لری د مدد کولو ستاسو

۱۹۵ دے آیت کښ هم رد دے د شرک فی التصرف او بیان د عجز د دغه معبودانو دے د پاره د تاکید د مخکښ آیت په نفی کولو د څلورو طاقتونو سره چه د دوی په خپو کښ طاقت د رسیدو نیشته او لا سونو کښ یئے طاقت د راټینګولو نیشته او په سترګو کښ یئے طاقت د لیدلو نیشته او په غوږونو کښ یئے طاقت د اوریدلو نیشته بیا ولے دوی ته رامدد شه وایئ- په دے کښ نفی د قید ده فقط ځکه چه د معبودانو د دوی خو دا اندامونه شته د ګله بتان وی نو هم ورله عابدانو جوړکړے دی او که مړه وی نو هم د هغوی اعضاء خوشته دے په دے شرط چه خاورے شوے نه وی نو نفی د مقید دلته مراد ده او هرکله چه مدد کولو د پاره دا څلور قوتونه ضروری دی نو د هغے ذکر یئے اوکړو- قُلِ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ دا جواب دے د سوال د مشرکینو چه هغوی وائی چه دا خبرے مه کوه ګنی دا معبودان به در ته تکره اورسوی نو جواب او شو چه دے ته راویلئ ما ته د ضرر رسولو د پاره او تاسو هم ورسره ملګری شئ او ما لره مهلت مه راکوئ زۀ نه یریږم۔
۱۹۶ دا علت دے د دے خبرے چه موحد د غیر الله نه یره نه کوی او وائی چه بچ کوونکے زما هغه الله تعالیٰ دے چه قرآن یئے په دے مسئله رالیږلے د اشاره ده چه قرآن بیان کوونکے او توحید ته دعوت ورکوونکے د صالحینو نه دے او الله تعالیٰ د موحدینو امداد کوی۔

وَلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ﴿۱۹۷﴾ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ

او نه د خپلو ځانونو سره مداد کولے شي. او که رابلئ تاسو هغوی

اِلَى الْهُدٰى لَا يَسْمَعُوْا ؕ وَتَرٰىهُمْ

څه خير خودلو ته دوی نه اوری. او خيال کوے ته په دوی باندے

يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۹۸﴾

چه ګوری تاته او حال داچه دوی هيڅ نه وينی.

خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَاَعْرِضْ عَنِ

خوئی او کرځوه په معافی کولو او بيان کوه په شرعی طريقه (د توحيد) او مخ اړوه د

الْجٰهِلِيْنَ ﴿۱۹۹﴾ وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ

جاهلانو نه. او که اورسی تاته د طرف د شيطان نه

۱۹۷ دا هم رد د شرک في الدعاء دے چه دا معبودان طاقت د هيڅ مدد کولو نه لری نو ولے دوی ته رامداد شه وايئ دلته لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ اه دليل دے د پاره د رد د شرک في الدعاء او په ۱۹۲ کښ دليل د رد د مطلق شرک يا رد د شرک في التسميه وۇ.

۱۹۸ دا هم رد د شرک في الدعاء دے چه دا معبودان ته ستا سو حال وينی نه ستا سو خبرے اوری نو ولے دوی ته رامدد شه وايئ. اَلْهُدٰى مراد د دينه د خير او فائدے خبره ده. وَتَرٰهُمْ يَنْظُرُوْنَ که ايت د بتانو په باره کښ شی نو هغوی خو بتانو لره سترګے جوړے کړے وے ځکه وائي تَرٰهُمْ او که مراد ترينه مړی شی نو تَرٰهُمْ خطاب دے مشرک ته او رويت په معنیٰ د عقيدے دے يعني عقيده د مشرکانو چه دا مړی مونږه وينی او مونږ ته حاضر او ناظر دی.

۱۹۹ روستو د رد نه په مشرکانو باندے ذکر کوی طريقه د رد کولو د دے ايت نه تر اخره د سورت پورے لس اداب بيانوی د پاره د مبلغ د حق او په دے ايت کښ درے اداب ذکر دی. خُذِ الْعَفْوَ، خُذْ نه مراد په عمل کښ

نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۚ إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٠٠﴾

خه وسوسه، نو پناه غواړه په الله تعالیٰ سره بېشکه هغه هرڅه اوري په هرڅه پوهه دے.

إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَائِفٌ

بېشکه هغه کسان چه بیریږی د الله تعالیٰ نه کله چه اورسیږی دوی ته څه وسوسه

مِّنَ الشَّيْطَانِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴿٢٠١﴾

د شیطان نه نو یاد کړی دوی الله لره پس دغه وخت دوی پوهیدونکی وی.

وَإِخْوَانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الْغَيِّ ثُمَّ

او رونړه د دے شیطانانو راکاږی دوی لره سرکشئ طرفته بیا دوی

راو ستل دی ابن کثیر او ابن جریر و ئیلے دی چه د دے نه مراد معافی کول د مشرکانو دی کله چه هغوی سب او شتم او ظلم کوی نو د مؤمنانو نه عفوکول خوښیږئ طریقه اولیٰ سره داخل دی. الْعُرْفِ په معنی د معروف سره ټولو طاعاتو ته شامل دے یعنی سره د معافئ کولو د ظلم او سختئ نه د معروف بیان کوه او د بیان نه روستو که هغه بیا ضد او جهل کوی نو أَعْرِضْ یعنی د جاهلانو جواب په جهل سره مه ورکوه بلکه په سورة فرقان ۶۳ باندے عمل کوه.

فائده: امام جعفر صادق فرمائیلی دی چه نیشته په قرآن کښ د دے آیت په شان چه راجمع کړے وی ښائسته اخلاق په اختصار سره. او په دے آیت کښ درے اداب دی.

۲۰۰ داخلورم ادب دے کله که مبلغ له غصه راشی د وجے د عمل د جاهلانو نه نو اعوذ بالله دے اووائی او دا ہے په سورة حم سجده ۳۶ کښ هم دی.

سَمِيعٌ کښ اشاره ده چه اعوذ بالله په ژبه سره و ئیلے شی. او عَلِيمٌ کښ اشاره ده چه په زړه کښ په د هغه عقیده او علم لری. شربینی لیکلی دی چه صرف لفظی ذکر فائده نه ورکوی بغیر د معرفتِ قلبیه نه.

۲۰۱ هرکله چه نزغ د شیطان ذکر شو دلته اوس د هغه عموم ذکر کوی او او دوه قسموله د انسانانو ذکر کوی. طَائِفٌ په معنی د غضب او د ارادے د ګناه او ګناه کول او د پیریانو حمله کول دی په دے ټولو معانو سره راځی. تَذَكَّرُوا یاد کړی

لَا يُقْصِرُوْنَ ﴿۲۰۲﴾ وَاِذَا لَمْ تَاْتِهِمْ بِاٰيَةٍ

هیڅ کمے نه کوی. او کله چه راونه وړے ته دوئ ته یو معجزه (چه دوی ئے غواړی)

قَالُوْا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ؕ قُلْ اِنَّمَآ اَتَّبِعُ

دوی وائی ولے دِ ځان ته نه جوړوے دا (معجزه). ته ورته او وایه یقیناً ځه خو تابعداری کوم

مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ مِنْ رَّبِّيْ ۚ هٰذَا بَصَآئِرُ

دِ هغے چه وحی کیدیشی ماته دِ طرف دِ رب ځما نه. دا قرآن دِ پوهے خبرے دی

مِنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ

دِ طرف دِ رب ستاسو نه او هدایت او رحمت دے هغه قوم لره

يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۲۰۳﴾ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ

چه ایمان لری. او کله چه لوستلے کیدیشی قرآن نو غوږ کیدئ هغے ته

وعدا او وعید دِ الله تعالٰی یا یادکړئ استعاذه وئیل. په دے ایت کښ پنځم ادب ذکر دے په لفظ دِ تذکروا سره. او اشاره ده دے ته چه شیطان غلبه نه شی کولے په متقیانو باندے.

۲۰۲ دے ایت کښ ذکر دے چه څوک دِ شیطان تابعداری کوی نو دے دِ هغه رورد ے او دا دویمه ډله ده دِ شیطان ملګری دی غاویان دی په مقابله دِ متقیانو کښ. لَا يُقْصِرُوْنَ ضمیر شیطانانو یا اخوان ته راجع دے یعنی شیطانان په وسوسو کولو کښ او اخوان دِ هغوی په ګناه کولو کښ قصور او کمے نه کوی

۲۰۳ دے ایت کښ ذکر دِ ګمراهئ دِ هغوی دے چه دوی ایتونه او معجزے دِ پیغمبر خود ساخته ګنړی دِ دے وجے نه دِ هغه نه دِ جوړولو طلب کوی بیا په دے ایت کښ شپږم ادب ذکر دے په قل اه سره. هٰذَا بَصَآئِرُ دا تفسیر دِ مایوحٰی اِلَیَّ دِ پاره او اشاره ده که ستاسو غوختلے شوے معجزه را نوړم نو څه حرج نیشته ځکه چه قرآن کافی معجزه ده. بَصَآئِرُ مراد دِ دینه دالے حجتونه او دلیلونه دی چه دِ عقل دِ پاره بصیرت پیدا کوی نو دا تسمیه دِ سبب ده په اسم دِ مسبب سره. فائده اخستونکی دِ قرآن نه درے قسمه دی اول چه

وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٢٠٤﴾ وَاذْكُر

او چُپ شئ دے دَپاره چه په تاسو رحم اوکړے شي - او یاد وه

رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً

رب خپل په زړه خپل کښ په عاجزئ او په یرے سره

مرتبه دَ عین الیقین کښې وی نو دَ هغوی دَ پاره بصائر دے. دویم چه علم الیقین والاوی نو دَ هغوی دَ پاره هدای دے او دریم چه حق الیقین والاوی نو دَ هغوی دَ پاره رحمت دے.

سکتہ دے ایت کښې دوه آداب ذکر دی اووم او اتم په وخت دَ لوستلو دَ قران کښې یعنی قاری له پکار دی چه اوریدو نکو ته دا ادب بیان کړی او صحیح دا ده چه دا ایت عام دے. مونځونو او خطبو ته شامل دے دا رنګ عام اوقاتو کښې چه قران لوستلے کیږی نو دا ادب واجب دے.

فائده: استماع اوریدل دی په قصد او په اراده سره او سماع عام دی که قصد وی او که نه وی او انصات پریښودل دَ نورو مشاغلو ته وائي.

په ایت کښې دوه بحثونه دی. اول بحث په باره دَ نزول او خطاب کَ دے ایت کښې امام رازی په دے کښې ډیر اقوال ذکر کړے دی اول دا چه دا ایت په خپل عموم باندے جاری دے په هر وخت کښې چه یو انسان قراءت دَ قران کوی نو په هر چا باندے دَ هغے اوریدل واجب دی که په مونځ کښې وی یا خطبه کښې یا درس دَ قران وی تر دے پورے چه شامی لیکلی دی "یکره ان یقروا القران جملة واحدة" یعنی ډیر کسان چه یو ځائے دَ قران قراءت په اوچت اواز سره کوی (لکه ختمیان) نو دا مکروهه کار دے. دویم قول دا دے چه دا نازل شویدے په رد دَ خبرو کولو کښې په مانځه کښې دریم قول دا دے چه دا نازل شویدے په باره دَ منع کولو دَ سلامونو نه په یو بل باندے په مانځه کښې څلورم قول دا چه دا نازل شویدے په باره دَ خطبه کښې پنځم قول دا دے چه دا نازل شویدے په باره دَ قراءت خلف الامام کښې او دا اقوال ابن کثیر او ابن جریر هم ذکر کړیدی. او شپږم قول دا دے چه دا خطاب دے کافرانو ته او دَ رحم نه مراد حصول دَ هدایت دے او امام رازی دا قول په دریے وجوه سره غوره کړیدے

اوله وجه ربط دَ اٰیت دَ ما قبل سره دے هغه دا دے چه هرکله قراٰن بصائر او هدایت او رحمت دے او پوره معجزه ده دَ صداق دَ رسول دَ پاره نو کافرانو ته اوئیلے شول چه دَ قراٰن دَ لوستلو په وخت ورته غوږ کیږدئ دَ پاره دَ دے چه دَ دے فصاحت بلاغت او اعجاز تاسو ته معلوم شي نو رحم به در باندے اوشي په هدایت سره.
دویمه وجه دا ده چه دا په رد دَ کافرانو کښ دے چه دَ هغوی حال ئے په سورة حم سجده ۲۶ کښ ذکر کړے وو دَ (لا تسمعوا) په مقابله کښ فاستمعوا او (والغوا) په مقابله کښ وانصتوا دے. او دریمه وجه دا ده چه دَ مؤمنانو په باره کښ اوئیلے شول چه رحمةٌ لقوم یؤمنون نو دا په طریقه دَ یقین سره نو که روستو اٰیت هم خطاب شي مؤمنانو ته نو لعلکم ئے ولے اوئیلو.
سوال: امام احمد وئیلے دی چه په اجماع سره ثابت ده چه دا اٰیت په باره دَ صلوٰة کښ دے؟
جواب: امام زیلعي دَ دے هیڅ سند نه دے ذکر کړے او دارنګ بیهقي په هیڅ کتاب باندے حواله نه ده ورکړے او بله دا چه ابن کثیر په ډیرو سندونو سره نور اقوال (چه مخکښ ذکر شویدی) راوړے دی نو اجماع په یو قول باندے څنګه ثابته شوه. هاں اعتبار عموم دَ لفظ لره وی نه خصوص دَ سبب لره او کله اٰیاتونه نازل شوے دی په باره دَ کافرانو کښ او دَ هغے نه دَ مؤمنانو په باره کښ استدلال کیدے شي لکه اٰیت ان الذین یکتمون الا په باره دَ یهودو کښ دے لیکن شامل دے هغه مسلمانانو علماؤ ته چه بعض حق مسئلے پټوی. او هرچه لفظ دَ نزلت وئیلے شویدے دَ ډیرو اقوالو سره نو هغه په اصطلاح دَ مفسرینو کښ سبب نزول پورے خاص نه دے بلکه هر مصداق دَ اٰیت باندے دَ نزلت اطلاق کیدے شي.
دویم بحث: اٰیا دَ دے اٰیت نه استدلال په منع دَ قراءت خلف الامام سره صحیح دے او که نه؟.
جواب: دا استدلال ضعیف دے په ډیرو وجو سره اوله وجه دا ده چه دَ اٰیت مطلب دا دے چه په امام پسے په اوچت اٰواز سره قراءت مه کوئ ځکه هغه دَ استماع او دَ انصات سره منافي دے او قراءت په پټه سره دَ استماع او دَ انصات سره هیڅ منافات نه لری. او تائید دَ دے دا دے چه صاحب هدایه په باب دَ خطبه دَ جمعې کښ وئیلے دی چه استماع او انصات خطیب ته

وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ

او خکته دَ جهری (راوچتے) وینا نه په صباؤ او

وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ﴿۲۰۵﴾

او بیگائی وخت کښې او مه کیږه دَ غفلت کوونکو نه.

واجب دے لیکن کله چه خطیب اولولی "يا ايها الذين امنوا صلوا عليه وسلموا تسليما"
تو اوریدونکے دِے په پټه درود اووائي. کفایه کښې وئیلے دی چه په ژبه
سره دِ پټ اووائي نو داپټ وئیل په ژبه سره دَ استماع او انصات سره منافی نه
دی که نه دِے فقهاؤ به دَ هغې اجازت نه ورکولے. دویمه وجه دا ده چه مقتدی
قراءت کوی په سکتا تو دَ امام کښې لکه چه امام ترمذی په ذکر دَ مذهب اصحاب
الحدیث کښې وئیلے دی او امام بخاری په جزء القراءة کښې وئیلے دی چه په اوله
سکته کښې دِ قراءت اوکړی. دریمه وجه دا ده چه دا آیت اگرچه سورة فاتحه ته
شامل او عام دے لیکن په احادیثو لا صلوة ----- اه - ولا تجزئ صلوة ----- اه
خداج سره دا خاص کړے شوید ے ابن حاجب په مختصر الاصول کښې وئیلے
دی چه تخصیص دَ قرآن په خبر واحد سره قول دَ ائمه اربعه دے او په احنافو
کښې صرف عیسی ابن ابان اوکړی خلاف کړید ے بله دا چه کوم حدیث
خبر واحد چه اکثر صحابو او سننو په صحیح سند سره ذکر کړے وی نو هغه
ظنی نه وی بلکه قطعی وی چه بالاتفاق تخصیص دَ آیت کولے شی دویمه وجه
او دریمه وجه امام ابوالمظفر سمعانی هم په خپل تفسیر کښې لیکلے دی. نو
دَ دې جوهو دَ وجے نه مولانا عبدالحیٔ اللکهنوی وئیلے دی چه دا آیت دلالت نه
کوی په عدم جواز دَ قراءت په سریه او جهریه موتمو ته کښې احتمال دَ سکته کښې. او په
دے طریقے سره عمل په قرآن او په صحیح احادیثو باندے حاصلیږی او اصل
په دلیلونو کښې اعمال دے نه اهمال. وصیت: هر کله چه په مسئله کښې
استدلالی اختلاف دَ صحابو او دَ ائمو مجتهدینو موجود دے تو په دے کښې
نشد دَ کول او په یو بل پسے مو تحُو نه پریښودل جائز نه دی.

۲۰۵ دے آیت کښې هم دوه اداب ذکر دی نهم او لسم او دَ ذکر دَ رب دوه طریقے
ذکر کړے دی یو فِيْ نَفْسِكَ په زړه کښې ذکر کول بغیر دَ حرکت دَ ربے نه او دا

إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ

| يقينًا هغه كسان | چه نيزدے دی رب ستا ته | لويئ نه كوی |
|---|---|---|

عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ ۩ ﴿۲۰۶﴾

| دَ هغه دَ بندګئ نه | او پاکی وائئ هغه لره . | او خاص هغه ته سجدے کوی . |
|---|---|---|

اخفی ذکر دے اورازی اوالوسی وئیلے دی چه فی نفسك کښی اشاره ده چه عالم به وی په معنی دَ ذکر باندے نوذکر لسانی بغیر دَ علم دَ معنی نه ثواب نه لری او چا چه کلمه طیبه اولوستله او دَ معنی لحاظ نه کوی او جاهل وی دَ هغے دَ معنی نه نو دے دَ الله تعالیٰ په نیز مؤمن نه دے. دویم وَدُوْنَ الْجَهْرِ په ژبه ذکر کول په پټه دَ ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه دا سے وائی چه ځان ته یئے اوروی. دا ایت دلیل دے چه اصل په ذکرونو کښی پټ والے دے خو پورے چه خاص دلیل شرعی نه وی نو اوچت ذکر کول بدعت دے. او دا قول دَ امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په استدلال دَ دے ایت سره دَ فقه حنفی کتابونو لیکلے دے (کبیری. بحرالرائق - فتح القدیر. تبین الحقائق. او روح المعانی).
او په دے ایت کښی ابن جریر یو قول دا ذکر کړے دے چه مراد دَ دینه قراءت خلف الامام دے په پټه سره لیکن په هغه قول باندے ابن کثیر رد کړیدے.
بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ مراد دَ دینه هر وخت دے لیکن تخصیص دَ دوه وختونو دَ ښو وجونه یئے کړے دے اوله وجه دا ده چه وخت دَ غداة وخت دَ بیدارئ دے او وخت دَ اصال وخت دَ راتللو دَ خوب دے نو اشاره ده چه ابتدا کول دَ بیدارئے او دَ خوب په ذکر دَ الله سره پکار ده. دویمه وجه دا ده چه روستو دَ مونځ دَ صبا او دَ مازیګر نه نور نفلی وغیره مونځونه کول مکروه دی نو هغه وخت کښی نور ذکر کول پکار دی. دریمه وجه دا ده چه په دے دوه وختونو کښی ملائک عملونه دَ ورځے او دَ شپے بره ورخیژوی نو په دغه وختونو کښی کثرتِ ذکر پکار دے.
ملا۲ دے ایت کښی مقصد ترغیب دے مبلغ ته په بیان دَ حال دَ مقربینو سره چه دا درے صفات لری یو صفت دَ زړه دے او دویم دَ ژبے دے او دریم دَ اندامونو دے. ختم شو تفسیر دَ سورة اعراف په فضل دَ الله تعالیٰ سره.

---

سورة الانفال مدنيّة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۷۵ رکوعاتها ۱۰

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمان او رحيم دے

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ

تپوس کوی دوی ستا نه په باره د غنيمتونو کښې، ته ورته ووايه (اختيار) د غنيمتونو الله تعالیٰ

بسم الله الرحمٰن الرحيم

سورة الانفال

ربط د دے سورت د مخکښې سورت سره په دوو وجوهو سره دے اول وجه داده چه مخکښې سورت کښې تشجيع وه په بيان د مسئلے سره په ژبه باندے او په دے سورت کښې ترغيب دے قتال د پاره د اشاعت د مسئلے د توحيد دويمه وجه داده چه په مخکنو سورتونو کښې توحيد ثابت شو په دليلونو سره نو په دے سورت کښې امر دے په قتال کولو سره د منکرينو سره.
دعوے د دے سورت دوه دی: اوله داچه په غنيمتونو کښې خپل اختيار مه چلوئ بلکه د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د حکم موافق ئے تقسيموئ په سله او په سلک کښې دويمه دعویٰ امر دے په قتال في سبيل الله سره. خلاصه د سورت: په دے سورت کښې دياړلس علتونه دی د اولے دعوے د پاره او دياړلس قوانين دی د دويمے دعوے د پاره او دياړلس کلمات د توحيد دی او دياړلس اسماء حسنیٰ دی.
تفصيلي خلاصه داده: په دے سورت کښې دوه حصے دی په اوله حصه کښې دوه بابونه دی او دا تر څلويښتم آيت پورے ده. اول باب تر نورلسم آيت پورے دے په دے کښې اوله دعویٰ ده بيا پنځه صفات د مؤمنانو مجاهدينو دی بيا علتونه دی د اولے دعوے او يو قانون دے د قتال د پاره.
فائده: په دے سورت کښې حالات د غزوه بدر دی چه هغه په دويم کال د هجرت د رمضان په مياشت کښې واقع شوے په هغې کښې درے سوه دياړلس صحابه کرام وو او تقريباً زرکسان کافران وو په دے غزا کښې مؤمنانو فتح حاصله کړه او ډير غنيمتونه ئے په لاس کښې راغلل هر کله چه د غنيمتونو په باره کښې د دے نه مخکښې حکم شرعي نه وو نو د دے وجے د دوی

وَالرَّسُوْلِ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ

او رسول لره دے پس یره کوئ د الله تعالیٰ نه او جوړ ساتئ تعلق د مینځ خپل

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ①

او تابعداری کوئ د الله تعالیٰ او د رسول د هغه څکه چه تاسو مؤمنان یئ.

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ

یقینًا مؤمنان هغه کسان دی چه کله یاد کړیشی الله تعالیٰ او ویریږی

قُلُوْبُهُمْ وَاِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ

زړونه د دوی او کله چه لوستلے کیږی په دوی باندے ایتونه د هغه نو زیاتوی

په مینځ کښ اختلاف راغے یو ډله وه چه هغوی جنګ کړے وو هغوی وئیل دا زمونږ حق دے او دویمه ډله چه هغوی د جنګ کوونکو نه روستو ولاړ وو په نیت د امداد کولو هغوی وئیل په دے کښ زمونږه هم حصه ده او دریمه ډله چه هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم حفاظت کولو نو هغوی هم د حصے دعویٰ کوله نو الله تعالیٰ په دے اول ایت کښ اوفرمائیل چه تقسیم د غنیمتونو ستاسو په اختیار کښ نه دے نو د کوړ نئ د اختلاف نه ځان اوساتئ او د الله تعالیٰ او د هغه د رسول د حکم مطابق یئ تقسیموئ. او تفصیل د دے به د سورت په ایت یو څلویښتم کښ راشی.

الْاَنْفَالِ دا جمع د نفل ده او نفل زیاتی ته وائی اشاره ده دے ته چه مقصد د جهاد اِعلاء د کلمة الله ده، غنیمت نه دے دویمه اشاره ده دیته چه په نفل څیز کښ اختلاف جوړول نه دی جائز.

او په دے ایت کښ پنځه اداب دی. لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ یعنی حکم د غنیمت خاص دے په الله تعالیٰ او رسول الله صلی الله علیه وسلم پورے الله تعالیٰ امر کوی او رسول یئ تقسیم کوی په امر د الله تعالیٰ سره او تقسیم د دے بل چا ته نه دے سپارلے شوے. اِنْ كُنْتُمْ اِنْ وئیلے شوے دے د ډیر ترغیب د پاره یا اِنْ په معنی د اذ سره دے.

إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ۝٢ الَّذِينَ

ایمان دَدوی او خاص په خپل رب باندے ځان سپاری دوی، دا هغه کسان دی

يُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ۝٣

چه پابندی کوی دَ مانځه او دَ هغه مال نه چه ورکړی دے مونږ دوی ته خرچ کوی (په لار دَ الله تعالیٰ کښ)

أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُمْ دَرَجَاتٌ

دغه کسان خاص دوی مؤمنان دی په رشتیا (یقینًا)، دوی دپاره ډیرے درجے دی

س۲ س۳ په دے ایتونوکښ ذکر دَ صفاتو دَ مجاهدینو دے چه دَ دے اول مصداق صحابه کرام وو او دا پنځه صفات دی اول درے صفات عبادت قلبی دی او څلورم عبادت بدنی دے او پنځم عبادت مالی دے۔

سوال: په دے ایت کښ فرمائیلی دی چه په وخت دَ ذکر دَ الله تعالیٰ زړونه رپیږی او سورة رعد کښ فرمائیلی دی په ایت س۲۸ کښ چه په ذکر دَ الله سره اطمینان دَ زړه حاصلیږی نو په دے کښ څه تطبیق دے۔؟

اول جواب دا دے چه یریدل دَ زړونو په هغه وخت کښ دی چه ذکر شی عذابونه دَ الله تعالیٰ او اطمینان دَ زړونو په هغے وخت کښ دے چه ذکر شی ثوابونه دَ الله تعالیٰ۔دویم جواب دا دے چه دا یو صفت لازم دَ دے بل سره یعنی کله چه زړه او یریږی دَ الله تعالیٰ نه نو دَ کمال دَ یقین دَ وجے نه اطمینان په زړه کښ پیدا شی او دَ دے وجے نه یئے دا دواړه جمع کړے دی په سورة زمر س۲۳ کښ او هر کله چه مقام دَ جهاد مقام دَ خوف الٰهی دے نو په دے سورت کښ صفت دَ خوف یئے ذکر کړو او سورة رعد کښ مقام دَ دلیلونو او دَ مثالونو دَ توحید دے او هغه مقام دَ اطمینان دے۔زَادَتْهُمْ إِيمَانًا، ابن قیم بدائع الفوائد کښ وئیلی دی چه ایمان دوه قسمه دے یو ایمان مطلق دے چه هغه صرف یقین دَ زړه دے په هغے کښ زیاتوالے یا نقصان راتلل اختلافی مسئله ده صحیح دا ده چه په هغے کښ زیادت او نقصان راځی۔او دویم ایمان مقید دے یقین سره دَ عمل نه، نو په هغے کښ زیاتے کمے راتلل په سبب دَ زیاتوالی دَ عمل او دَ نقصان دَ عمل اتفاقی خبره ده لیکن څوک دَ هغے نه په زیادت سره

عِنۡدَ رَبِّهِمۡ وَمَغۡفِرَةٌ وَّرِزۡقٌ كَرِيۡمٌ ۝٤ كَمَآ

په نيز د رب د دوی او بخنه ده او رزق عزتمند دے. څکه چه

اَخۡرَجَكَ رَبُّكَ مِنۡۢ بَيۡتِكَ بِالۡحَقِّ وَاِنَّ فَرِيۡقًا

وويستلے يئ ته رب ستا د كور ستانه په حكمت سره، او يقيناً يوه دله

مِّنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ لَكٰرِهُوۡنَ ۝٥ يُجَادِلُوۡنَكَ

د ايمان والو نه خامخا خفه وو (طبعًا). بحث كوو دوی تا سره

فِى الۡحَقِّ بَعۡدَ مَا تَبَيَّنَ كَاَنَّمَا يُسَاقُوۡنَ

په بارۀ د جنگ کښی پس د ښکاره شو (فرض کيدل د ښځ) گوياکے بو تللے کيدل دوی

تعبير کوی او څوک په پوخ والی سره تعبير کوی او دا ښه په سورة توبه ﷺ کښی هم دی - يَتَوَكَّلُوۡنَ، په توکل کښی رجا (اميد ساتل) او ښاهی طلب کول او حاجات غوښتل او رغبت کول ټول داخل دی چه دا خاص دی په الله تعالیٰ پورے (ابن کثير) - او دا درے واړه صفتونه قلبی دی او روستو دوه صفتونه عملی ظاهری دی. ظاهر دا ده چه په دے ايت کښی دويم قسم ايمان مراد دے ـ حق مؤمن ديته وائي چه ظاهر او باطن په ايمان کښی برابر وی او ديته کمال ايمان وائي او په دے ايت کښی زيرے دے د پاره د مجاهدينو په ښځه طريقو سره.

ـ د لفظ د کَمَا په تعلق کښی د مفسرينو ډير اقوال دی ليکن غوره قول پکښی دا دے چه دا (ک) د پاره د علت دے دا بحرِ محيط کښی ذکر دی او دا متعلق دے د جملے الانفال لِلّٰهِ والرسول سره يعنی دا اول علت دے د اولے دعوے د پاره حاصل د ښځ دا دے چه په ورځ د بدر د قتال د پاره راوتل ستاسو د طبيعت نه خلاف وو ليکن الله تعالیٰ را اويستئ او غنيمتونه يئ درکړل نو په ښځ کښی دے اختلاف کوئ او په دے ايت کښی مراد د کراهت نه کراهتِ طبعی غير اختياری دے دا قول د مبرد دے تقدير د عبارت دا دے قل الانفال لِلّٰهِ والرسول وان کرهوا کما کانوا يکرهون الخروج. يا کاف په معنی د واو سره دے بِالۡحَقِّ په معنی د حکمت يا په معنی جهاد سره دے (مدارک او کبير).

إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴿٦﴾ وَإِذْ يَعِدُكُمُ

مرګ ته او دوی ورته کتل - اوکوم وخت چه وعده اوکړه تاسو سره

اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ

الله تعالیٰ دَ یو دَ دواړو ډلو نه چه دا به ستاسو دَپاره وی او تاسو غوښته

أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ وَيُرِيدُ

چه دا بے وسلے ډله دے ستاسو دَپاره شی او غوښته

اللَّهُ أَن يُحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَيَقْطَعَ

الله تعالیٰ چه ښکاره کړی حق لره په وعدو خپلو سره او پریکړی

دَابِرَ الْكَافِرِينَ ﴿٧﴾ لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ

جرړے دَ کافرانو دے دَپاره چه غالب کړی حق لره او ختم کړی

ملا دَ جدال نه مراد بحث کول دی جګړه نه ده اوهغه صرف دا قول
وو کدوی چه دوی وئیل رسول الله ته که تا مخکښ مونږ لره خبر دَ قتال
راکړے وے نو مونږ به ځان پوره تیار کړے وے - تَبَيَّنَ یعنی دوی
ته واضح ده چه الله تعالیٰ دَ خپل نبی مدد کوی او دا رنګ نبی چه څه
وائی نو په وحی سره وائی - كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ، دا مثال دَ کراهت دے نو دَ
کارهون سره متعلق دے او دا دلیل دے چه دا کراهت طبعی وو یا متعلق
دے دَ يُجَادِلُونَكَ سره او په عبارت کښ تقدیر دے يجادلونک كانهم
يساقون اه -
ک دا دویم علت دے دَ اولے دعوے دَپاره حاصل ئے دا دے چه الله تعالیٰ
دوی ته په خوب کښ ښودلے وو چه دَ کافرانو په یوه ډله باندے مونږه
غلبه حاصله کړے ده - لیکن دوی دا غوښتله چه هغه ډله " قافِله
دَ ابوسفیان دِ وی " لیکن الله تعالیٰ هغه ډله لښکر دَ ابوجهل اوګرځوو
او مؤمنانو لره ئے په هغے غلبه ورکړه نو فرمائی " چه تاسو په غنیمت کښ
ولے اختلاف کوئے " أَنَّهَا لَكُمْ یعنی دَ دوی مالونه تاسو ته حاصلیږی
او تاسو به ورباندے غالب یئے - الشَّوْكَةِ اسلحه او قوت ته وئیلے شی

الْبَاطِلَ وَلَوْكَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٨﴾ اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ

| باطل لره | اګر چه بد ګڼي مجرمان خلق - | کوم وخت چه فریاد کوۀ |
|---|---|---|

شوکت په لغت کښې ازغي ته وئيلے شي. ذَاتِ الشَّوْكَةِ نه مراد لښکر د ابوجهل وو او دَ غَيْرَ نه مراد قافله د ابوسفيان وه. وَيُرِيْدُ اللّٰهُ، دا په معنی کښې علت دے دَ پټ عبارت دَ پاره يعنی اَرَادَ اللّٰهُ ذَاتَ الشَّوْكَةِ لَكُمْ لِاَنَّه يُرِيْدُ اه. يُحِقَّ الْحَقَّ مراد دَ دے نه ښکاره کول او ټينګول دَ دين حق دی. بِكَلِمٰتِهٖ، ايا تونه په باره دَ قتال کښې يا وعدے دَ نصرت دَ اللّٰه تعالٰى. دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ، اشاره ده چه ابوجهل او هغه کافران کسان چه په بدر کښې قتل کړے شوے وو دا جړے او بيخ وو دَ کفر نو دَ هغوی په قتل سره دَ کفر جړے پريکړے شوے.

فائده: دَ غزوه بدر په وخت کښې يو قافله دَ ابوسفيان وه چه دَ تجارت دَ پاره شام ته تلے وه او واپس راتلل دَ مدينے منورے په څوا کښې په ساحل دَ سمندر باندے او هغوی سره سامان دَ تجارت وو او سامان دَ جنګ ورسره نه وو نو دوی ته عير وئيلے شي او دويمه ډله لښکر دَ ابوجهل وو چه پوره تياری يئے کړے وه دَ پاره دَ جنګ، او مقام دَ بدر ته دَ جنګ دَ پاره راورسيدل او دوی سره اسلحے دَ جنګ ډيرے وے او دوی ته نفير وئيلے شي.

ف دا ايت تعلق لری دَ دے لفظ سره چه وَيَقْطَعَ يعنی جړے دَ کافرانو دَ دے قائدے دَ پاره پريکوی چه حق غالب شي او باطل مغلوب شي.

سوال: يحق الحق اه کښې تکرار ولے شوے دے ؟

جواب: دا تکرار نه دے بلکه علت دے دَ پاره فرضيت دَ قتال دَ مشرکين (ابوجهل وغيره) سره او دويم علت دے په قطع دَ جړو دَ مشرکينو سره او اول يحق کښې اظهار مراد دے او په دويم کښې ټينګ ول مراد دی او اول حق سره جهاد دَ بدر مراد دے او په دويم حق سره ټول دين حق مراد دے.

رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ

تاسو رب خپل ته پس قبوله یې کړه دُعا ستاسو چه زهٔ امداد کوم تاسو سره په زر (۱۰۰۰)

مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ ۝٩ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ

ملائیکو سره چه راځي په یو بل پسے۔ او نه دے ګرځولے الله تعالیٰ (دا ملائیک رالیږل)

اِلَّا بُشْرٰى وَلِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ وَمَا النَّصْرُ

مګر زیرے او دے د پاره چه کلک شي په دے سره زړونه ستاسو او نه دهٔ غلبه

اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝١٠ ع

مګر د طرف د الله تعالیٰ نه دهٔ، یقیناً الله تعالیٰ زور اور دے حکمت والا دے۔

ف دا دریم علت دے د پاره د اولے دعوے حاصل دا دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم قبلے ته مخ کړو او لاس یې اوږده کړل او دُعا یې غوښتله په هغې کښې دا الفاظ دی اَللّٰهُمَّ اَنْجِزْلِيْ مَا وَعَدْتَّنِيْ، اَللّٰهُمَّ آتِنِيْ مَا وَعَدْتَّنِيْ اَللّٰهُمَّ اِنْ تُهْلِكْ هٰذِهِ الْعِصَابَةَ مِنْ اَهْلِ الْاِسْلَامِ لَا تُعْبَدَ فِي الْاَرْضِ، نو دا دُعا الله تعالیٰ قبوله کړه او یو زر (۱۰۰۰) ملائیک یې رالیږل او په هغې سره غنیمت حاصل شو نو په هغې غنیمت کښې اختلاف مه کوئ۔ اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ، د غوث نه اخستلے شویدے او غوث فریاد او طلب د مدد ته وئیلے شي او دا آیت ښکاره دلیل دے چه استغاثه په رب پورے خاص ده۔ مُمِدُّكُمْ مدد کښې معنی د نصرت او د زیادت دواړه ماخوذ ده۔ مُرْدِفِيْنَ، جماعتونه د ملائیکو په یو بل پسے راتلل او په دا سے راتللو سره ډیر رعب پریوځي په دشمنانو باندے۔ دا طریقه د راتللو د ملائیکو وه په بدر کښې او په سورة آل عمران ۱۲۴ کښې د هغوی نازلیدل ذکر دی اشاره ده چه آسمانی ملائیک وو او په سورة العمران ۱۲۵ کښې د هغوی فوجی علامات ذکر وو په مسوّمین سره۔

ف۱ یعنی ظاهری امداد کښې دوه فائدے دی یو د زړه اطمینان بل آثار د خوشحالئ په مخ باندے په دے کښې جواب د سوال دے یعنی که څوک ګمان اوکړي چه مدد د ملائیکو په قدرت کښې د نو جواب او شو

إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ

کوم وخت چه پټ کړي تاسو الله تعالیٰ په پرکالي سره دَ امن دَپاره دَ طرف دَ هغه نه او را او وروي ئې

عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ

په تاسو باندې دَ طرف دَ آسمان نه اوبه دې دَپاره چه پاک کړي تاسو په هغې سره

وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ

او لرې کړي ستاسو نه پلیتي (وسوسه) دَ شیطان او چه کلکوالي راولي

عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ﴿١١﴾ إِذْ يُوحِي

په زړونو ستاسو او کلک کړي په سبب دَ دې سره قدمونه ستاسو. کوم وخت چه وحی کوله

وَمَا النَّصْرُ دَ نصر دوه معنې دی اول لا ندے دَ اسبابونه دا دَ مخلوق صفت دے لکه سورة العمران ۵۲ او په دے سورت ۷۲ کښ دویم پورته دَ اسبابونه دے هغه خاص دے په الله تعالیٰ پورے او هغه په معنی دَ غلبے سره دے په دے آیت کښ مراد دے دا ۲۶ ایت په سورة العمران ۱۲۶ کښ ذکر دے فرق ئې په درے طریقو سره دے اول په هغې کښ لکم ذکر دے او دلته نیشته ځکه هلته ئې سبب دَ غم ذکر کړو چه دَ کافرانو په کثرة سره را تلل دی نو دَ بشارت ئې په لکم سره تخصیص اوکړو دَ پاره دَ تاکید۔ دویم فرق هلته بِهٖ دَ قلوبکم نه روستو ذکر کړے دے او دلته مخکښ ځکه چه دلته دَ اول امداد ذکر دے (چه زر ملائیک دی) او دا سبب اول دے نو په بِهٖ سره ئې اول سببیت ذکر کړو۔ دریم فرق هلته اِلَّا مِنْ عِنْدَ اللّٰهِ الْعَزِیْزِ الْحَکِیْمِ او دلته اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰه ذکر کړو او بیا ئې اوفرمائیل اِنَّ اللّٰهَ ځکه چه دلته استغاثه ذکر ده نو دَ ډیر تاکید دَ وجې نه دواړه جملې جدا جدا راوړے او دویمه جمله ئې موکد کړه په اِنَّ سره۔ او هرکله چه په هغه سورت کښ اِنَّ نه وو ذکر کړے نو دَ تاکید دَ پاره العزیز الحکیم ئې معرفه ذکر کړل۔

۱۱ دا ځلورم علت دے او دَ نصرتِ الهیه نورے طریقے دی نعاس او باران دَ نعاس یوه فائده او دَ باران څلور فائدے ئې ذکر کړے دی۔

رَبُّكَ إِلَى الْمَلَٰٓئِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ

رب ستا ملائیکو ته چه زهٔ ستاسو سره یم نو ټینګ کړئ هغه کسان

اٰمَنُوا ۚ سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا

چه ایمان ئې راوړے دے، خامخا اچوم زهٔ په زړونو د کافرانو کښې

الرُّعْبَ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا

یره (هیبت) نو وهئ بره د سټونو نه او وهئ

حاصل دِعلنیت دادے چه په میدان د بدر کښې په صحابه کرامو دکموالی د وجې نه خوف راغے او بل دا چه شیطان وسوسے واچولے چه تاسو سره اوبه نیشته اوپه شکوکښې یئ نو تاسو به جنګ څنګه اوکړئ نو الله تعالیٰ یو پرکالی راوسته په دوی په هغے سره یٔ ترینه خوف لرے کړو او باران ئې اوورولو په هغے سره پاکوالے حاصلیدالو او د شیطان وسوسے لاړے. النُّعَاسَ، لږ خوب چه د هغے اثر د سر په درونددوالی سره معلومیږي اَمَنَةً هغے ته وئیلے شی چه سبب د خوف موجود وی لیکن خوف زائله شی اودا معجزه اوکرامت وی. او امن هغے ته وائي چه سبب د خوف هم زائله شی دلته خو مقابله کښې کافران تیار ولاړ دی جنګ موجود دے لیکن خوف زائله شو نو ځکه اَمَنَةً ئې ذکر کړو دا سے په سورۃ العمران ۱۵۴ کښې هم ذکر دی هلته ئې یو طائیفه ذکر کړے ده ځکه چه جنګ احد کښې منافقان وو خو په هغوی باندے نعاس رانغے او په غزوه بدر کښې منافقان نیشته نو دلته ئې ټولو ته خطاب اوکړو. لِيُطَهِّرَكُمْ، په اودس کولو او غسل کولو سره. رِجْزَ الشَّيْطَانِ بے اودسی او جنابت یا هغه وسوسے چه شیطان اچولے په زړونو د مؤمنانو کښې چه تاسو سره اوبه نیشته نو معلومه شوه چه تاسو په حق باندے نه یئ.

لِيَرْبِطَ، ربط القلب هم صفت د اولیاء الله دے ربط او اطمینان کښې فرق دے د اطمینان سره سبب ذکر وی او د ربط سره سبب ذکر نه وی او ربط عبارت دے د پوخوالی د زړه نه په عقیدهٔ او په دعوت او په جهاد کښې بغیر د څه خوف نه. وَلِيَرْبِطَ په دیکښې لام ذکر کړو اشاره ده چه د دے تعلق د نعاس او باران دواړو سره دے. يُثَبِّتَ بِهِ ه ضمیر ربط قلب ته راجع دے یا او بو د باران ته.

مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴿١٢﴾ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ

دَ دوی نه هر بند دَ گوتو. دا پدے وجه چه دوی خلاف کرے دے دَ الله تعالیٰ

وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَاقِقِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

او دَ رسول دَ هغه نه او چاچه خلاف اوکړو دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه نه

فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿١٣﴾ ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ

نو یقیناً الله تعالیٰ سخت عذاب ورکوونکے دے هغه له. دا عذاب ستاسو پس اوڅکئ دا ئې په دُنیا کښې

۱۲ دا پنځم علت دے دَ اولے دعوے، حاصل ئې دا دے چه الله تعالیٰ ملائیکو لره په جنګ کولو کښې تاسو سره شریک کړل او دَ هغې دَ وجے نه غنیمت حاصل شو نو په هغې کښې اختلاف مه کوئ. فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، یو تثبیت قولي وو مطلب ئې دا دے چه زیرے ورکړئ مؤمنانو لره په مدد دَ الله تعالیٰ- دویم تثبیت ئې عملي وو چه ملائیک حاضر شوی وو دَ پاره دَ قتال په شکل دَ سړو کښې مؤمنانو بعض دَ هغې نه اولیدل او دَ بعضو ئې اوازونه اوریدل لیکن دوی نه پیژندل مخکښې دَ اصبار دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه- دریم تثبیت دے په طریقه دَ الهام سره په زړونو دَ مؤمنانو کښې. اَنِّيْ مَعَكُمْ، معیت دَ نصرت دے معلومه شوه چه ملائیک هم دَ الله تعالیٰ نصرت ته محتاج دی او بیو احتمال دا دے چه دلته قولوا پټ دے یعنی اووایئ مؤمنانو ته دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه چه انی معکم. سَاُلْقِيْ، دا تفسیر دَ معکم دے یا نتیجه دَ فَثَبِّتُوْا ده. رُعْبَ، زړه دَ یرے نه ډکیدل په امید دَ مصیبت سره. فَوْقَ الْاَعْنَاقِ مراد دَ دے نه دَ سر روستنئ حصه ده یا ټول سر دے. بَنَانٍ، دا ئې ځکه خاص کړه په وهلو سره ځکه چه په دے باندے جنګ کیدے شي.

۱۳ دے ایت کښې سبب ذکر دے دَ پاره دَ وژلو دَ کافرانو چه هغه شقاق دے. شقاق په اصل کښې دے ته وائي چه دوه ټکړے جوړ شي او یو دَ بل په مقابله کښې وی. علماؤ لیکلي دی چه هر مشرک او مبتدع مُشَاق دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دے ځکه چه دَ هغوی په خلاف کښې ئې دین جوړ کړے دے کتاب الاعتصام ص. دا ایت سورة حشر

وَاَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۴﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ

(او پوهه شئ) چه يقينًا کافرانو لره عذاب د اور دے. اے

اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا زَحْفًا

ايمان والو کله چه مخامخ شئ تاسو د کافرانو سره په وخت د جنګ کولو کښې

فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ ﴿۱۵﴾ وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ

پس مه ګرځوئ هغوی ته شا ګانې. او چا چه اوګرځوله دوی ته په دغه

يَوْمَئِذٍ دُبُرَهٗٓ اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا

ورځ کښې شا خپله مګر که هڅه کوونکی وی د پاره د جنګ يا يو ځائے کيدونکی وی

۱۳ کښې هم دے دا ايت په باره د حوامو کافرانو کښې دے او د هغوی شقاق خفيف دے د دے وجے نه دلته ئے په يشاقق کښې ادغام اونکړو او سورة حشر کښې حال د يهوديانو دے چه د هغوی شقاق چه ډير شديد دے د دے وجے نه ئے په ادغام (شد) سره ذکر کړے دے.

۱۴ دا خطاب کافرانو ته دے او په دے کښې اشاره ده قتل او قيد او ذلت د کافرانو په باره کښې.

فَذُوْقُوْهُ، دا په طريقه د استهزاء سره ئے ذکر کړے دے ځکه چه ذوق په خوږو شيزونو کښې ذکر کيږی وَاَنَّ نه مخکښې لفظ "واعلموا" پټ دے.

۱۵ دا اول قانون دے مجاهدينو لره چه د ميدان جنګ نه تيښته اونکړئ او دا تيښته کول ګناه کبيره دے.

لفظ د اَدْبَارَ، د کار په قباحت باندے دلالت کوی.

زَحْفًا، په اصل کښې خرپوسے کولو د بچی ته وئيلے شی يعنی لښکر د ډيروالی د وجے نه په دمه دمه ځی. او دا رنګ زحف نزدے کيدلو ته وئيلے شی يعنی په وخت د جنګ کښې چه يو بل ته نزدے شئ.

إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ

دَ بل ډلې سره نو یقیناً اخته شو دے په غضب دَ الله تعالیٰ او ځائے دَ ورتلو دَدهٔ

جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٦﴾ فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ

جهنم دے ، او بد دے ځائے دَ ګرځیدو (ذا جهنم). پس نه دی وژلی تاسو هغوی لره

وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ

لیکن الله تعالیٰ وژلی دی هغوی لره او نه دی رسولی تا کاڼی سترګو دَ کافرانو کله چه تا ګذار

وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ

لیکن الله تعالیٰ او رسول سترګو دَ هغوی ته (او دا کار ئے اوکړو) دَ پاره دَ دے چه ورکړی مؤمنانو ته دَ خپل طرفه

بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾ ذَٰلِكُمْ

انعام خائسته یقیناً الله تعالیٰ هر څه اوري په هر څه پوهه دے. دا کار خو دا سے اوشو

ــه پــه دے کښې ذکر دَ عذاب اخروی دے په تیښته کولو باندے لیکن دوه حالتونه ئے دَ هغے نه مستثنیٰ کړی دی یو هغه او طریقه جوړول دَپاره دَ جنګ چه دُشمن ته شا اوګرځوی او ناسا په واپس شی او حمله پرے اوکړی، دویم دا دے چه دَ خپلے ډلے نه بېرته شوے وی نو ځان هغے یا بلے ډلے ته رسوی دَ پاره دَ امداد حاصلولو. نو په دے دواړو حالتو کښې شا ګرځول شته لیکن په اراده دَ تیښتے کولو سره نه دی۔

ــه دا شپږم علت دے دَ اولے دعوے، حاصل ئے دا دے چه دا کوم مشرکان په بدر کښې قتل کړے شول یا په سترګو دَ هغوی کښې کاڼي اولګیدل دا تاسو نه دی کړی بلکه الله تعالیٰ کړیدی او په هغے سره غنیمت حاصل شوے دے نو په هغے کښې اختلاف مه کوئے. وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ، دا نسبت یا په دے وجه سره دے چه الله تعالیٰ توفیق دَ قتل ورکړے وو مؤمنانو ته سره دَ کموالی دَ اسبابونه. بله وجه دا ده چه قتل کړے شوے وؤ په واسطه دَ ملائیکو ځکه بعضو روایاتونه ثابته ده چه صحابي به لا ګوزار نه وو کړے او مخکښې به سر دَ کافر اوغورځیدا. سوال: دے ایت کښې هم نسبت دَ رمی

وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ ﴿١٨﴾ إِن تَسْتَفْتِحُوا

او (پوهه شئ) یقیناً الله تعالیٰ کمزورے کوی چل ول دَ کافرانو. که تاسو فیصله غوښته

فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ ۖ وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ

پس یقیناً راغله تاسو ته فیصله او که منع شوی (دَ کفر نه) پس دا غوره ده تاسو لره

وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ

او که راؤګرځیدئ (جنګ ته) نو را وبه ګرځو موږ مدد دَ مؤمنانو ته. او چرې نشی لرې کولے ستاسو نه ډله ستاسو

ثوبیږے پیغمبر علیه السلام ته اوهم ترے نفی شوے ده ددې څه وجه ده؟

جواب دادے چه نسبت دَ رمی په اعتبار دَ ظاهر سره دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یوموټے کانړی را واخستل اودَ کافرانو طرف ته یې اوویشتل۔ اونفی دَ رمی په دے وجه سره ده چه هغه کانړی سترګو دَ کافرانو ته رسول دا دَ پیغمبر کار نه وو دا دَ الله تعالیٰ کار وو ځکه چه دا معجزه ده۔

فائده: (۱) کوم فعل چه دَ بنده په اختیار اوکسب سره دے چه هغه رمی ده (کانړی ویشتل دی دَ لاس نه) دَ هغے نسبت یې نبی ته اوکړو په اِذْ رمیت سره اوکوم کار چه دَ بنده دَ کسب او اختیار نه بهر دے نو هغه یې دَ نبی نه نفی کړو او الله تعالیٰ ځان ته نسبت اوکړو۔

فائده: (۲) ابن جریر اوقرطبی وغیره مفسرینو وئیلي دی چه دا دلیل دے په دے خبره باندے چه دَ بنده کانو ټول کارونه الله تعالیٰ پیدا کوی او بنده صرف کسب کوی۔

سوال: په قتل کښې ولے نسبت ظاهری یې مؤمنانو ته اونکړو پشان دَ رمی؟

جواب: قتل نه مراد روح قبض کول دی روستو دَ عمل دَ قاتل نه او دَ روح اخستلو نسبت صرف الله تعالیٰ ته کیدے شی او دَ بنده په کسب سره استعمال دَ آلے دَ قتل دے هغې ته هم قتل وئیلے شی لیکن دلته دا معنی مراد نه ده۔

ﷺ دا خطاب دے مؤمنانو ته ذَٰلِكُمْ کښې اشاره ده بَلَاءً حَسَنًا ته مبتدا محذوف ده یعنی الغرض ذلکم او وَأَنَّ عطف دے په ذلکم باندے یا اعلموا حذف دے۔

شَيْـًٔا وَّلَوْ كَثُرَتْ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٩﴾ ع

څه تکلیف اگر که ډیره وي (او پوهه شئ) یقیناً الله تعالیٰ ملګرے دَ مؤمنانو دے (په مدد کولو سره).

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

اے ایمان والو تابعداري کوئ دَ الله تعالیٰ اود رسول دَ هغه

وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ ﴿٢٠﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا

او مخ مه اړوئ دَ هغه نه او حال دا دے چه اورئ تاسو (قرآن او سنت). او مه کیږئ

سلا دا زجر او تخویف دے او خطاب دے کافرانو ته او په آخر کښې بشارت دَ مؤمنانو ته دَ دے حاصل دا دے چه کافرانو به دُعا غوښتلے وه او دَ هغې بدا اثر الله تعالیٰ په هغوی باندے اوغورځوو او هغوی ئې مغلوب کړل. بیا دے ایت کښې دوه توجیه دی اول دا چه دا خطاب دے کافرانو ته او دا توجیه غوره ده ځکه چه روستو جملے په دے باندے دلالت کوی دویمه توجیه دا ده چه دا خطاب دے مؤمنانو ته مفسرینو لیکلی دی چه ابوجهل او دَ هغه ملګرو بدر ته دَ وتلو نه مخکښې دَ کعبے غلاف اونیوو او دا دُعائې لوستلے وه چه یا الله تعالیٰ په دے دواړو ډلوکښې چه کوم په هدایت باندے وی او کوم ستا په نیز باندے غوره وی نو هغوی سره امداد اوکړے لیکن دا دواړه صفتونه په مؤمنانو کښې وو نو الله تعالیٰ دا دُعا دَ هغوی په باره کښې قبوله کړه۔ وَاَنَّ اللّٰهَ نه مخکښې واعلموا پټ دے او دا بشارت دے مؤمنانو ته په نصرتِ خاصه سره۔

سلا دے ځائے نه دویم باب دے څلویښتم ایت پورے په دے کښې څلور قوانین دَ جهاد ذکر کوی او په مینځ کښې ترغیب دے جهاد ته او دَ پنځم قانون نه روستو آثار دَ تقوی ذکر کوی. وجوداً او عدماً او دوه علتونه ذکر کوی او تخویف دَ ځے دَپاره دَ منکرینو او دویمه دعوی دَ سورت ده. په دے ایت کښې دویم قانون دے مطلب دَ هغې دا دے چه مجاهد باندے لازم دی چه دَ الله تعالیٰ او دَ رسول پورا تابعداری اوکړی۔ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ مفرد ضمیر ئې ځکه ذکر کړو چه طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول یو دے۔ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ، دا قید دے دَ پاره دَ ډیر تاکید یعنی سره دَ علم نه إعراض اونه کړئ۔ او سماع نه مراد اوریدل دَ پوهے او دَ تصدیق کولو دی۔

كَالَّذِيْنَ قَالُوْا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۲۱﴾

پشان دَ هغې کسانو چه وائي او رېښتيا دې مونږ او حال دا چه دوی نه دي اوريدلي (په زړه سره)

اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ

يقيناً بدتر دَ ژوندو سرو نه په نيز دَ الله تعالیٰ کانړۀ دي (دَ حق نه) چاړګان دي

الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۲۲﴾ وَلَوْ عَلِمَ اللّٰهُ فِيْهِمْ

هغه کسان چه نه پوهيږي (په حق باندے). او که معلومه وے الله تعالیٰ ته په دوی کښې

خَيْرًا لَّاَسْمَعَهُمْ ؕ وَلَوْ اَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا

طلب دَ حق خامخا او روله به ئې ورکړے دے دوی ته (په پوهه ولو سره)، او که واوروی الله دوی ته (په داسے حال کښې) خامخا دوی به

ملا دا دريم ايتونه زورنه دۀ منافقينو ته چه هغوی سستي کوی په جهاد کښې او منع کول دی مؤمنانو لره دَ اخلاقو دَ منافقينو نه. دا ايت دليل دے په دے خبره چه څوک په خُلے اقرار کوی چه زۀ تابعداريم او اُمتّي يم ليکن په هغه باندے دَ دے اثر نه ښکاری نو دا قول بے فائدے دے او دا علامت دَ نفاق دے.

لَا يَسْمَعُوْنَ، نفي دَ سماع نه مراد نفي دَ قبوليت او دَ تصديق دۀ.

ملا دا دليل دے دَ مخکښې ايت دَ پاره چه دَ منافقانو په شان مه کيږه ځکه چه دوی بدتر دی او دَ دے ايت نه معلومه شوه چه عنادی کافر او مشرک دَ الله تعالیٰ په نيز دَ ټول مخلوق نه بدتر وی. او دا علت اصلی دے دَ پاره دَ قتال ځکه چه دَ شر والا خيز وژل ضروری دی. او دا ايت عام دے منافقانو او ښکاره کافرانو ته او دا سے په دے سورت ۵۵ او سورة بينه ۶ کښې هم شته. او وجه دَ شريت (بد تركيدالو) دَ دوی دا ده چه دَ نورو ژوندو سرو چه غوږونه او ژبه او دماغ دی نو هغوی ترے خپل مناسب فائده اخلی او دا کافران او منافقان فائده نه اخلی نو دَ هغوی نه بدتر شول لکه چه په سورة اعراف ۱۷۹ او فرقان ۴۴ کښې دی.

وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۲۳﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

او دوی همیشه مخ اړونکی دی. اے ایمان والو

اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ

حکم قبلوئ دَ الله تعالیٰ او دَ رسول کله چه رااوبلی تاسو

لِمَا يُحْيِيْكُمْ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ

هغه خیز ته چه ژوندی کوی تاسو او پوهه شئ یقینًا الله تعالیٰ پرده اچوی

بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ وَاَنَّهٗٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۴﴾

په مینځ دَ سړی او دَ زړه دَ هغه کښ او یقینًا خاص هغه ته به جمع کړے شئ تاسو.

۲۳ علم (پوهه) دَ الله تعالیٰ په باره دَ خیر کښ کنایه ده دَ وجود دَ هغے نه ځکه چه موجود وی نو الله تعالیٰ به پرے خامخا عالم وی او حاصل دَ دے جملے دا دے که چرے موجود وے په دوی کښ طلب دَ حق نو اوروے به ئے وے دوی ته په افهام او تصدیق سره ځکه چه په انابت سره هدایت حاصلیږی او دا جمله جواب دَ سوال دے یعنی که سوال اوشی چه سرهٔ دَ دے نه چه دوی صم بکم دی لیکن الله تعالیٰ دِ دے دوی ته اسماع دَ پوهے ورکړی؟ جواب دا دے چه په دوی کښ انابت نیشته دے نو ځکه فهم ورته نه حاصلیږی. وَلَوْ اَسْمَعَهُمْ، دا جواب دَ بل سوال دے سوال دا دے چه دوی اګرچه په حال دَ ضد او عناد کښ دی لیکن الله تعالیٰ دِ ورته واوروی کنه؟ نو جواب اوشو که په دا سے حال (عناد) کښ ورته واوروی نو دوی مخ ګرځوی. معلومه شوه چه په دے ایت کښ دواړه جملے مستقلے دی صغریٰ او کبریٰ نه دی.

۲۴ دا دریم قانون دَ جهاد دے او حاصل دَ دے دا دے چه دَ جهاد فرض کیدلو په وخت کښ نفل کارونه پریږدئ او په جهاد کښ ضرور شریک شئ- او دلیل په دے باندے حدیث دَ بخاری دے دَ ابو سعید ابن المعلیٰ نه چه هغه وئیلی دی " ما په مسجد کښ نفل موونځ کوو پس ما ته رسول الله اواز راکړو لیکن ما اجابت اونکړو چه دَ مانځه نه فارغ شوم نو ورته راغلم

وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا

او ځان بچ کړئ (په جهاد کولو سره) د هغه عذاب نه چه نه رسي ظالمانو ته

مِنكُمْ خَاصَّةً ۖ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ

ستاسو نه يوازې او پوهه شئ يقيناً الله تعالیٰ سخت

الْعِقَابِ ﴿٢٥﴾ وَاذْكُرُوا إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ

عذاب ورکوونکے دے. او ياد کړئ هغه وخت کله چه تاسو لږ وئ

او عذاب ورته پيش کړو چه ما مونځ کوؤ نو هغه او فرمائيل چه تا دا آيت نه دے اوريدلے نو د دے نه معلومه شوه چه د فرض کار د پاره هر نفل پريښودل ضروري وي.

لِمَا يُحْيِيكُمْ، مراد د دے نه جهاد دے ځکه چه هغه سبب د ژوند دے. دارنګ د دے نه مراد قرآن کريم او سنت دی ځکه چه هغه هم سبب د حيات دے او شربيني وئيلي دی چه مراد د دينه علوم دينيه دی او صحيح عقيده او ايمان او جهاد دے.

يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ، د پردے اچولو نه مراد مُهر لګول دی لکه بل ځائے چه دے نه ختم او طبع وئيلي شويدہ دا قول د مجاهد دے او ضحاك وئيلي دی چه دا عام دے يعني د مؤمن او د معصيت او د کافر او د طاعت په مينځ کښ حائل او مانع پيدا کوی.

٢٥ دا عطف دے په استجيبوا باندے او ترغيب دے جهاد ته که په ژبے سره وی او که په نوره سره وی او ويره د عذاب ده په وخت د پريښودلو د دے جهاد کښ.

حاصل دا دے چه کله په يو ځائے کښ ګناه کيږی او نور خلق د هغے منع اونکړی نو عذاب د دنيا به په ټولو باندے عام راځی. "بے ادب تنها نه خود راداشت بد، بلکه آتش در همه آفاق زد" او په دے باره کښ ډير احاديث ابن کثير ذکر کړے دی او د آيت د مفهوم نه معلومه ده چه جهاد او دعوت کحق د دفع کولو د عذاب دنيوی سبب دے.

مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِى الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ

کمزوری کړے شوے وئے په زمکه کښې یریدے تاسو چه اوبه تختوی تاسو لره

النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ وَرَزَقَكُمْ

خلق پس ځائے درکړو تاسو لره او کلک ئے کړئ په مدد خپل سره او روزی ئے درکړه تاسو لره

مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۲۶﴾ يٰٓاَيُّهَا

د پاک څیزونو نه دے د پاره چه تاسو شکر اوکړئ . اے

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ

ایمان والو خیانت مه کوئ د الله تعالیٰ او د رسول سره

وَتَخُوْنُوْٓا اَمٰنٰتِكُمْ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۷﴾

او خیانت مه کوئ په امانتونو خپلو کښې او تاسو پوهیږئ .

۲۶ دے ایت کښې هم ترغیب دے جهاد ته او اشاره ده چه دا درے انعامات د الله تعالیٰ د طرف نه په چا باندے وی نو په هغه باندے جهاد فرض دے اول انعام خپل ځائے لکه مدینه منوره، دویم امداد د الله تعالیٰ په ظاهری اسبابو سره لکه په بدر کښې، دریم رزق حلال لکه غنیمتونه حلالول. دے ایت کښې د شکر نه مراد جهاد کول دی. يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ، تخطف دے ته وئیلے شی چه تېپوس چرګوړې او تختوی یا باز خپل ښکار لره په پنجو کښې اوچت کړی.

۲۷ دا څلورم قانون د جهاد دے چه مجاهدانه هیڅ قسم خیانت کول نه دی جائز. خیانت د الله تعالیٰ سره د هغه په حکمونو کښې زیاتے یا کمے کول دی او خیانت د رسول سره د هغه د سنت خلاف کول دی او د اماناتو نه مراد هغه ټول حقونه دی چه بنده په هغے سره مکلف دے. خیانت مخالفت کول د حق دی په بے لوزئ کولو سره په پټه باندے او دا علامت د نفاق دے دا سے امام راغب په مفردات کښې ذکر کړے دی.

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۙ

او پوهه شئ چه يقيناً مالونه ستاسو او اولاد ستاسو امتحان دے

وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۲۸﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

او يقيناً د الله تعالیٰ سره ثواب لوئے دے۔ اے ايمان

اٰمَنُوْٓا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا

والو كه يره كوئ تاسو د الله تعالیٰ نه نو دريه كړی تاسو لره فتح

وَّيُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ

او لرے به كړی ستاسو نه بدیٔ ستاسو او بخنه به اوكړی تاسو ته او الله تعالیٰ

ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۹﴾ وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ

خاوند د فضل لوئے دے۔ او كله چه جرګه كوله ستا په باره كښ

۲۸ داعلت د مخكښ اٰيت دے چه خيانت كيږی نو د وجے د مال يا د اولاد نه كيږی او هغه فِتنه دی نو مراد د فتنے نه امتحان دے يا سبب د پريوتلو دے په ګناهونو كښ او په خيانت كولو كښ او داصفت په مالونو كښ ډير دے په نسبت د اولاد سره او دا په سورة منافقون ۹ او سورة تغابن ۱۵ كښ ذكر دی كړے دے وجے نه ذكر د مالونو مخكښ كړے دے۔

۲۹ دا پنځم قانون د پاره د جهاد دے، مطلب يے دا دے چه مجاهد بانديے لازم ده تقویٰ كول او هغه سبب دے د بچ كيدلو د خيانت او فتنے نه او مراد د تقویٰ نه تابعداری د اوامرو د الله تعالیٰ ده او بچ كيدل د نواهی د الله تعالیٰ نه او پريښودل د شبهاتو دی او په دے اٰيت كښ د دے تقویٰ يے درے فائدے بيان كړے دی يو فتح حاصليدل دويم بدیٔ او سختیٔ لرے كيدل دريم ګناهونه معاف كيدل او د دے نه روستو اٰثار بيانوی د تقویٰ د شته والی او د نيشت والی۔ فُرْقَانًا كښ ډير اقوال دی او دا لفظ هغه ټولو ته شامل دے يعنی نور په زړه كښ چه په هغے سره د حق او باطل تميز كيدے شی، فتح، غلبه، نجات د دارينو، وتل د شبهاتو، شهرت د نوم د مؤمنانو، سَيِّاٰت ګناهونه صغيرة او ناكاره صفتونه او سختیٔ

كَفَرُوْا لِيُثْبِتُوْكَ اَوْ يَقْتُلُوْكَ اَوْ يُخْرِجُوْكَ ؕ

کافرانو چه قید کړی تا لره یا او وژنی تا لره یا اوباسی تا لره ،

وَيَمْكُرُوْنَ وَيَمْكُرُ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿۳۰﴾

او چل ول کوو دوی او پټ تدبیر اوکړو الله تعالیٰ (دَ بچ کولو ستا) او الله تعالیٰ ډیر ښه دَ تدبیر کوونکے

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا قَالُوْا قَدْ سَمِعْنَا

او کله چه اولوستے شی په دوی باندے ایتونه زمونږه دوی وائی یقیناً واوریدو مونږ

لَوْ نَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

که غواړو مونږ نو خامخا اوبه وایو پشان دَ دے نه دے دا (قرآن) مگر

درے معانو ته شامل دے۔

او يَغْفِرْ لَكُمْ گناهونه کبیره ته شامل دے۔

ذُوالْفَضْلِ اشاره ده چه دا درے فائدے په فضل دَ الله تعالیٰ سره دی صرف په تقویٰ سره نه دی۔

۳۰ دا بیان دَ اثر دَ وجود دَ تقویٰ دے چه په چاکښې تقویٰ وی نو الله تعالیٰ يې دَ مکر دَ دُشمنانو نه بچ ساتی ۔ بل دا ایت اووم علت دے دَ اولے دعوے دَ پاره۔

مطلب دَ ایت دا دے چه مشرکانو په دارالندوة کښې جرګه اوکړه چا وئیل چه دا پیغمبر قید کوؤ او چا وئیل چه دے دَ کلی نه اوباسو خو اخری اتفاق په دے راغے چه دَ هرے قبیلے نه درے یو یو مشر راشی او په یو ځائے باندے دِے په دهٔ حمله اوکړی او قتل به يې کړی لیکن الله تعالیٰ دوی رانداه کړه او رسول الله صلی الله علیه وسلم سرهٔ دَ ابوبکر رضی الله تعالیٰ عنه دَ شپے دَ دوی نه اووتلو او هجرت يې اوکړو او دا سبب شو دَ پاره دَ غزوه بدر او دَ غنیمتونو دَ حاصلولو دَ پاره نو تاسو دَ هغے په باره کښې اختلاف مه کوئ ۔

وَيَمْكُرُ اللّٰهُ ، مکر پټ تدبیر کولو ته وئیلے شی که دَ خیر اوکه دَ شر وی او دَ الله تعالیٰ په صفت کښې په تدبیر دَ خیر کښې استعمالیږی دا سے په سورة العمران ۵۴ کښې شته دے نو دا نسبت الله تعالیٰ ته حقیقت دے مجاز نه دے۔

أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣١﴾ وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ

قیصې دي د مخکنو خلقو ۔ او کوم وخت چه دوي اوویل اے الله تعالیٰ که وي.

هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا

دا قرآن حق د طرف ستا نه پس راووروه په مونږ باندې

حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٢﴾

کاڼي د اسمان نه یا راکړه مونږ ته عذاب درد ناک ۔

وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ

او نه وو الله تعالیٰ چه عذاب ئې ورکړې دوئیه او حال دا چه ته په دوي کښې وې

وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴿٣٣﴾

او نه وو الله تعالیٰ عذاب ورکوونکې دوي ته حال دا چه دوي بخنه غواړي.

۳۱ دا زورنه ده منکرینو ته او اثر دے د نیشتوالی د تقوی. تیر شوی ایت کښې مکر عملی د مشرکانو ذکر وؤ او په دے ایت کښې مکر قولی ذکر کوی هغه په مقابله د نبي صلی الله علیه وسلم کښې وو او دا په مقابله د قرآن کښې دے. لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا الخ دا قول د وجے د سخت ضد او عناد نه دے گنې نو اعجاز د قرآن کریم دوی ته واضح شوے وؤ او دوی په یو سورت او په یو خبرے سره هم د قرآن مقابله کولے نشوه. أَسَاطِيرُ جمع د اسطورة ده مکتوبة (لیکلے شوے ته وائي) یا جمع د اسطور ده او هغه جمع د سطر ده (کرښے لیکلے شوے).

۳۲ دا هم زورنه ده منکرینو ته او اثر دے د نیشتوالی د تقوی او اتم علت دے د پاره د اولے دعوے. او دا وینا د دوی بناء ده په عناد باندے او دے د پاره چه نور خلق په شک کښې واچوی. پکار دا وؤ چه دوی وئیلے وے یا الله که دا حق وی نو مونږ ته د دے هدایت اوکړے او دا رنګ د عذاب طلب په سورة معارج ۱ او عنکبوت ۵۳ او په مخکنو قومونو کښې په سورة شعراء ۱۸۷ کښې ذکر دے

۳۳ دے ایت کښې دوه جملے دی په جواب د دوو سوالونو کښې اول سوال

وَمَا لَهُمْ اَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّوْنَ

او څه عذر دے دوی لره چه عذاب به نه ورکوی دوی ته الله تعالیٰ (اوس) او حال دا دے چه دوی منع کوونکی دی

عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوْٓا اَوْلِيَآءَهٗ

د مسجد حرام نه او نه دی دوی اختیارمند د هغے.

اِنْ اَوْلِيَآؤُهٗٓ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ

نه دی اختیارمند د هغے مګر متقیان خلق لیکن ډیر د دوی نه

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۴﴾ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ

نه پوهیږی. او نه دے مونځ د دوی د بیت الله په خوا کښی

دا دے چه هرکله دوی عذاب غوښتو نو ولے په دوی باندے عذاب نه راتلو اودا طلب د دوی په هغه وخت کښی وو چه نبی صلی الله علیه وسلم په مکه کښی وو. جواب اوشو چه پیغمبر په یو قوم کښی موجود وی نو په هغے عذاب نه راځی.

دویم سوال دا دے چه هرکله نبی هجرت اوکړو بیا ولے په دوی باندے زر عذاب نه راتلو بلکه عذاب د دوی غزوهٔ بدر ته روستو کړے شو؟

جواب اوشو چه د وجے د استغفار غوښتلو نه روستو کړے شو او په دے استغفار کښی دوه قوله دی اول دا چه دے مشرکینو به په حالت د طواف کښی ویل غفرانك نو هغه سبب شو د روستو والی د عذاب د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه استغفار اګرچه د کفارو د طرف نه وی خو دفع کیږی په هغے سره بعض شرونه او ضرار (قرطبی) حالانکه چه په هغے سره پوره عذاب نه دفع کیږی. دویم قول دا دے چه مراد د دے نه استغفار د هغے مؤمنانو دے چه هجرت یے نه وو کړے د وجے د کمزورۍ والی نه او هغه په سورة فتح ۲۵ کښی ذکر دی. دا ایت دلیل دے په دے خبره چه امن د عذاب نه، یا په وجود د پیغمبر سره وی یا په استغفار سره. اول سبب د امن خو اوس نیشته لیکن دویم سبب تر قیامته پورے جاری دے او دا روایت دے د ابو موسیٰ اشعری او ابن عباس رضی الله عنهما نه.

۳۵ په دے ایت کښی بیان د سبب د هغے عذاب دے چه نازل شو په مشرکانو

إِلَّا مُكَآءً وَّتَصْدِيَةً ۚ فَذُوقُوا الْعَذَابَ

مګر شپیلی او لاسونه وهل (ټپول) پس اوڅکئ عذاب

بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٣٥﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا

په وجه د دې چه تاسو کفر کوئ . یقیناً هغه کسان چه کفرئے کړیدے

يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ

خرچ کوی مالونه خپل د پاره د دې چه منع کړی خلق د لارې د الله تعالیٰ نه،

پاتے په بیان کښې او ذکر د اثارو د عدم تقوی دے۔
إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ، د دې دوه معنے دی اول دا چه اختیار منه د مسجد صرف مؤمنان خلق دی کافران د هغے نه د منع کولو حق نه لری۔ دویمه معنیٰ دا ده چه دوستان د الله تعالیٰ متقیان وی نه لیونی او مجذوبان لکه دا عقیدۀ د جاهلانو ده او د دې تفصیلی رد په روح المعانی کښې کړے دے او دا رنګ په سورۀ یونس ۶۲ کښې دی خو دلته د تقویٰ اوله مرتبه مراد ده یعنی توحید او ایمان په اوله معنیٰ سره او سورۀ یونس کښې تقویٰ کامله مراد ده۔
وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ، اکثر په معنیٰ د کل دے یا وجه دا ده چه لږ د دوی نه سره د علم نه عنادیان دی۔
۳۵ دا هم زور نه ده منکرینو ته او بیان د اثر د نیشتوالی د تقویٰ دے۔ د دې ایت دوه معنے دی اول دا چه مشرکین قریشو به طواف کوؤ د بیت الله او شپیلی به ئے وهل او لاسونه به ئے ټپول او دا د دوی په ګمان کښې عبادت وو۔ لکه اوس د دې مثال بعض پیران دی چه په وخت د ذکر کښې ګډا کوی او لاس ټپوی، دا ټول د شرع نه خلاف دی دا د عاقلانو کار نه دے دا سے قرطبی ذکر کړے دی۔ دویم تفسیر دا دے چه هغه موځ د دوی د بیت الله په خوا کښې هغه دا سے برباد او عبث دے لکه شپیلی وهل او لاسونه ټپول چه عبث دی دا معنیٰ الوسی او راغب ذکر کړے ده معلومه شوه چه په دوی کښې صلوٰۃ (موځ) وو لیکن د شرک د وجے نه برباد وؤ۔
او مُكَآءً وَّتَصْدِيَةً په طریقه د تشبیه سره دی۔

فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً

پس زر دے چه خرچ به کړی دوی هغے مالونه بیا به شی په دوی باندے ارمان

ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۗ وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ

بیا به کمزورے کړے شی . او هغه کسان چه کافران دی بیا به جهنم ته

يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾ لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ

جمع کړے شی ، دے دپاره چه جدا کړی الله تعالیٰ پلیت لره د پاک نه

وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ

او کیږده به دی پلیتان بعضو لره په بعضو باندے پس دنډ لئ به کړی دوی

جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ

ټولو لره پس واچوی به په جهنم کښ . دغه کسان

ﻫﻼ په دے آیت کښ هم زوړ نه ده منکرینو ته او بیان د اثر د نیشتوالی د تقویٰ دے چه هغه بربادی د عبادتِ مالیه ده روستو د ذکر کولو د بربادئ د عبادتِ بدنیه نه۔

لِيَصُدُّوا ، هر هغه انفاق چه د دین باطل د اشاعت د پاره وی په مقابله د دین حق کښ هغه په دے کښ داخل دے۔

حَسْرَةً ، په سبب د نه حاصلیدلو د مقصد د انفاق۔

ثُمَّ يُغْلَبُونَ ، دا ترقی ده یعنی اول خو به د مقصد نه محروم شی نو بیا به د مؤمنانو مقابله کښ کمزورے شی۔

الَّذِينَ كَفَرُوا ، مراد د دے نه هغه کسان دی چه په کفر باندے پاخه پاتے شی۔

او بیا تخویف اخروی دے په دے دواړو آیتونو کښ۔

هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۳۷﴾ قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا

هم دوی پوره تاوان والا دی. ته اووایه ده هغه کسانو ته چه کافران دی

اِنْ يَّنْتَهُوْا يُغْفَرْ لَهُمْ مَّا قَدْ سَلَفَ

که دوی منع شول (د کفر او شرک نه) او به بخښلے شی دوی ته هغه گناهونه چه تیر شوی دی

وَاِنْ يَّعُوْدُوْا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۸﴾

او که دوی را او گرځیدل جنګ ته نو یقیناً تیره شویده طریقه د مخکنو خلقو.

وَقَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ

او جنګ کوئ د دوی سره تر دے چه پاتے نشی هیڅ شرک او شی

الدِّيْنُ كُلُّهٗ لِلّٰهِ ۚ فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ

دین ټول د الله تعالیٰ، پس که منع شول دوی نو یقیناً الله تعالیٰ

ـ۳۷ دے ایت کښ د منکرینو بد حالی د آخرت په پنځو طریقو سره ذکر شویده لِيَمِيْزَ اللّٰهُ، لام علت دے د یحشرون یا لام د عاقبت دے.
خَبِيْثَ وطَيِّبِ، په اعتبار د عقیدے د شرک سره خبیث دے او په عقیدهٔ د توحید سره پاک دے او دا تمیز په آخرت کښ دے لکه په سورة یٰس ۵۹ او یونس ۲۸ کښ او یا په دنیا کښ دے لکه په سورة آل عمران ۱۷۹ کښ.
ـ۳۸ دا دعوت دے منکرینو ته د پاره د توبے روستو د ذکر د خباثتونو د هغوی نه. دا ایت دلیل دے په دے خبره چه په "ایمان راوړلو سره تمام گناهونه معاف کیږی که حقوق الله وی او که حقوق العباد وی لیکن دا د کافر حربی د پاره" او کافر ذمی ته حقوق العباد نه معاف کیږی. سُنَّتُ الْاَوَّلِيْنَ، مراد کدینه نصرت د الله تعالیٰ دے انبیاؤ او د مؤمنانو سره او عذاب او مغلوبه کول دی د کافرانو او مراد د اولین نه انبیاء او مؤمنان مخکنی دی لکه په سورة اسراء ۷۷ کښ یا مراد د دے نه مخکنی کافران دی لکه سورة فاطر ۴۳ کښ. او په دواړو معانو سره اضافت د سنت اولین اضافت دے مفعول ته او که اضافت وی فاعل ته لکه سورة اسراء ۷۷ او سورة فاطر ۴۳.

بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٣٩﴾ وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا

په هغه عملونو چه دوی يې کوی ليدونکے دے، او که دوی مخ واړو نو پوهه شئ

أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿٤٠﴾

چه يقيناً الله تعالیٰ مولیٰ ستاسو دے، ښه مولیٰ دے او ښه مددګار دے.

۳۹ دا دويمه دعوىٰ دَ سورت ده او دا ايت دليل دے په دے خبره چه قتال به جاری وی تر هغه پورے ترڅو چه شرک په دنيا کښ موجود وی.

وَقَاتِلُوْ عطف دے په معنیٰ دَ مضت سنت الاولين او دَ يعودو دَ لاندے دے فِتْنَةٌ، شرک او مؤمن لره دَ دين نه اړول ليکن دلته اوله معنیٰ مناسب ده او په سورة بقره ۱۹۳ کښ دويمه معنیٰ مناسب ده او ختمول دَ شرک مستلزم دے دَ دے چه ټول عالم کښ به توحيد وی دَ دے وجے نه په دے ايت کښ كُلُّهٗ ذکر کړے دے او په سورة بقره کښ كُلُّهٗ نه دے ذکر کړے او دَ دے معنے دَ وجے نه دلته حَتّٰى په معنیٰ دَ اِلٰى سره دے او په سورة بقره کښ په معنیٰ دَ علت سره دے.

۴۰ مطلب دَ ايت دا دے چه که دوی دَ قتال نه نه منع کيږی نو تاسو ورسره قتال کوئ او الله تعالیٰ به ستاسو امداد کوی ځکه چه هغه ستاسو مولا دے.

مَوْلٰكُمْ، مولا په معنیٰ دَ متولی (سنبالونکے) دے.

نِعْمَ الْمَوْلٰى، الله تعالیٰ چه دَ چا تَوَلّٰى (سنبالښ) کوی نو هغه هيڅ کله نه بربادیږی او چه دَ چا نصرت کوی نو هغه نه کمزورے کيږی او دا مقصد دَ نِعم دے په دواړو ځايونو کښ. دا سے په سورة حج ۷۸ کښ هم دی هلته مقام دَ جهاد وو او هغه په معنیٰ دَ دعوت سره وُو او دلته مقام دَ قتال دے او مقام دَ قتال ډير سخت دے دَ دعوت نه دَ دے وجے نه په دے ايت کښ تاکيد ذکر شو په (فاعلموا ان الله) سره.

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَیْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ

او پوهه شئ یقینًا هغه چه حاصل کړئ تاسو په جنګ سره د کافرانو نه هر څیز چه وی، نو یقینًا الله لره

خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِی الْقُرْبٰی وَالْیَتٰمٰی

پنځمه حصه د هغې ده او رسول لره او خپلوانو (د رسول) لره او یتیمانو

وَالْمَسٰکِیْنِ وَابْنِ السَّبِیْلِ اِنْ کُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ

او غریبانو او مسافرو لره، که ایمان راوړے وی تاسو

بِاللّٰهِ وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰی عَبْدِنَا یَوْمَ الْفُرْقَانِ

په الله تعالٰی باندے او په هغه (مدد) چه رالیږلے وو مونږ په بنده خپل په ورځ د فیصلے (ورځ د بدر)

یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعٰنِ وَاللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ

په هغه ورځ چه مخامخ شوے دوه ډلے او الله تعالٰی په هر څیز

قَدِیْرٌ ﴿۴۱﴾ اِذْ اَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْیَا وَهُمْ

قدرت والا دے. کوم وخت چه وئ تاسو په غاړه نیږدے او دوی وو

ملا د دے ځائے نه د سورت دویمه حصه ده او په دیکښ هم دوه بابونه دی

اول باب ملاه آیت پورے دے په دے کښ اول تشریح د اولے دعوے ده او د

هغې د پاره پنځه علتونه دی او یو قانون د جهاد دے او زوړنے دی او تخویف

دنیوی او اخروی دے. مطلب د آیت دا دے چه مال غنیمت به امیر د جهاد پنځه

حصے کړی دا حکم د الله او د رسول دے لکه په اول آیت کښ تیر شو یعنی څلور

حصے به په غانمینو کښ تقسیم کړی او پنځمه حصه حق د بیت المال دے چه

د هغې پنځه مصرفونه په دے آیت کښ ذکر دی ربط د مخکښ سره دا دے چه مخکښ

آیت کښ حکم د قتال ذکر شو نو په دے آیت کښ حکم د هغه مال ذکر کوی

چه په قتال سره حاصل شی چه هغه غنیمت دے. او حلالیدل د غنیمت

دا د دے اُمت خصوصیت دے مخکنو امتونو کښ په مال غنیمت باندے به

د قبولیت د پاره اور د اسمان نه نازلیدلو. لِلّٰهِ ذکر د الله تعالٰی په طور د اختیار

مطلقه او تبرک دے. وَلِلرَّسُوْلِ دا حصه د بعض علماؤ په نیز د هغه په ژوند

بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰى وَالرَّكْبُ اَسْفَلَ مِنْكُمْ ؕ

په غاړه لرې کښې او قافله د سوداګرو ښکته روانه وه ستاسو نه

وَلَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِى الْمِيْعٰدِ ۙ

او که وعده کړې وے تاسو نو خامخا اختلاف به کړے وے تاسو په وخت مقرر کښې،

وَلٰكِنْ لِّيَقْضِىَ اللّٰهُ اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ۙ۬

لیکن (الله تعالیٰ جمع کړئ تاسو بے وعدے) د دے د پاره چه پوره کړی الله تعالیٰ هغه کار چه مقرر شوے وؤ

لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنْۢ بَيِّنَةٍ وَّيَحْيٰى مَنْ

د دے د پاره چه مړ شی هغه څوک چه مړ شو پس د دلیل نه او ژوندے پاتے شی هغه څوک

حَیَّ عَنْۢ بَيِّنَةٍ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَسَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۙ ﴿۴۲﴾

چه ژوندے وؤ پس د دلیل. او یقینًا الله تعالیٰ خامخا هرڅه اوری او په هرڅه پوهه دے.

پورے خاص وه د هغه او د هغه د اهل او میلمنو وغیره د پاره او روستو د وفات

د هغه نه ساقطه شویده او د بعض علماؤ په نیز دا حصه به په بیت المال

کښې جمع کیږی د پاره د مصالحو د مسلمانانو د علماؤ چه مدرسین د تفسیر

او فقه او حدیث دی خرچ به کړے شی (شربینی او ابن کثیر)

وَلِذِی الْقُرْبٰى، مراد د دے نه ذوی قربی د رسول صلی الله علیه وسلم دی چه

هغه فقط بنی هاشم او بنی مطلب دی. او په دے ایت کښې بیان د اول علت

دے په اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ سره چه هر کله تاسو ایمان په الله تعالیٰ لرئ

او یقین کوئ چه په ورځ د بدر باندے الله تعالیٰ ستاسو امداد کړیدے نو

غنیمت کښې ولے اختلاف کوئ - د اِنْ جزا پټه ده چه واعلموا په هغې باندے

دلالت کوی (نو تقسیم د غنیمت په دے طریقې سره اوکړئ) او دا دلیل دے چه ادا

د خمس د غنیمت د ایمان جزء دے لکه چه په حدیث د وفد د عبد القیس کښې ذکر

دی او بخاری باب ذکر کړے دے باب اداء الخمس مِنَ الایمان.

۵۵ دا بل علت دے د پاره د دغه دعوے حاصل دا دے چه ستاسو جنګ د لښکر

د ابوجهل سره بغیر څه د وعدے نه الله تعالیٰ اوکړو او تاسو ته یې فتح درکړه

إِذْ يُرِيكَهُمُ اللَّهُ فِي مَنَامِكَ قَلِيلًا ۖ وَلَوْ أَرَاكَهُمْ

کوم وخت چه ادخودل دوی تاته الله تعالیٰ په خوب ستا کښ لږ - او که خودلے یئے وے دوی تاته

كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ فِي الْأَمْرِ وَلَٰكِنَّ

ډیر نو خامخا کمزورے شوی به وی تاسو او خامخا اختلاف به کړے وو تاسو په باره د جنګ کولو کښ لیکن

اللَّهَ سَلَّمَ ۗ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ (۴۳)

الله تعالیٰ بچ کړئ تاسو (د کمزورئ او اختلاف نه) یقیناً هغه پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو کښ وی۔

نو غنیمت کښ جګړه مه کوئ -

تفسیر د ایت دادے چه په بدر کښ یوه خوړ کئ ده د هغے په هغه طرف باندے چه کوم مدینے ته نزدے وو د مسلمانانو لښکر وو او هغه بل طرف چه د مدینے نه لرے وو او مکے ته نزدے وو او د مکے نه لاړ هغے ته راوتلے ده په هغے د ابوجهل لښکر وو او قافله د ابوسفیان د مدینے نه په ښکته طرف باندے د سمندر په غاړه روانه وه د بدر نه درے میله لرے وو.

لَاخْتَلَفْتُمْ اختلاف به د دواړو طرفونو نه واقع شوے وے ځکه چه په یو بل باندے به مو د ډیر والی ګمان کړے وو.

أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا، مراد د امر نه غلبه ده په قتال کښ مؤمنانو لره.

لِيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ، د دے یو مطلب دادے چه پس د فتح د بدر نه دلیل د صداقت د اسلام ښکاره شو نو که څوک مړ شی نو مړګ یئے پس د لیدلو د دلیل نه دے او که څوک ژوندی وی نو هم دلیل یئے اولیدلو دویم مطلب یئے دادے چه مراد د هلاکت نه کفر دے او مراد د حیات نه ایمان دے او ډیرو مفسرینو دویم قول غوره کړے دے۔

وَإِنَّ اللَّهَ، دا معطوف دے په احوالو د مؤمنانو او کافرانو باندے چه په مخکښ جملو کښ ذکر شول۔

۴۳ دا دریم علت د هغه دعوے دے مطلب یئے دادے چه الله تعالیٰ خپل نبی صلی الله علیه وسلم ته په خوب کښ اوښودله چه کافران لږ دی که ډیر یئے ورته ښودلے وے نو بیا د جنګ د نه کیدلو احتمال وو د وجے د یرے ستاسو نه لیکن الله تعالیٰ په دے طریقه

وَاِذْ يُرِيْكُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَيْتُمْ فِيْٓ اَعْيُنِكُمْ

اوکوم وخت چه اوخودل تاسو ته الله تعالیٰ دوی کله چه مخامخ شوئ، په سترګو ستاسو کښی

قَلِيْلًا وَّيُقَلِّلُكُمْ فِيْٓ اَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِيَ اللّٰهُ

لږ او لږ ئې ښکاره کړئ تاسو په سترګو دهغوی کښ دے دپاره چه پوره کړی الله تعالیٰ

اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا ۗ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿۴۴﴾ ع

هغه کار چه وو مقرر شوے. او خاص الله تعالیٰ ته به ورګرځیدلے شی ټول کارونه.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمْ فِئَةً

اے ایمان والو کله چه مخامخ شئ یو ډلے د کافرانو سره

دَجنګ او غنیمت سبب جوړکړو دے وجے نه غنیمت کښ خپل اختیار مه چلوئ۔

سوال: کافران ډیر وؤ نو دَ هغوی کم ښودل خو په ظاهرکښ دروغ دی؟

جواب: بنا دَ خوبونو په باطنی امورو باندے وی نو په حقیقت کښ کافران لږ دی دَ وجے دَ سپکوالی او دَ ذلت دَ هغوی نه په نیز دَ الله تعالیٰ یا دَ دے وجے نه چه په مستقبل کښ بعض قتل شول او بعضو ایمان راوړو۔

اِنَّهٗ عَلِيْمٌ، بغیر دَ واو نه ئې ذکر کړو ځکه چه دا دلیل دَ مخکښ ملازمے دے چه په لوار اکمراه کښ ده۔

۴۴ دا ځلورم علت دے دَ پاره دَ دعوے حاصل ئې دا دے چه په میدان جنګ کښ دواړه ډلے الله تعالیٰ یو بل ته لږے لږے ښکاره کړے دے دَ پاره چه جنګ اوشی او غنیمت حاصل شی نو غنیمت کښ جګړه مه کوئ۔

اَمْرًا كَانَ مَفْعُوْلًا، دے آیت کښ دَ دے نه مراد جنګ کول دی او په تیر شوی آیت ۴۲ کښ مراد دَ هغے نه فتح او غلبه وه۔

يُرِيْكُمُوْهُمْ، ضمیر دَ فاعل الله تعالیٰ ته راجع دے او كُمْ او هِمْ دوه مفعولونه دی او قليلًا حال دے۔

فَاثْبُتُوْا وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۴۵﴾

نو ټینګ کړئ ځانونه خپل او یادوئ الله تعالیٰ لره ډیر دے دپاره چه کامیاب شئ۔

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا

او تابعداري کوئ د الله تعالیٰ او د رسول د هغه او اختلاف مه کوئ په کوم تئ کښې پس کمزوري به شئ

وَتَذْهَبَ رِيْحُكُمْ وَاصْبِرُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۴۶﴾

او لاړه به شي دبدبه ستاسو او صبر کوئ۔ یقینًا الله تعالیٰ ملګرے دے د صبرناکو۔

ﷺ هر کله چه مخکښې آیاتونو کښې نعمتونه په صحابه کرامو باندے ذکر کړے شول چه هغه اسباب د قتال وؤ نو اوس آداب د قتال ذکر کوی، مخکښې حصه کښې پنځه قوانین ذکر شوے دی او دا بیان د شپږم قانون دے په دړے آیتونو کښې او په دے کښې شپږ خبرے دی د هغې نه دوه په دے آیت کښې دی اول دا چه په میدان جنګ کښې ثابت قدم شئ دویم دا چه الله تعالیٰ ډیر یادوئ دا دوه هم په حقیقت کښې کافی دی د کامیابئ د پاره ځکه د دے سره لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ذکر شو۔

وَاذْكُرُوا اللّٰهَ، مراد د دے نه ذکر د زړه او د ژبے دواړه دے خو شرط دا دے چه پټ به وی ځکه ابن کثیر حدیث مرفوع او قرطبی د قیس بن عباد نه روایت راوړے دے چه اصحابو د رسول الله صلی الله علیه وسلم مکروه ګنړل آوازونه راویستل په وخت د قتال کښې او په دے ذکر کښې دعاګانے د طلب د نصرت او د غلبے هم داخل دی او هغې ته ترغیب دے۔

ﷺ په دے آیت کښې درے خبرے دی د جهاد د پاره اطاعت د الله تعالیٰ او د رسول صلی الله علیه وسلم او د اختلاف نه بچ کیدل او صبر کول، او اختلاف سبب دے د کمزورئ او د زوال د طاقت او صبر سبب دے د ملګرتیا د الله تعالیٰ۔

رِيْحُكُمْ په دے کښې دوه قولونه دی اول دا چه مراد د دے نه قوت او دبدبه ده په طریقه د تشبیه سره لکه چه ریح په هر ځائے کښې ورداخلیږی نو دارنګ قوت او دبدبه هم تاثیر کوی۔

دویم قول دا دے چه مراد د دے نه معنی حقیقی ده ځکه چه کمدد د الله تعالیٰ سره هواګانے د امداد راځی، او چه مدد الٰهی نه وی نو هواګانے بندے شی۔

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِم

او مه کیږئ پشان د هغه کسانو چه راوتل د کورونو خپلو نه

بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ

په لوېئ کولو او په ځان خودنه سره خلقو ته او چه منع کوي خلق د لارے د

اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٤٧﴾ وَإِذْ زَيَّنَ

الله تعالیٰ نه. او الله تعالیٰ د دوی عملونو له راګیرونکے دے (په خپل علم او قدرت کښ). او کوم وخت چه ښائسته کړل

لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ

دوی ته شیطان عملونه د دوی او وئیل ئے نیشته زور اور

لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَّكُمْ ۖ

په تاسو باندے نن ورځ کښ هیڅوک د خلقو نه او یقیناً زه امدادی ستاسو یم،

فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ

نو هر کله چه اولیدو دواړو ډلو یو بل، نو واپس شو دے (شیطان) په پوندو خپلو

وَقَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنكُمْ إِنِّي أَرَىٰ مَا لَا تَرَوْنَ

او وئیل ئے یقیناً زه جدا یم ستاسو نه یقیناً زه وینم هغه شے چه تاسو ئے نه وینئ

نکته: دے ایت کښ شپږم خبره ده د پاره د جهاد چه مشابهت مه کوئ د کافرانو سره په درے صفتونو کښ یو تکبر کول د حق نه دویم ریا کول په عمل سره دریم خلق د الله تعالیٰ د لارے نه منع کول۔

بَطَرًا، په اصل کښ وئیلے کیږی نعمتونه د الله تعالیٰ په ګناهونو کښ خرچ کولو ته۔

وَيَصُدُّونَ، دا ئے په فعل مضارع سره ذکر کړو اشاره ده چه د دوی خروج په طریقه د بطر او ریاء سره خو یو ځل وو او منع کول د سبیل الله نه خو د دوی همیشه عادت دے۔

إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ ۚ وَٱللَّهُ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴿٤٨﴾

يقيناً زۀ يريږم د (عذابه) الله تعالى نه - او الله تعالى سخت عذاب وركوونكے دے

إِذْ يَقُولُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم

كله چه وئيل منافقانو او هغه كسانو چه په زړونو د هغوى كښ

مَّرَضٌ غَرَّ هَٰٓؤُلَآءِ دِينُهُمْ ۗ وَمَن يَتَوَكَّلْ

مرض (شك) وؤ چه دهوكه وركړيده دے كسانو ته دين د دوى - او چا چه اوسپارلو ځان

عَلَى ٱللَّهِ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٤٩﴾ وَلَوْ تَرَىٰٓ

په الله تعالى باندے نو يقيناً الله تعالى زور اور دے حكمتونو والا دے - او كه وينے ته (اے ليدونكيه)

ملك دے آيت كښ پنځم علت دے د اولے دعوے - حاصل دا دے چه ابليس په ورځ د بدر كافران زړاوركړي وو بيا هر كله چه ملائيك ئے اوليدل نو اوتښتيدو - او الله تعالى دوى كمزوري كړل او تاسوله ئے غنيمت دركړل نو په هغې كښ اختلاف مه كوئ - روايت د بيهقي كښ راغلي دي چه ابليس په ورځ د بدر په شكل د سراقه بن مالك كښ راغے (ردا د يوے قبيلے سردار وؤ) او ابوجهل ته ئے تيزى د جنګ وركړه او لاس د يو مشرك ئے نيولے وؤ چه حارث بن هشام وؤ ميدان جنګ ته لاړو هر كله چه دۀ جبرائيل عليه السلام اوليدلو نو اوبريدو او اوتښتيدو - د دے نه داهم معلومه شوه چه شيطان كله د انسان په شكل باندے ګرځي او خلقو ته تيزى وركوي په ګناه كولو سره او دا دليل هم دے په دے خبره چه شيطان ملائيكو لره وينى او په دے آيت كښ چه كوم خوف شيطان ذكر دے دا خوف طبعي غير اختياري دے لكه انسان چه د مار او لړم وغيره نه يره كوى دغسے دے د جبرائيل نه او يريدلو او د قتاده نه روايت دے چه ابليس اِنِّيٓ أَرَىٰ مَا لَا تَرَوْنَ كښ رښتينے وؤ او اِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ كښ دروغژن وؤ - او په حديث كښ راغلي دي چه ابليس په ورځ د عرفے او په ورځ د بدر كښ ډير ذليل وو - او خوف د شيطان په سورة حشر ملك كښ هم ذكر دے او دا خوف ايمانى نه دے -

ملك داهم علت دے د پاره د اولے دعوے چه منافقينو په تاسو پورے خندل ليكن الله تعالى د هغوى خندا په خفګان بدله كړه او دا علت داخل دے

اِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ

هغه وخت چه ساه اخلي دَ كافرانو نه ملائكې وهي

وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ

مخونه دَ دوی او شاګانې دَ دوی (او وائي ورته) اوڅکئ عذاب

الْحَرِيْقِ ۝۵۰ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ

دَ اور سوزوونکي - دا سزا په سبب دَ هغې عملونو ده چه کړي دي مخکښې لاسونو ستاسو او یقیناً

اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ۝۵۱ كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ

الله تعالیٰ نه دے هیڅ ظلم کوونکے په بندګانو خپلو باندې - حال دَ دوی پشان دَ حال دَ فرعونیانو دے

په مخکښې پنځم علت کښې یعنی په هغې کښې ذکر شول محروم کیدل دَ کافرانو دَ خپل مقصد نه او په دے کښې ذکر کیږي خلاف کیدل دَ ګمان دَ منافقانو نه -

الْمُنٰفِقُوْنَ، نه مراد منافقان اعتقادي دَ مدینې وو چه په ژبه ئې دَ ایمان دعوی کوله او په زړه کښې پوره انکار لرلو -

وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ، مراد دَ دے نه شک والا وو چه دَ مکې مکرمې او دَ نورو اطرافونه بدر ته راغلي وو دوی هم کافران دی ځکه چه ایمان په شک سره نه حاصلیږي

وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ دا صفت دَ مجاهدینو دَ بدر دے یعنی هغوی چه دَ ډیرو کافرانو مقابلې ته راوتلي وو نو دا دَ وجې دَ غرور نه نه وو بلکه دَ وجې دَ توکل نه وو -

ف مخکښې آیاتونو کښې حالات دنیویه دَ کافرانو او منافقانو ذکر شول نو په دے آیت کښې بیرته ورکول دي دَ عذاب، په وخت دَ ځنکدن او په برزخ کښې او دا عذاب واقع شوے وو په هغه مشرکانو چه په بدر کښې اووژلے شول -

يَضْرِبُوْنَ الخ وهل دَ مخ او دَ دبر کښې ډیره بې عزتي راځي نو ځکه دا ئې خاص کړل یا تربینه مراد هر طرف دے او دا سے په سورة محمد ۲۷ کښې هم دي -

عَذَابَ الْحَرِيْقِ، سوزوونکے دَ ظاهر او باطن دواړو دے -

ف دې آیت کښې اشاره ده چه دَ عذاب دوه سببونه دي یو بد عملونه دَ خلقو او دویم عدل دَ الله تعالیٰ دا سے په سورة العمران ۱۸۲ کښې هم ذکر دی -

اَيْدِيْكُمْ نه مراد دَ بدن ټول قوتونه دی لیکن اکثر عملونه په لاسونو سره کیږي ځکه ئې خاص ذکر کړل -

وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

او هغه کسان چه مخکښ وو د هغوی نه. کفر کړے وو هغوی په ایاتونو د الله تعالیٰ

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ

نو اونیول دوی لره الله تعالیٰ په سبب د ګناهونو د دوی. یقیناً الله تعالیٰ قوت والا دے

شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٥٢﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا

سخت عذاب ورکوونکے دے. دا عذاب په دے وجه دے چه یقیناً الله تعالیٰ نه دے بدلوونکے

نِّعْمَةً اَنْعَمَهَا عَلٰى قَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ۙ

نعمت لره چه کړے وی هغه په یو قوم باندے تر دے چه دوی بدل کړی هغه عقیده چه زړونو د دوی

وَاَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٥٣﴾ كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ

او (پوهه شئ) چه یقیناً الله تعالیٰ هر څه اوری په هر څه پوهه دے، حال د دوی پشان د حال د فرعونیانو دے

۵٢ په دے ایت کښ تشبیه د موجوده کافرانو ده د مخکنو کافرانو سره چه د هغوی عادت او د دوی عادت یو شان دے په کفر کولو کښ او دا رنګ په عذاب د دُنیا او د برزخ کښ چه مخکښ ذکر شو په باره د مشرکینو د بدر کښ نو په دے کښ زیات قباحت شان د دوی ذکر کوی او په دے کښ تفصیل د ما قدامت ایدیکم دے بِذُنُوْبِهِمْ، په دے کښ اشاره ده چه کفر مستلزم دے ډیرو ګناهونو لره.

۵٣ دا تفسیر دے د هغه جملے چه لیس بظلام للعبید، او دا سبب دے د عذاب چه مخکښ ایت کښ ذکر شو جواب د سوال دے چه کفر خو په دوی کښ د مخکښ نه موجود وو نو په هغه وخت کښ ولے عذاب نه ورکوو؟ حاصل جواب دا دے چه نفس کفر خو ناکاره حالت دے لیکن د هغے سره سره دوی ته امن وو. او هر کله چه دوی ته نبی راغے او ایاتونه ورته راغلل نو کفر د دوی سخت شو نو الله تعالیٰ د دوی نعمت په نقمت (غصه) سره بدل کړو. نو مراد د نِعْمَةً نه هغه امن او طعام وو چه سره د کفر د دوی ته جاری وو او مراد د يُغَيِّرُوْا نه کفر بالأيات والنبی دے یا مراد د نعمت نه عام دے فراخی، امن او صحت او دین د پیغمبر او دے ایت کښ اشاره ده چه بدلول د دین د الله تعالیٰ سبب د عذاب دے.

وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ

او د هغه کسانو چه مخکښ د دوی نه وو . دروغژن کړی وو دوی ایتونه د رب خپل

فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ ۚ

نو هلاک کړل مونږه دوی په سبب د ګناهونو د دوی او غرق کړل مونږ فرعونیان

وَكُلٌّ كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۵۴﴾ اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ

او دا ټول وو ظالمان . یقینًا بد تر د زناکه سرو نه

عِنْدَ اللّٰهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۵﴾ ۖ

په نیز د الله تعالیٰ هغه کسان دی چه کفر ئې کړی دے پس دوی ایمان نه راوړی .

---

يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ، مراد ګډ دے نه بدلول د نیکو عملونو دی په بد عملونو سره یا بدلول د کفر دی په زیات کفر سره . او هغه سبب د تغیر د حال دے د امن نه عذاب ته او دا سے په سورة رعد ملا کښ هم راځی .

۵۴ دا ایت تکرار نه دے ځکه چه تیر شوی ایت کښ تشبیه وه په کفر کښ او په دے ایت کښ تشبیه ده په بدلولو د نعمت کښ دا رنګ مخکښ ایت کښ ذکر د کفر وو او په دے ایت کښ ذکر د تکذیب دے چه زیات کفر دے او په هغې کښ ذکر د اخذ اجمالی وو او په دے ایت کښ د هغې تفسیر او تفصیل دے په فَاَهْلَكْنٰهُمْ سره او اشاره ده چه عذابونه د مکذبینو مختلفو په مختلفو طریقو سره وو په سیلئ په رجفه په کا نړو راورولو او په غرقولو سره نو عذاب د مشرکینو د مکے په توره او په قتل سره راغے . ظٰلِمِيْنَ، اشاره ده چه د غه عملونه د دوی ځکه سبب د عذاب وو چه هغه خالص ظلم وو .

۵۵ هرکله چه صفتِ مشترکه د ټولو کافرانو ذکر شو چه هغه ظلم دے نو اوس یو صفتِ خاصه ذکر کوی د یو نوع د کافرانو چه په هغوی کښ څلور قبائح دی او دا سبب هم دے د تیر شوی عذاب چه دا عذاب په دوی ځکه راغے چه دا شریر خلق دی او د دوی څلور قبائح ذکر کړیدی دوه په دے ایت کښ او دوه وروستو ایت کښ .

لَا يُؤْمِنُوْنَ، یعنی پاښه دی په کفر باندے د ایمان اُمید ترینه نیشته

الَّذِيْنَ عٰهَدْتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَهُمْ

داهغه کسان دی چه لوظ کړی دے تا د دوی سره بیا ماتوی دوی لوظ خپل

فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ وَّهُمْ لَا يَتَّقُوْنَ ﴿۵۶﴾

په هر ځل کښ او دوی ځان نه ساتی (د نورو ګناهونو نه).

فَاِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِمْ

پس که ته لاندے کړے دوی لره په جنګ کښ نو اوبره وه په سبب د دوی

مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۵۷﴾

د دوی نه روستو خلقو لره دے دپاره چه دوی (دا روستو خلق نصیحت قبول کړی.

اوسبب د هغے ذکر وۀ په ۳۲ کښ د هغه ایت مقصد وۀ ذکر د عناد د منافقانو او په دے ایت کښ ذکر د عناد د ښکاره کافرانو دے.

۵۶ دے ایت کښ دوه قبائح د دوی نور ذکر دی یو لوظ ماتول دویم عدم تقوٰی. حاصل دا دے چه شریر د خلقونه کافران دی او شریریه کافرانو کښ ضدیان دی او شریریه د ضدیانو کښ بے لوظه دی۔ الَّذِيْنَ عٰهَدْتَّ اول مصداق د دے یهود د بنی نضیر او بنو قریظه دی او مشرکین مکه دی او بیا عام دے. مِنْهُمْ دا لفظ د دے وجے نه دے چه عهد په اصل کښ د بعضو سره وی چه هغه مشران وی.

۵۷ د دے ځائے نه اخر پورے دویم باب دے د دے حصے. په دیکښ قوانین د جهاد ذکر کوی په هغے کښ یو قانون عام مجاهدینو د پاره دے او نور د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پاره خاص دی او هغه د پاره د امیر د جهاد هم دی او په اخر کښ پنځه اقسام د خلقو دی او د مؤمنانو د پاره زیرے دے. دا اووم قانون دے مخاطب په دے سره رسول صلی الله علیه وسلم دے او د هغه نائب چه امیر دے. مطلب د دے قانون سختی کول دی په جنګ کښ د مشرکینو سره چه نور خلق ترینه عبرت واخلی.

فَشَرِّدْ بِهِمْ، دا ذکر د مسبب مراد ترینه سبب دے چه دوی سره داسے عمل اوکړه یعنی (قتل کول او بیرے ویرے تو یول) چه سبب اوګرځی د پاره د بیره ولو د روستو خلقو، او عبرت اوګرځی.

وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ خِيَانَةً فَانۢبِذْ إِلَيْهِمْ

او که یریږې ته د یو قوم نه د لوظ ماتولو نو خبر ورکړه دوی له (د لوظ ختمولو)

عَلَىٰ سَوَآءٍ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْخَآئِنِينَ ﴿٥٨﴾

چه شئ دواړه برابر. یقیناً الله تعالیٰ نه خوښوی خیانتګر (د لوظ ختمولو)

وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ سَبَقُوٓا۟ ۚ إِنَّهُمْ

او ګمان دې نه کوی کافران چه دوی به بچ شی. یقیناً دوی

لَا يُعْجِزُونَ ﴿٥٩﴾ وَأَعِدُّوا۟ لَهُم مَّا ٱسْتَطَعْتُم

نه شی عاجز (کمزوری) کولے الله تعالیٰ له. او تیار کړئ د دوی مقابلے له څومره موچه وس کیږی

مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ ٱلْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِۦ

د سامان د جنګ نه او د ساتلے شوے اسونو نه چه یروئ تاسو په هغے سره

۵۸ تفه دا د څکښ قانون چه هرکله یو ډلے د کافرانو سره جنګ کیږی او یلے ډلے سره لوظ کړے شوے وی د امن لیکن د هغوی نه معلومه شی چه دوی لوظ ماتوی نو هغوی له به خبر ورکړے کیږی د لوظ د ختمیدلو.

تَخَافَنَّ، مراد دا دے چه غالب ګمان کښ معلومه شی په علامانو سره چه دوی لوظ ماتوی او دا قبیح کار دے نو واقع کیدلو د مشکل کار نه خوف وئیلے کیږی.

فَانۢبِذْ إِلَيْهِمْ، نبذ په معنی د ترکِ عهد دے او لفظ د إِلَيْهِمْ نه مراد دا دے چه دوی ته خبر اولیږه چه پس د دے نه لوظ ختم دے د پاره د دے چه دوی تا ته د خیانت ګر نسبت اونکړی.

عَلَىٰ سَوَآءٍ، یعنی چه تاسو ته کوم علم حاصل شوے وی د ترک د عهد چه دغسے هغوی ته هم دا علم حاصل شی.

۵۹ دا زور نه دا منکرینو ته چه کله دوی بے لوظه شی نو عذاب د الله تعالیٰ نه نشی بچ کیدے.

سَبَقُوٓا۟ په ځائے د مفعول دے د پاره د لا یحسبن په معنی د ان یسبقونا سره إِنَّهُمْ او دا علت دے د لا یحسبن د پاره.

عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ

دُښمن دَ الله تعالیٰ او دُښمن ستاسو او نور کسان سیوا دَهغوی نه (منافقان)

لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ ۚ اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا

چه تاسو نه پیژنئ هغوی لره، الله تعالیٰ پیژنی هغوی لره. او هغه چه خرچ کوئ تاسو

مِنْ شَيْءٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ

څه شے په لار دَ الله تعالیٰ کښ نو پوره به در کړیشی تاسو ته ثواب کښې

لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿۶۰﴾ وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا

هیڅ ظلم نشی کیدے. او که دوی مائل شو روغې ته پس ته هم مائل شه هغې ته

۶۰ دا اتم قانون دے د پاره د مجاهدینو مراد د دے نه تیاری کول دی د سامانِ جنګ او د پیاده فوج او د سور فوج او د جنګ نه مخکښ په دے کښ فائده دا ده چه مشرکانو او منافقانو باندے به رعب وی.

مِنْ قُوَّةٍ، مراد د قوت نه هر قسم سامان جنګ دے د هرے زمانے مناسب او په حدیث کښ الرمی (ویشتل) ذکر دے هغه یو مثال دے د قوت د پاره او هغه پدے زمانه کښ مختلف قِسم بموته او میزائیل وغیره ویشتل او جوړولو د هغے ته شامل دی.

وَمَا تُنْفِقُوْا، په دے کښ اشاره ده چه د جهاد په نیت څومره سامان باندے پیسے خرچ کړے شی نو هغه ثواب دے.

مِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ، اسونو ته په هره زمانه کښ د جنګ د پاره ضرورت دے او دا معلومه خبره ده د دے وجے نه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی اَلْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. (د اسونو په تندو کښ ترقیامته پورے خیر تړلے شوے دے) نو خیر نه مراد جهاد او غنیمت دے دلیل دے چه جهاد به ترقیامته پورے جاری وی.

لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ اه دا سے په سورۃ توبه ۱۰۱ کښ راغی. دا ایت ښکاره دلیل دے پدے خبره چه رسول الله صلّی الله علیه وسلّم او صحابه کرام په غیب نه پوهیدل.

وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٦١﴾

او ځان سپاره په الله تعالیٰ باندے یقینًا الله تعالیٰ هرڅه اوری په هرڅه پوهه دے۔

وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ

او که دوی اوغواړی چه دهوکه کوی ستا سره پس یقینًا پوره دے تا لره

اللّٰهُ ۭ هُوَ الَّذِيْٓ اَيَّدَكَ بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٦٢﴾

الله تعالیٰ۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه کلک کړے ئې ته په مدد خپل او په ملګرتیا د مؤمنانو۔

وَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ ۭ لَوْ اَنْفَقْتَ مَا فِي الْاَرْضِ

او مینه ئې راوسته په مینځ د زړونو د دوی کښ که خرچ کړے وے تا هغه څیزونه چه په زمکه کښ دی

جَمِيْعًا مَّآ اَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ

ټول نه به وے پیدا کړے تا مینه په مینځ د زړونو د دوی کښ لیکن الله تعالیٰ

ﮮ۶۱ دا نهم قانون دے د پاره د جهاد او مطلب د دے دا دے چه مؤمنان به د صلح دعوت کافرانو ته نه ورکوی او که کافران طلب کوی نو صلحه کول جائز دی۔ فَاجْنَحْ، دا امر د پاره د وجوب نه دے۔ او چه هغوی طلب نه وی کړے نو صلح کول منع دی او هغے ته وهن وئیلے شی لکه چه په سورة محمد ﮮ۳۵ کښ دی۔
ﮮ۶۲ دا تعلق لری د مخکښ آیت سره که دوی په صلحه کولو کښ اراده د دهوکے لری نو ریره مه کوه د دوی نام داجزا پته ده۔
فائده(۱): لفظ د حسب خاص دے په الله تعالیٰ پورے په دلیل د سورة توبه ﮮ۱۲۹ او سورة آل عمران ﮮ۱۷۳ او تائید په مخلوق سره هم کیدے شی۔
هُوَ الَّذِيْٓ یئې بغیر د عطف نه ذکر کړو ځکه دا تفسیر د حسبیت الٰهیه دے۔
سوال: تائید په نصرت الٰهی سره بالمؤمنین ته څه حاجت دے؟
جواب: تائید دوه قسمه دے اول په غیر د اسبابو ظاهرونه دا په نصره سره مراد دے دویم په اسبابو سره دا په بالمؤمنین کښ مراد دے۔
فائده(۲): بالمؤمنین سره اشاره ده مدحه د صحابه کرامو ته لکه په حدیث کښ (اختار الله لي صحابة (الله تعالیٰ زما د پاره صحابه غوره کړیدی))۔

أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۶۳﴾ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ

مینه پیدا کړه په مینځ د دوی کښې۔ یقیناً الله تعالیٰ زوراور دے حکمتونو والا دے۔ اے نبی (صلی الله علیه وسلم)

حَسْبُكَ اللَّهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۶۴﴾ ع

پوره دے تا لره الله تعالیٰ او هغه چا لره چه تابعداري ستا د مؤمنانو نه۔

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ ۚ

اے نبی (صلی الله علیه وسلم) تیزی ورکوه مؤمنانو لره په جنګ کولو باندے

إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا

که وی ستاسو نه شل کسان صبرناک نو غالب کیږي به

مِائَتَيْنِ ۚ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوا

په دوو سوو او که وی ستاسو نه سل کسان نو غالب کیږی به

۶۳ دا بیان د تائید دے په مؤمنانو سره چه هغه بغیر د اتفاق نه نه حاصلیږی۔
مَا أَلَّفْتَ، په دیکښې اشاره ده چه نبی صلی الله علیه وسلم د چا په زړه باندے قدرت نه لری نو مختار کل نه دے۔
فائده: دا ایت دلیل دے په دے خبره چه د صحابه کرامو په مینځ کښې مینه او محبت وو د هغوی په مینځ کښې دشمنی نه وه۔ نو هغه تاریخ چه د هغے نه دشمنی د صحابو معلومیږی هغه د دے ایت خلاف دے هغے ته هیڅ اعتبار نیشته او دا سے په سورة العمران ۱۰۳ او سورة فتح ۲۹ کښې هم راغلے دی۔
۶۴ دا السم قانون دے د پاره د امیر چه توکل په هر حالت کښې په الله تعالیٰ باندے پکار دے ځکه چه الله تعالیٰ کافی دے په هر حال کښې۔
سوال: دا خو تکرار دے د ۶۲ سره۔
جواب: هلته حسبیت خاصه مراد وو د پاره د دفع کولو د ضرر د دشمنانو نه او دلته عامو حالاتو کښې حسبیت مراد دے۔ وَمَنِ اتَّبَعَكَ، دا عطف دے په (ک) باندے او یا مبتدا ده خبر ئې محذوف دے (حسبهم الله) او څوک چه وائي چه دا معطوف دے په الله باندے نو دا غلط قول دے ځکه چه مخکښې ذکر شوه چه حسبیت صفت خاص دے په الله تعالیٰ پورے په هغے کښې شرکت ممکن نه دے او شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ په دے باندے تفصیلاً رد کړے دے۔

اَلۡفًا مِّنَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِاَنَّهُمۡ قَوۡمٌ لَّا يَفۡقَهُوۡنَ ﴿۶۵﴾

په زرګونو د کافرانو باندې وجه دا ده چې دوی داسې قوم دی چې نه پوهیږي.

اَلۡـئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنۡكُمۡ وَعَلِمَ اَنَّ فِيۡكُمۡ ضَعۡفًا ؕ

اوس اسانتیا راوسته الله تعالیٰ په تاسو باندې او پوهه شو چې په تاسو کښې کمزوري زیاته ده

فَاِنۡ يَّكُنۡ مِّنۡكُمۡ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغۡلِبُوۡا مِائَتَيۡنِ ۚ

نو که وي ستاسو نه سل کسان صبرناک غالب کیږي به په دوه سوو

وَاِنۡ يَّكُنۡ مِّنۡكُمۡ اَلۡفٌ يَّغۡلِبُوۡۤا اَلۡفَيۡنِ

او که وي ستاسو نه زر کسان غالب کیږي به په دوه زرو

۶۵ دا یو ولسم قانون دے د پاره د امیر حاصل دا دے چه نبي صلی الله علیه وسلم او بیا امیر باندے لازم دي چه مجاهدینو ته داسے تیزي ورکړي په جهاد باندے چه یو کس مقابله د لسو تنو کولے شي او که داسے نشي کولے نو کم از کم یو کس دے د دوؤ کسو مقابله کوي دا فرض دي. نو په حَرِّضِ سره ئے دا قانون ذکر کړو لکه په سورة نساء ۸۴ کښې او اِنۡ يَّكُنۡ مِّنۡكُمۡ الخ سره طریقه د تحریض ذکر کړیده.

سوال: د دے ایت مقصد دا دے چه یو په لس باندے مقابله کوئ نو دومره اوږد عبارت ئے ولے ذکر کړو؟

جواب: په ابتداء د اسلام کښې د صحابو شمار کم وؤ نو اکثر سرئے په د شلو نه زیاتے تر سلو پورے تعداد باندے مشتمل وے.

صَابِرُوۡنَ، شربیني وئیلي دي چه د دے حکم شرط صبر دے او مراد د صبر نه دا دے چه بدن ئے قوي او سالم اندامونو والا وي او زړه ئے کلک او شجاع وي او دا رنګ ایمان ئے مضبوط وي او پابند وي د هغه قوانینو چه په دے سورت کښې بیان شوے دي. او هر کله چه یو کرت دا صفت ذکر شو نو دویم کرت د مائة سره ذکر کولو ته حاجت نیشته.

بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۶۶﴾ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ

په امداد د الله تعالیٰ سره. او الله تعالیٰ خاص ملګرے دے د صبرناکو. نه دی مناسب نبی لره

اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗۤ اَسْرٰى حَتّٰى يُثْخِنَ فِى الْاَرْضِ ؕ

چه وی دے هغه لره قیدیان ترد پورے چه ډیرے وینے تویے کړی په زمکه کښ

تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا ۖ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ؕ

غواړئ تاسو سامان د دُنیا. او الله تعالیٰ غواړی آخرت (ستاسو د پاره)

سلک دا آیت په نیز د مقدمینو علماؤ ناسخ دے د مخکښ آیت د پاره او په نیز د روستو علماؤ دا تخفیف دے او دا غوره خبره ده یو وجه دا ده چه آیت کښ لفظ د خفف موجود دے دویم دا ده چه په تیرشوی آیت باندے عمل کول هم ثواب دے او په منسوخ باندے خو عمل نشی کیدے نو معلومه شوه چه مخکښے حکم منسوخ نه دے. وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا، مراد د دینه کمزورے والے د همت دے لیکن دا صفت د بدائ نه دے بلکه دلالت کوی په دے خبره چه د صحابو په درجا تو کښ فرق وو او سفیان بن شبرمه وئیلے دی چه د امر بالمعروف والنهی عن المنکر دا حکم دے چه په دے آیت کښ ذکر دے.

فائده: د اول آیت په آخر کښ سبب ذکر کړو عدم فقاهت د کافرانو او مراد د هغے نه جهل د توحید او د ایمان بالرسول او قرآن او آخرت دے او په طریقه مفهوم سره معلومه شوه چه مؤمنان مجاهدین په فقاهت سره موصوف دی او د دے صفت د وجود سره زیات تعداد ته حاجت نیشته.

او دویم آیت کښ سبب بِاِذْنِ اللّٰهِ او مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ذکر کړے دے اشاره ده چه د صفت د فقاهت نه اذن د الله او صبر او نصرت الٰهی ډیر ضروری دے. او دا رنګ اول آیت کښ ذکر د صفت سلبیه دے علت د پاره د مغلوبیت د کافرانو او په دویم آیت کښ ذکر د صفتِ ثبوتیه دے د پاره د غلبے د مؤمنانو.

وَاللّٰهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٦٧﴾ لَوْلَا كِتٰبٌ مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ

او الله تعالیٰ زوراور دے حکمتونو والا دے. که نه وے حکم دَ الله تعالیٰ چه مخکښې فیصله شوے

لَمَسَّكُمْ فِيمَآ أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٦٨﴾

نو خامخا رسیدلے به وے تاسو ته په وجه دَ هغے مال چه واخستو تاسو (دَ قیدیانو په فدیه کښې) عذاب لوئے.

ـــــ دا دولسم قانون دے دَ امیر دَ پاره حاصل دا دے چه په ابتداء کښې دَ کافرانو قتلول ضروری دی دَ دے دَ پاره چه رُعب قائم شی په دشمنانو. دا آیت نازل شوے وو په واقعه دَ بدر کښې چه کله په هغے کښې دَ کافرانو نه اویا کسان په قید کښې راوستے شول او تردغه وخته پورے دَ قیدیانو په باره کښې حکم شرعی نه وو نازل شوے نو نبی صلی الله علیه وسلم دَ صحابوؓ سره مشوره اوکړه نو بعضو رائے پیش کړه چه دا ټول قتلول پکار دی او بعضو رائے پیش کړه چه دَ دوی نه به فدیه واخلو او په هغے به ځان له سامان جنګ واخلو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په دے روستنئ رائے اتفاق اوکړو او دَ هغوی نه فدیه واخستے شوه. نو دا آیت نازل شو چه دا سے کول نه وو پکار.

لِنَبِيٍّ یئے نکره راوړه اشاره ده چه دا حکم ټولو انبیاؤ ته دے.

أَسْرٰى، یعنی دا سے قیدیان چه په فدیه ورکولو سره خلاصیږی بغیر دَ قتل نه. نو په دے کښې اشاره ده چه قتل دَ مشرکانو دَ بدر غوره وو دَ فدیئے اخستلو او پریخودلو دَ هغوی نه. او دا واقعه دلیل دے چه نبی صلی الله علیه وسلم په وخت دَ عدم وجود دَ وحی کښې رجوع کړے ده اجتهاد ته چه طریقه دَ هغے شوری کول دی. او هر کله چه دا اجتهادی فیصله الله مسترد نه کړه صرف اولیٰ جانب ته یئے توجه ورکړه نو معلومه شوه چه اجتهاد دَ نبی هم وحی ده.

تُرِيدُونَ، دلته خطاب صرف صحابوؤ ته او شو دَ پاره دَ لحاظ دَ ادب دَ نبی صلی الله علیه وسلم.

ـــــ دا جواب دَ یو سوال دے، چه هر کله دوی دا فدیه واخستله نو ګنهګار شول نو پکار وو چه په دوی عذاب راغلے وے؟

دَ جواب حاصل دا دے که الله تعالیٰ دَ مخکښې نه قانون نه وے اینبو دے نو واقعی عذاب به راغلے وے لیکن الله تعالیٰ قانون اینبو دے دے هغه دا سے دے چه عذاب چالره نه ورکوی تر هغے چه مخکښې نه دغه حکم نه وی رالیږلے

فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ

پس خورئ د هغه مال نه چه غنیمت کښ واخستے تاسو حلال پاک او یره کوئ د الله تعالیٰ نه

اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۶۹﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ

یقینًا الله تعالیٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ اے نبی (صلی الله علیه وسلم) او وایه

لِّمَنْ فِيْۤ اَيْدِيْكُمْ مِّنَ الْاَسْرٰۤى ۙ اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ

هغه چانه چه په لاسونو ستاسو کښ دی د قیدیانو نه که معلوم کړو الله تعالیٰ

فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّاۤ اُخِذَ

په زړونو ستاسو کښ ایمان نو درله به کړی تاسو ته غوره د هغه مال نه چه اخستے شوے

مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۷۰﴾

ستاسو نه او بخنه به اوکړی تاسو ته او الله تعالیٰ بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔

اوداپه سورة توبه ۱۱ کښ ذکر دے. اوډ فدیئے د منعے په باره کښ د مخکښ نه حکم نه وو راليږلے شوے نو مخالفت د حکم نه دے راغلے. بل دا قانون چه الله تعالیٰ دے اُمت د پاره مال غنیمت حلال کړے دے بل دا قانون ووچه الله تعالیٰ به بدر والا مجاهدین ټول بخلی دی. لفظ د کِتَابٌ مِّنَ اللّٰهِ دے دریے واړه خبرو ته شامل دے.

۷۱ هرکله چه بعض صحابه کرامو د دے زړونه نه روستو د هغه فدیئے د استعمالو ته نفرت کوؤ نو دا آیت نازل شو چه نفرت مه کوئ دا مال غنیمت دے او حلال دے. فَكُلُوا کښ فاء د سببیت دوا او شرط محذوف دے یعنی لما ابیحت لکم الغنائم (هرکله چه حلال کړے شو ستاسو د پاره غنیمتونه).

۷۲ دا دیارلسم قانون دے د امیر د پاره حاصل دا دے چه په دا سے قیدیانو کښ څوک دعوٰی د ایمان کوی د پاره د دے چه د فدیئے ورکولو نه خلاص شی نو هغه ته اووایه چه فدیه ورکول په تا لازم دی او که دعوٰی د ایمان صحیح وی نو الله تعالیٰ به د دے ډیر عوض درکړی او دا خبره په واقعه د بدر کښ عباس رضی الله عنه ته پیش راغلے وه اگرچه آیت عام دے او حکمت د دے قانون دا دے که په دعوٰی د ایمان سره یو تن د فدیئے نه معاف کړے شی نو دا سے به هر یو دعوٰی کوی

وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللّٰهَ مِنْ

او كه دوى غواړى دهوكه كول ستا سره نو يقيناً دهوكه كړيوه دوى دَ الله تعالىٰ سره دَ دينه

قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿٧١﴾

مخكښ پس قدرت يُے دركړو تا سولړه په دوى باندے او الله تعالىٰ پوهه دے حكمتونو والا دے۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا

يقيناً هغه كسان چه ايمان يُے راوړيدى اے او هجرت يُے كړيدى اے او جهاد يُے كړے دے

بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

په مالونو خپلو سره او په ځانونو خپلو سره په لار دَ الله تعالىٰ كښ

وَالَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّنَصَرُوْٓا اُولٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ

او هغه كسان چه ځائے وركړيدے او امداد يُے كړيدى اے (مهاجرينو سره) دغه كسان بعض دَ دوى

اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يُهَاجِرُوْا

دوستان دَ بعضو دى او هغه كسان چه ايمان يُے راوړيدے او هجرت يُے نه دے كړے

اوصفت دَ ايمان خوپټ دے نوهريو ته به فديه معاف كړے شي نو قانون دَ فديئے عبث او مهمل كرځي۔

اِنْ يَّعْلَمِ، دا كنايه ده دَ وجود دَ خير نه او دَ خير نه مراد ايمان او اخلاص دے

يُؤْتِكُمْ، دا وعده عامه ده دنيا او آخرت ته۔

فائده: دا ايت دليل دے چه طاعت دَ الله تعالىٰ او دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره بركاتِ دنيويه او اخرويه حاصليږى۔

خَانُوا اللّٰهَ، دَ خيانت نه مراد كفر او شرك دَ دوى دے او جنګ كول دى دَ مسلمانانو سره۔ مِنْ قَبْلُ مخكښ دَ واقعے دَ بدر نه۔

فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ، مراد دَ دے نه غلبه دَ مؤمنانو ده په كافرانو باندے په بدر كښ

وَاِنْ يُّرِيْدُوْا، جزا پټه ده (ذليل به كړى دوى په دنيا او آخرت كښ)۔

مَا لَكُمْ مِّنْ وَّلَايَتِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ حَتّٰى

نېشته تاسوله دَ دوستانې دَ هغوی نه هېڅ حق تر دې چه

يُهَاجِرُوْا ۚ وَاِنِ اسْتَنْصَرُوْكُمْ فِى الدِّيْنِ

هجرت اوکړي هغوی . او که مدد غواړي ستاسو نه په باره دَ دین کښې

فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ اِلَّا عَلٰى قَوْمٍۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ

تو په تاسو باندې لازم دې مدد کول دَ هغوی سره مګر په مقابله دَ هغه قوم کښې چه په مینځ ستاسو او په مینځ دَ هغوی کښې

مِّيْثَاقٌ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۷۲﴾

وعده وی (دَامن) - او الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو يې کوئ ليدونکې دې -

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ؕ

او هغه کسان چه کفر يې کړيدې بعض دَ دوی دوستان دَ بعضو دی.

ﷺ هر کله چه قوانین دَ جهاد تفصیلي بیان شول نو اوس مجاهدینو ته یو بل سره دَ ولایت او دَ نصرت کولو ترغیب ورکوی دَ پاره دَ دې چه دَ دوی په محبت سره په کافرانو باندې رعب پریوځي. په دې آیت کښې دَ مؤمنانو درې قسمه ذکر دی او دَ هغې احکام. یو قسم مهاجرین، دویم قسم انصار، دَ دې دواړو حکم دا دې چه دوی به یو بل سره پوره دوستانه ساتي او پوره امداد به کوی دا معنی دَ ولایت ده او بعضو مفسرینو په دې کښې توارث هم داخل کړې دې یعني دوی به دَ یو بل وارثان وی لیکن دا روستو منسوخ شوې دې په ۵ سره او سورة احزاب ۶ سره. دریم قسم مؤمنان غیر مهاجرین دی دَ هغوی حکم دا دې چه هغوی سره دوستانه او هر قسمه مدد نشته دې جائز دَ وجې دَ عدم هجرت نه او نه توارث دَ هغوی شته مګر که هغوی دَ دین په باره کښې څه مدد غواړي نو امداد ورسره پکار دې خو پدې شرط سره چه دَ نورو معاهدینو سره مقابله نه کوی په دې کښې ډیر ترغیب دې په هجرت کولو باندې او دَ دې نه معلومه شوه چه دَ دوی سره دشمني جائز نه ده بلکه دیني نصرت دَ دوی واجب دې.

إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ

اوکه اونکړئ تاسو دا امداد نو پیدا به شي فتنه په زمکه کښې او فساد

كَبِيرٌ ﴿٧٣﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا

لوئے - او هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے او هجرت ئے کړے او جهاد ئے کړے دے

فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوْا وَّنَصَرُوا

په لار د الله تعالیٰ کښې او هغه کسان چه ځائے ورکړے او مدد ئے کړے مهاجرینو سره

أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَهُمْ مَغْفِرَةٌ

دغه کسان بس هم دوی مؤمنان دی په رشتیا دوی لره بخنه ده

وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٧٤﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا مِنْ بَعْدُ

او رزق دے عزتمند - او هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے روستو د هغوی نه

سلا په دے کښې څلورم قسم د خلقو ذکر دے چه هغه کافران دی او مقصد ئے دا دے چه هغوی د یو بل سره امداد کوی په کفر کښې نو تاسو ولے د یو بل سره امداد نه کوئ په اسلام کښې مراد د ولایت د کافرانو نه د یو بل سره مشابهت دے په کارونو د کفر کښې او مدد او ډله کول د یو بل سره. او د دویمے جملے مطلب دا دے که تاسو د یو بل سره په دین کښې امداد اونکړئ نو دے نه به فتنه پیدا شي په غلبے د کافرانو سره په مسلمانانو باندے او لوئے فساد به جوړ شي په شرک عام کیدلو سره.

تَفْعَلُوهُ، ضمیر ولایت او نصرة ته راجع دے.

سلا دے ایت کښې زیرے دے مؤمنانو ته او شان د صحابه کرامو ذکر دے چه هغوی یقینی او کامل مؤمنان دی او هغوی پښلے شوے دی د دے سورت په اول کښې پنځه صفات ذکر وو او بیا دا جمله ذکر وه چه اولئك هم المومنون حقا نو د دے ایت او د هغه ایت د اتصال نه دا نتیجه راووتله چه مهاجرین او انصار په هغه پنځه صفتونو سره متصف دی او دوی مستحق د هغه بشارت دی چه په اول د سورت او په دے ایت کښې ذکر دے نو د دے وجے نه لعنت دے په

وَهَاجَرُوْا وَجَاهَدُوْا مَعَكُمْ فَأُولَٰئِكَ مِنكُمْ ۚ

او هجرت ئې کړېدے او جهاد ئې کړېدے په ملګرتیا ستاسو کښې نو دغه کسان ستاسو د ډلې نه دي

وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي

او بو نسب والا خپلوان بعض د دوی حقدار دي (د میراث) د بعضو په

كِتَابِ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٧٥﴾

حکم د الله تعالی کښې. یقینًا الله تعالی په هر څیز باندې پوهه دے.

هغه چاچه هغوی صحابه کرامو ته بد وائي او په هغوی طعن کوی چه هغه شیعه او روافض دی خصوصًا امامیه اثنا عشریه د دوی نه.

ځکه په دے آیت کښې ذکر د پنځم قسم د خلقو دے چه هغه صحابه کرام دی چه هغوی پس د فتحے نه ایمان راوړے دے او هجرت او جهاد ئې کړے دے نو دوی د هغکنو صحابه کرامو په جماعت کښې شمار دی او د فتحے نه مراد یا د حدیبیه صلحه ده چه په شپږم کال د هجرت شوے وه. یا فتح د مکے ده چه په اتم کال د هجرت شوے وه.

نو په دے کښې اشاره ده تقسیم د صحابه کرامو ته چه د هغوی په مینځ کښې تفاوت او تفاضل شته لیکن صفت د صحابیت کښې ټول شریک دی.

وَأُولُوا الْأَرْحَامِ، مطلب د دے دا دے چه میراث په سبب د نسب سره وی په سبب د دوستانے سره نه وی.

فِي كِتَابِ اللَّهِ نه مراد حکم د میراث دے په قرآن کښې چه په سورة نساء کښې په تفصیل سره ذکر دے او هغه ذوی الفروض او عصبه دی او مسئله د ذوی الارحامو کښې اختلاف دے.

او دا آیت ناسخ شو د ځکه د پاره چه په هغے کښې سبب د میراث هجرت او اخوت ګرځولے شوے وو.

(ختم شو تفسیر د سورة انفال)

ایاتها ۱۲۹ | سورة التوبة مدنية (۱۱۳) | رکوعاتها ۱۶

# بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى الَّذِيْنَ

اعلان دَ جدائئ دے دَ طرف دَ الله تعالیٰ او دَ رسول (صلی الله علیه وسلم) دَ هغه نه هغو خلقو ته

## سورة توبه

ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سره په ډیرو طریقو سره دے اوله طریقه داده هرکله چه سورة انفال کښې قاعدے دَ جهاد بیان شوے نو په دے سورت کښې اعلان جهاد دے دویمه طریقه داده چه سورة انفال کښې صرف اعلان دَ جهاد وو نو په دے سورت کښې ذکر دَ هغه ډلو دے چه دَ هغوی سره جهاد کیدے شی دریمه طریقه داده چه په هغه سورت کښې اعلان قتال وؤ نو په دے سورت کښې علتونه دَ قتال دَ مشرکانو او دَ کتابیانو ذکرکوی سره دَ جوابا تو دَ موانعو دَ قتال نه۔

دعوٰی دَ دے سورت: قتال کول دَ مشرکینو او دَ کتابیانو سره او جهاد کول دَ منافقینو سره او دا شپږ کرته ذکر شوے دے په ۵ ۱۴ ۲۹ ۳۶ ۴۳ ۱۲۳ کښې۔ او مسئله دَ توحید دَ سورت په آخر کښې ذکر ده په ۳۱ ۱۲۹ کښې او اسماء حسنٰی دَ الله تعالیٰ په دیکښې (۱۳) ذکر دی۔

خلاصه دَ سورت: په دے سورت کښې څلور حصے دی اوله حصه کښې ذکر دَ قتال دَ مشرکانو دے او دویمه حصه کښې ذکر دَ قتال دَ کتابیانو دے او دریمه حصه کښې عیبونه دَ منافقانو دی او څلورمه حصه کښې صفات دَ مؤمنانو دی۔ اوله حصه ۲۸ آیت پورے ده په دے کښې ذکر دَ درے قسمو مشرکانو دے او رد دے په څلورو موانعو دَ قتال باندے او دیارلس علتونه دَ قتال ذکر دی او ترغیب دے جهاد ته۔

فائده: دَ دے سورت په ابتداء کښې دَ بسم الله دَ نه لیکلو سبب دا دے چه دَ دے په ابتداء کښې بسم الله نه وه نازل شوے دویم سبب حدیث دَ عثمان رضی الله عنه دے چه روایت کړے دے ترمذی او ابوداؤد او نقل کړے دے صاحب مشکوٰة په صفحه ۱۹۳ کښې چه دَ هغے حاصل دا دے چه دَ دے سورت راوړل په سورة انفال پسے اجتهادی مسئله ده دَ دے احتمال دَ وجے نه چه دا سورت دَ مخکنی سورت جزء دے دَ ډیر مناسبت دَ وجے نه ځکه بسم الله دَ دے په سر کښې او نه لیکلے شوه

عَاهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝١ فَسِيْحُوْا فِي

چه لوظ وریره کړیدې تاسو دَ مشرکانو نه (او لوظ یې مات کړیدے). پس اوګرځئ په

الْاَرْضِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ

زمکه کښې څلور میاشتې او پوهه شئ چه یقینًا تاسو

غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكٰفِرِيْنَ ۝٢

نه شئ کمزورے کولے الله تعالیٰ لره او یقینًا الله تعالیٰ شرموونکے دے کافرانو لره.

وَاَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ

او اعلان دے دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او دَ رسول (صلی الله علیه وسلم) دَ هغه نه خلقو ته په ورځ

الْحَجِّ الْاَكْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ بَرِيْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۙ

دَ حج لوئے چه یقینًا الله تعالیٰ جدا دے دَ مشرکانو نه

او کدے احتمال ذ دے نه چه مستقل سورت دے نو نوم ذ سورت په اول کښې او لیکلے شو. او دا رنګ ذ بسم الله ذ نه لیکلو یو حکمت دا دے چه بسم الله ذ پاره ذ امن دہ او دا سورت ذ پاره ذ لرکولو ذ امن دے. دویم حکمت دا دے چه طریقه دا وه چه چا ته به خط ذ اعلان جنګ لیکلے کیدو نو ذ هغه په سر کښې به بسم الله نه وه.
ـ۱ په دے اول آیت کښې اوله ډله ذ مشرکینو ذکر ده چه هغوی ته محاربین وائي ځکه چه هغوی عهد مات کړے دے او هغه پکښې هم داخل دی چه ذ هغوی سره عهد غیر مؤجل وو. او ذ هغې یو حکم براءت دے او مراد ذ براءت نه هر قسم امن او ذمه لرے کول او هر تعلق قطع کول دی او ذ هغې بیان په ۱۲ ـ ۱۵ ـ نکل ۲۳ ـ ۲۸ ـ ۳۷ ـ ۴۳ ـ ۱۱۳ کښې دے.
ـ۲ په دے آیت کښې ذ هغې مشرکینو دویم حکم دے چه هغه مهلت ذ څلورو میاشتو دے. شوال، ذوالقعده، ذوالحجه او محرم ځکه چه ذ ازهري نه نقل دے چه دا سورت ذ شوال په اول کښې نازل شوے دے دویم قول دا دے چه ذ حج اکبر ذ ورځ نه څلور میاشتے به حساب ډیری تر آخر ذ ربیع الثاني پورے. لیکن اول قول غوره دے په قرینه ذ ۵ سره. او دا مهلت ذ پاره ذ فکر کولو دے ذ پاره ذ دے چه ایمان

وَرَسُولُهٗ ۚ فَإِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ

او رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغوی. پس که تاسو توبه ویستله (د شرک نه) نو دا به غوره وی تاسو لره.

وَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوٓا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ۗ

او که تاسو مخ واړوئ نو پوهه شئ چه یقینا تاسو نه شئ کمزوری کولی الله لره

وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣﴾

او زیری ورکړه کافرانو لره په عذاب دردناک سره.

راوړی - وَاعْلَمُوْٓا، په دے سره دوه وهمونه دفع کوی اول وهم دا چه آیا دا مهلت د وجے د عجز د الله تعالیٰ نه دے د دوی د مقابلے نه؟ جواب اوشو په اَنَّكُمْ غَيْرُ اه سره - دویم وهم دا دے چه دا مهلت دلالت کوی د دوی په اکرام او په عزت باندے؟ نو جواب اوشو وَاَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكٰفِرِيْنَ.

سـ په دے آیت کښې اعلان د براءت ذکر دے روستو د فیصلے د براءت نه مشرکینو محاربینو ته چه هغوی لوظ مات کړے وؤ. بیا هر کله چه دا اعلان په ورځ د حج باندے دے او د هغے نه تر محرم پورے څلور میاشتے نه وے پاتے نو ځکه دے آیت کښې د څلورو میاشتو ذکر نه دے شوے.

سوال: اول آیت کښې الی الذین عاهدتم اه ذکر دے او په دے کښې الی الناس ذکر دے؟

جواب: هغه براءت خاص دے په هغه معاهدینو پورے چه لوظ ئے مات کړے وؤ او دا اعلان عام دے ټولو مشرکانو ته که معاهد وی او که نه وی بلکه د اعلان په اوریدلو کښې مؤمنان هم شامل دی.

وَرَسُوْلُهٗ، دا په رفع (پیښ) سره دے مبتداء ده خبر ئے حذف دے یا عطف دے په محل د اسم د اَنَّ باندے. فَاِنْ تُبْتُمْ، په دے کښې ترغیب دے توبه کولو ته په زمانه د مهلت کښې. فَاعْلَمُوْٓا اه په دے کښې تهدید مقصد دے او په سـ کښې دفع د وهم مقصد وه لکه چه مخکښې تیر شول. وَبَشِّرِ، بشارت ئے په طریقه د تهکم (مسخرے) سره وئیلے دے. عَذَابٍ اَلِيْمٍ، په دنیا کښې په قتل او قید کولو سره او په آخرت کښې په عذاب ابدی سره.

فائده: حج اکبر ورځ د عرفے ده یا ورځ د نحر ده او هر یو حج ته اکبر وئیلے کیږی

إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ

مګر هغه کسان چه لوظ کړیوو تاسو دَ هغوی سره دَ مشرکانو نه بیا یې

لَمْ يَنقُصُوكُمْ شَيْئًا وَلَمْ يُظَاهِرُوا عَلَيْكُمْ

کمے نه دے کړے ستاسو نه هیڅ او نه یې امداد کړیدے ستاسو مقابله کښې

أَحَدًا فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ ۚ

دَ هیچا سره نو پوره کړئ دَ هغوی سره لوظ دَ هغوی ترمودے (نیټے) خپلے پورے

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ﴿٤﴾ فَإِذَا انسَلَخَ

یقیناً الله تعالیٰ خوښوی متقیان (ځکیدونکی دَ بے لوظئ نه)- پس هر کله چه تیرے شی

الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ

میاشتے عزت والا نو وژنئ مشرکان کوم ځائے چه

اوعمرے ته حج اصغر وئیلے کیږی اوداوینا چه مشهوره ده چه حج اکبر هغه دے چه عرفه په ورځ دَ جمعے وی داخبره ثابت نه ده لیکن کوم حج چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کړے وو "حجة الوداع" په هغے کښې ورځ دَ عرفے ورځ دَ جمعے وه نو په دے وجه باندے کوم حج چه دَ هغے سره موافق شی نو خلق یې مسمّیٰ کوی په حج اکبر سره۔

سک په دے ایت کښې دویم قسم مشرکان ذکر دی او هغوی ته معاهدین وائی په عهد مؤجل سره ځکه چه هغوی خپل عهد نه وو مات کړے او هغه دوه قبیلے وے یو بنو ضمره دویم کنانه، دَ هغوی حکم دا دے چه دَ هغوی عهد پوره کړئ تر هغے مودے پورے کوم چه مقرر شوے وه او دَ هغوی په عهد کښې نهه میاشتے باقی پاتے وے۔ لیکن دَ هغوی دَ پاره دوه شرطونه دی (۱) لم ینقصوکم (۲) لم یظاهروا۔ او حکم دَ هغوی ذکر دے په دے قول سره چه فَأَتِمُّوا۔ او إِنَّ اللَّهَ الخ دا علت دے دَ اتموا دَ پاره او دا دلیل دے چه په عهد باندے وفاکول عمل دَ تقویٰ دے۔

وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَخُذُوْهُمْ وَاحْصُرُوْهُمْ

مومئ هغوی لره او نیسئ هغوی لره او راګیروئ هغوی لره

وَاقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَاِنْ تَابُوْا

او کینئ هغوی ته په هره مورچه کښې، پس که دوی توبه کړه (د شرک نه)

وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوْا

او پابندی ئې کوله د مانځه او ورکوئې زکوٰة نو خالی کړئ

سَبِيْلَهُمْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝۵

لار د هغوی. یقیناً الله تعالیٰ بخونکے رحم کوونکے دے.

وَاِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ فَاَجِرْهُ

او که یو تن د مشرکانو نه امن او غواړی ستانه (د پاره د داخلیدلو دار اسلام ته) نو امن ورکړه هغه لره

ف په دے ایت کښی بل حکم د اولے ډلے ذکر دے مطلب ئې دا دے کله چه موده د مهلت (چه څلور میاشتے وے) او اخری میاشت د هغې محرم وه تیره شی دوی سره قتال کوئ۔ اَلْمُشْرِكِيْنَ، مراد د دوی نه هغه کسان دی چه عهد ئې مات کړے دے۔ وَخُذُوْهُمْ، مراد د دے نه قید کول دی بیا خوښه د امیر ده که قتلوی ئې او که فدیه ترے اخلی او احسانی ئې پریږدی۔ وَاحْصُرُوْهُمْ، د دے یو معنیٰ دا ده چه د دوی د قلعه ګانو نه محاصره اوکړئ او راګیر ئې کړئ۔ دویمه معنیٰ دا ده چه دار اسلام ته د داخلیدلو نه دوی منع کړئ بغیر د اجازت ستاسو نه۔ وَاقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ، مراد دا دے چه د دوی لارے بندے کړئ د پاره د دے چه په دار اسلام کښی ازاد ونګرځی۔ تَابُوْا، توبه د کفر او شرک نه چه د هغې نه په حدیث کښی تعبیر کړے شوے دے په یشهدوا ان لا اله الا الله وان محمدًا رسول الله سره۔ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ، دا دلیل دے په دے خبره چه د کافر صرف په توبه لفظ باندے اعتبار نه شی کیدلے څو پورے چه دا عملونه ورسره نه وی یوځائے کړی د پاره د تحقیق د توبے۔ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ، ابن کثیر وئیلے دی چه ابوبکر رضی الله عنه د زکوٰة منع کوونکو سره د قتال د پاره په دے ایت سره دلیل نیولے وو۔ فَخَلُّوْا، مراد

حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ ؕ

تر دے پورې چه واوري كلام دَ الله تعالىٰ بيا اورسوه هغه لره ځائے دَ امن دَ هغه ته.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿۶﴾ كَيْفَ يَكُوْنُ

دا په دے وجه چه دوی دا سے قوم دے چه نه پوهیږی. څنګه به وی

لِلْمُشْرِكِيْنَ عَهْدٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ رَسُوْلِهٖٓ

مشركانو لره لوظ په نيز دَ الله تعالىٰ او په نيز دَ رسول (صلى الله عليه وسلم) دَ هغه

اِلَّا الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ

مګر هغه كسان چه لوظ ورسره كړيدے تاسو په خوا (قريب) دَ مسجد حرام كښې

فَمَا اسْتَقَامُوْا لَكُمْ فَاسْتَقِيْمُوْا لَهُمْ ؕ

نو ترڅو پورې چه كلك وى دوى تاسو سره (په وعدے باندے) نو كلك اوسيږئ تاسو هم دَ دوى سره.

دَ دے نه عصمت دَ وينو او مالونو دَ هغوى دے لكه چه په حديث دَ بخارى او احمد كښې ذكر دى.

ﻼ په دے كښې دريم قسم دَ مشركينو ذكر دے چه هغوى ته مستأمنين وائي حكم ئے دا دے چه كافران كه دار اسلام ته دَ داخليدلو اجازت غواړى نو هغوى له اجازت وركول پكاردى ليكن مقصد به داوى چه هغوى په دار اسلام كښې قرآن پاك واورى چه هغه ذريعه دَ حصول دَ علم دَ توحيد ده او دا ذكر دا اهم مقصد دے او بغير دَ دے نه نورو مقصدونو دَ پاره (چه شرعًا منع نه وى) هم امن وركول جائز دى لكه پيغام راوړل، طلب دَ صلحے، راوړل دَ جزيے (دا ابن كثير ذكر كړے دى).

يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ، دا صريح دليل دے چه مسموع كلام الله دے او دا مذهب دَ سلف صالحينو دے چه متلو او مسموع او مكتوب كلام الله دے او هغه قول غلط دے چه وائي چه دا كلام لفظى دے دال دے په كلام نفسى باندے او كلام نفسى كلام الله دے. اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ. يعنى بيا ئے دَ ځپلے سرحدى پورے نه وارَوه چه ځپل وطن ته او رسى (اهل علمو وئيلے دى چه تر كال پورے دَ ديره كيدلو اجازت نشى وركيدلے او څلورو مياشتو پورے اجازت وركيدلے شى).

إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُتَّقِينَ ۝٧ كَيْفَ وَإِن يَظْهَرُوا۟

يقيناً الله تعالیٰ خوخوی متقیان (ځان ساتونکی د بے لوظئ نه) - څنګه به وی (اعتبار د لوظ د دوی)، او که دوی زور اوړشي

عَلَيْكُمْ لَا يَرْقُبُوا۟ فِيكُمْ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ۚ يُرْضُونَكُم

په تاسو باندے نو لحاظ نه کوی دوی په تاسو کښں د خپلولئ او نه د لوظ، رضا کوی تاسو

بِأَفْوَٰهِهِمْ وَتَأْبَىٰ قُلُوبُهُمْ وَأَكْثَرُهُمْ فَٰسِقُونَ ۝٨

په خُلو خپلو او انکار کوی زړونه د دوی او ډیر د دوی نافرمان دی۔

ﮐ دارد دے د اول مانع د قتال چه چا داخیال کوؤ چه مشرکین مکّه سره خو عهد شوے وؤ نو د هغوی سره قتال کول څنګه جائز شول؟

حاصل د جواب دا دے چه هغوی خپل عهد مات کړے دے او وعدۀ چه مات نه کړے شی نو د هغے د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نیز باندے هیڅ اعتبار نیشته ما سوا د هغے دویمے ډلے نه چه هغوی په خپل عهد باندے مضبوط وو نو هغوی سره په عهد (لوظ) پوره کیدے شی۔ او په دے ایت کښں حکمت د براءت ذکر کوی۔ اَلَّذِيْنَ، د دوی نه مراد هغه دی کوم چه په ﮐ کښں ذکر وؤ یا مراد د دے نه مکے والا دی چه د هغوی سره حدیبیه کښں صلح کړے شوے وۀ او عهد ئے نه وؤ مات کړے تر دوه کاله پورے بیا دوه کاله روستو ئے عهد مات کړو۔

ﮐ د دے ایت نه تفصیل د هغے صفاتو د مشرکینو شروع دے چه هغه اسباب د قتال دی او په دے ایت کښں څلور ذکر دی۔ كَيْفَ، دا اعاده ده د مخکښں کیف او فعل ئے پټ دے "كيف يكون لهم عهد"۔ إِلًّا د ابن عباس رضی الله عنهما نه اکثر راویانو روایت کړے دے چه إِلًّا په معنی د خپلولئ سره دے او د قتاده په روایت کښں په معنی د حلف سره دے او د مجاهد په روایت کښں په معنی د الله سره دے لیکن اول قول غوره دے۔ يُرْضُوْنَكُمْ، مراد د دے نه په باره د وفا د عهد کښں خبرے کول دی په باره د ایمان کښں دا سے نه دی ځکه چه دا صفات د مشرکانو دی په باره د منافقانو کښں نه دی۔

وَأَكْثَرُهُمْ، سوال، کافران خو ټول فاسقان دی نو اکثر ئے ولے اوئیل؟

جواب (۱) دلته د فاسقون نه مراد ښکاره بے لوظی کوونکی دی۔

اِشۡتَرَوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيۡلًا فَصَدُّوۡا

اخستے دے دوی په بدل د ایتونو د الله تعالیٰ کښ عوض لږ نو منع کوی دوی خلق

عَنۡ سَبِيۡلِهٖؕ اِنَّهُمۡ سَآءَ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ۝٩

د لارے د الله تعالیٰ نه. یقینًا دوی چه دی، بد دے هغه عمل چه دوی یئے کوی.

لَا يَرۡقُبُوۡنَ فِىۡ مُؤۡمِنٍ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ؕ وَاُولٰٓـئِكَ

لحاظ نه کوی دوی د هیڅ مؤمن په باره کښ د خپلولئ او نه د لوظ. او دغه کسان

هُمُ الۡمُعۡتَدُوۡنَ ۝١٠ فَاِنۡ تَابُوۡا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ

خاص دوی د حد نه تیریدونکی دی. پس که دوی توبه وایستله (د ګناهګارو نه) او پابندی یئے کوله د مانځه

وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخۡوَانُكُمۡ فِى الدِّيۡنِؕ وَنُفَصِّلُ

او ورکوو یئے زکوٰة نو رونړه ستاسو دی په دین کښ. او تفصیلی بیانوو مونږه

جواب (۲) بعضو دوی نه روستو ایمان راوړے وؤ او مراد د فاسقون نه هغه دی چه تر مرګه پورے په کفر باندے کلک وؤ.

ف په دے ایت کښ نور درے صفات ذکر دی. اِشۡتَرَوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ، د دے نه مراد دا دے چه دے مشرکانو قرانِ پاک او احکام د الله تعالیٰ پریخودلے دی او دنیا یئے غوره کړے ده. او د هر مشرک او کافر دا حال دے چه د الله تعالیٰ د دین په مقابله کښ دنیا یئے غوره کړے ده.

فَصَدُّوۡا، لازمی او متعدی دواړه احتمالونه شته یعنی ځپله منع شول یا نور خلق منع کوی د لارے د الله تعالیٰ نه.

ف دے ایت کښ دوه صفات ذکر دی.

لَا يَرۡقُبُوۡنَ، په دے کښ تکرار نیشته دے ځکه چه مخکښ خاص ذکر شوے وؤ او دا عام دے.

اَلۡمُعۡتَدُوۡنَ، دا ترقی ده په خباثت کښ یعنی صرف ترک د لحاظ نه دے بلکه ظلم ورسره هم یوځائے کوی.

الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿١١﴾ وَاِنْ نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ

احکام دَ پارهٔ دَ هغه قوم چه پوهیږی۔ او که مات کړل دوی قسمونه خپل

مِّنْۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ

پس دَ کلکوالی دَ هغے نه او طعن یې کوؤ په دین ستاسو کښی

فَقَاتِلُوْٓا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ ۙ اِنَّهُمْ لَآ اَيْمَانَ لَهُمْ

نو جنګ کوئ دَ مشرانو دَ کفر سره یقیناً دوی، نیشته هیڅ قسمونه دَ دوی

لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُوْنَ ﴿١٢﴾ اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نَّكَثُوْٓا

دے دَ پارهٔ چه دوی منع شی (دَ کفرنه). ولے جنګ نه کوئ دَ هغے قوم سره چه مات کړیدی

سلا دے ایت کښی ترغیب دے توبے ته لیکن په سلا کښی مقصد منع دَ قتال او حصول دَ عصمت دَ وینو او دَ مال وؤ دَ دے وجے نه هلته فَخَلُّوْا سَبِيْلَهُمْ ویلے وؤ او په دے ایت کښی مقصد اعتبار کول دی په عهد دَ هغوی باندے او په چا باندے چه اعتبار کیدے شی نو هغه ته رور ویلے شی دَ دے وجے نه دلته یې فَاِخْوَانُكُمْ اوئیل نو تکرار ایا تو نو کښی نیشته دے۔ وَنُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ، مراد دَ ایت نه اوصاف دَ ماتوؤنکو دَ عهد دی چه هغه علتونه دَ قتال دی او دارنګ بیا دَ صفاتو دَ توبه کوؤنکو دے۔

سلا دے ایت کښی دوه توجیه دی اول توجیه دا ده چه مراد دَ دے نه مشرکان معاهدین دی، ځکه لفظ دَ اِنْ یې راوړے دے یعنی که دغه معاهدینو دَ مودے کپوره کیدلو نه مخکښی لوظ مات کړو نو قتال ورسره کوئ - او دویمه توجیه دا ده چه مراد دَ دے نه هغه بے لوظه مشرکان دی، او اِنْ په معنی دَ اِذَا دے معنی دا ده "او کله چه دوی مات کړو لوظ خپل" بیا په دے ایت کښی درے صفات ذکر دی. دا ایت دلیل دے په دے خبره چه چا طعن اوکړو په دین اسلام کښی نو هغه کافر دے یا کافر معاهد او ذمی طعن اوکړی نو دَ هغه ذمه او امن ختم شو (خازن مدارک) طعن دا دے چه نسبت اوکړی دین ته دَ هغه څیز چه مناسب نه وی یا سپک اوګڼړی دین لره او دارنګ کنځل اوکړی پیغمبر ته یا قران پاک ته یا نورو دَ دین احکامو ته نو دا طعن کول کفر دے او دوی ته یې اماما ن دَ کفر اوئیل ځکه چه دا سے سړے بنیاد دَ کفر جوړوی او نور خلق یې تابعداری کوی. اَيْمَانَهُمْ، یه وخت

أَيْمَانَهُمْ وَهَمُّوا بِإِخْرَاجِ الرَّسُولِ وَهُمْ

قسمونه خپل او کوشش ئې کړېوو په ویستلو د رسول (صلی الله علیه وسلم) او دوی

بَدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ ۚ أَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ فَاللَّهُ أَحَقُّ

شروع اوکړه په تاسو پاندې (په جنګ کولو کښې) اول ځل. آیا یریږئ تاسو د دوی نه، پس الله تعالیٰ زیات حقدار دے

أَنْ تَخْشَوْهُ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿١٣﴾ قَاتِلُوهُمْ

چه یره اوکړئ د هغه نه ځکه چه تاسو مؤمنان یئ. جنګ کوئ د دوی سره

يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنْصُرْكُمْ

عذاب به ورکړی دوی ته الله تعالیٰ په لاسونو ستاسو او وبه شرموی دوی لره او امداد به اوکړی تاسو سره

عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ ﴿١٤﴾

په مقابله د دوی کښې او شفاء به ورکړی سینو د قوم مؤمنانو ته.

---

د عهد کښې قسم ذکر کیږی ځکه ئې ایمان اوئیلو. إِنَّهُمْ لَا أَيْمَانَ لَهُمْ، اول ئې دوی له ایمان (قسمونه) ثابت کړل او اوس ئې تربنه نفی کړل ځکه چه هر کله ئې اَیْمَان مات کړل نو پښان د نیشت شول.

سلا په دے آیت کښې نور دوه صفات دی او ترغیب دے مؤمنانو ته په قتال د هغے مشرکانو سره چه په هغوی کښې دا صفات موجود دوی او ترغیب په پنځو طریقو سره دے. (۱) لفظ أَلَا د پاره د تحضیض (۲) ذکر د دوه علتونو (۳) اتخشونهم (۴) فالله احق (۵) ان کنتم مؤمنین. وَهَمُّوا، هم په معنی د کوشش کولو دے ځکه صرف هَمْ د ګناه خوګناه نه دے. او إِخْرَاج نه مراد اخراج دے د مکے نه او په هغه هَمْ کښې دوی کامیاب شول یا اخراج د مدینے نه او په دے کښې دوی کامیاب نه شول.

سلا په دے آیت کښې اعلان قتال دے پس د بیان د اسبابو د هغې نه او د هغې څلور فائدے ذکر کوی. يُعَذِّبْهُمْ، مراد د دے نه قتل دے. وَيُخْزِهِمْ شامل دے قید کولو او ذلیل کولو ته. يَشْفِ، مراد د شفاء نه خوشحالی د زړونو ده.

وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ ۗ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ

او لرې به کړي غصّه د زړونو د کافرانو نه - او مهرباني به اوکړي الله تعالی په هغه چا باندې

مَن يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿۱۵﴾ أَمْ حَسِبْتُمْ

چه او يې غواړي (د توفيق د ايمان) او الله تعالی پوهه د حکمتونو والا دے - آيا گمان کوئ تاسو

أَن تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا

چه پرېخودے شئ (بغير د امتحان نه) او ترا اوسه نه دي ښکاره کړي الله تعالی هغه کسان چه جهاد يې کړيوي

مِنكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِن دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ

ستاسو نه او نه يې وي نيولے سيوا د الله تعالی نه او نه د رسول د هغه نه

وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ۚ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿۱۶﴾

او نه د مؤمنانو نه رازدار دوست - او الله تعالی خبردار دے په هغه عملونو چه تاسو يې کوئ -

مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا مَسَاجِدَ اللَّهِ

نشي قبليدے د مشرکانو د پاره چه آبادوي دوي جوماتونه د الله تعالی

ع ۸

۱۵ په دے آيت کښ دوه فائدے د قتال ذکر دي - او ضمير د قُلُوبِهِمْ کافرانو ته راجع دے -

وَيَتُوبُ، دا کلام مستأنف دے ځکه مرفوع دے -

۱۶ دے کښ ترغيب دے جهاد ته، مطلب يې دا دے چه الله تعالی مؤمنانو لره بغير د امتحانه نه پرېږدي لکه د دوی امتحان به په دوه طريقو سره وي يو جهاد دويم براءت د مشرکينو نه -

وَلَمْ يَتَّخِذُوا، دا جمله يې د دے وجے نه راوړه چه په دے سورت کښ اعلانِ براءت وؤ او براءت وائي دے ته چه هغوی سره تعلق پرېږدي -

وَلِيجَةً، فراء وئيلي دي چه وليجه د راز دوستانے ته وئيلے شي او امام راغب وئيلي دي وليجه هر هغه څوک کيدے شي چه انسان په هغه باندے اعتماد کوي -

شٰهِدِيْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ اُولٰٓئِكَ

اقرار کوونکي دي په ځانونو خپلو باندے په کفر سره. دغه کسان

حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ وَفِي النَّارِ هُمْ خٰلِدُوْنَ ﴿۱۷﴾

برباد دي عملونه د دوی او په اور کښ به دوی همیشه وي.

اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

یقینًا آبادوي جوماتونه د الله تعالیٰ هغه څوک چه ایمان لري په الله تعالیٰ او په ورځ

الْاٰخِرِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ وَلَمْ يَخْشَ

روستنۍ او پابندي کوي د مانځه او ورکوي زکوٰة او نه یریږي د هیچانه

اِلَّا اللّٰهَ فَعَسٰٓى اُولٰٓئِكَ اَنْ يَّكُوْنُوْا مِنَ

سیوا د الله تعالیٰ نه. پس لائق ده چه هم دغه کسان به وي د

الْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۸﴾ اَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَآجِّ

هدایتوالو نه. آیا ګرځئ تاسو او به څښکول په حاجیانو

۱۷ په دے آیت کښ جواب دے د دویم مانع د قتال. چه سوال راتلو چه دا مشرکان خو خدمت کوي د مساجدو او خاصکر د مسجد حرام او په حاجیانو باندے او به څښکوي نو د دوی سره قتال ولے جائز دے؟

نو جواب ورکړے شو چه د مشرکانو عملونه دغسے برباد وي. شٰهِدِيْنَ اقرار د کفر دا دے (په ژبه سره) چه خپل معبودانو ته مخلوق وائي او بیا هم الله تعالیٰ سره شریکوي او اقرار په عمل سره دا دے چه کارونه د شرک ښکاره کوي لکه سجده او دُعا د غیر الله. مَاكَانَ کښ اشاره ده چه مؤمنان به مشرکانو ته د جوماتونو د جوړولو تمکین (طاقت) نه ورکوي. مَسٰجِدَ اللّٰهِ جمع یې ذکر کړه د پاره د تعمیم د حکم ټولو مساجدو ته.

۱۸ دے آیت کښ صفات د مؤمنانو ذکر کړي چه د دے وجے نه د هغوی آبادول جوماتونو لره قبول دي. او آبادول دوه قسمه دي یو ظاهري آبادي دا هم عبادت دے د هغے صفائي او په هغے کښ رڼاکول وغیره. دویم آبادول د جوماتونو په

وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ آمَنَ بِاللَّهِ

او آبادول د مسجد حرام پشان د هغه چا چه ایمان لري په الله تعالی

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ

او په ورځ روستنۍ او جهاد کوي په لار د الله تعالی کښی.

لَا يَسْتَوُونَ عِنْدَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي

نه دي برابر دوی په نیز د الله تعالی . او الله تعالی نه ورکوی ثواب

الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٩﴾ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا

قوم ظالمانو ته . هغه کسان چه ایمان یې راوړے دے او هجرت یې کړیدے

عبادت سره دی په عقیده د توحید او په طریقه د سنت باندے . وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ خشیت هغه یره ده چه سره د تعظیم نه وی او داخاص ده په الله تعالی پورے.
أَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ ، په دے کښی اشاره ده چه نفل کارونه (لکه تعمیر د مسجد) روستو دے د اداکولو د فرضونو چه فرض بدنی وی او مالی وی.
وَلَمْ يَخْشَ کښی اشاره ده اخلاص ته په ټولو عبادتوکښی کړدے وجے نه روستو ذکرکړو. فَعَسَىٰ ، عسیٰ د الله تعالی د طرف نه د وجوب (یقین) دپاره وی لیکن هرکله چه اهتداء نه مراد قبولیت دے او د هغه علم د الله تعالی سره دے نو د دے وجے په لفظ د عسیٰ سره ذکرکړو.
سلسله دا آیت هم د مخکښی جواب سره متعلق دے ، حاصل دادے چه نیک عملونه د مشرکانو برباد دی دے وجے نه هغوی په دغے عمل سره د ایمان والو سره نه شی برابر کیدلے . او په دے آیت کښی رد دے په هغه چا باندے چه فخر کوی په نیک کارونو باندے لکه جوماتونه جوړول او میلاتونه کول سره د عقیدے د شرک او کفر نه.
سِقَايَةَ ، د دے نه مخکښی لفظ د اهل پټ دے یا په كَمَنْ سره لفظ د ایمان پټ دے.
لَا يَهْدِي ، مراد د هدایت نه قبولیت او ثواب ورکول دی یا مراد د دے بصیرت او پوهه ده د پاره د فرق کولو د خیر او شر.

وَجٰهَدُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ

او جهاد ئې کړیدے په لار د الله تعالیٰ کښ په مالونو خپلو سره

وَاَنْفُسِهِمْ ۙ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ

او په ځانونو خپلو سره، لوئے درجے والا دی په نیز د الله تعالیٰ.

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۲۰﴾ یُبَشِّرُهُمْ

او دغه کسان خاص دوی کامیاب دی. زیرے ورکوی دوی لره

رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ

رب د دوی په مهربانئ خپلے سره او په رضامندئ خپلے سره او په جنتونو سره

لَّهُمْ فِیْهَا نَعِیْمٌ مُّقِیْمٌ ﴿۲۱﴾ خٰلِدِیْنَ فِیْهَآ

چه دوی لره به په هغے کښ نعمتونه همیشه وی، دوی همیشه به وی په هغے کښ

اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِیْمٌ ﴿۲۲﴾

همیشه. یقیناً د الله تعالیٰ سره دے اجر (بدله) لوئے،

یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْٓا اٰبَآءَكُمْ

اے ایمان والو مه نیسئ پلاران خپل

سے دا ایت علت دے یا تفسیر دے د مخکښ ایت د پاره چه په هغے کښ فرمائیلے وو لا یستوون. او په دے کښ بل جانب مرجوح نه دے ذکر کړے محکه چه کالعدم دے.

سے سے په دے دوا رو ایتونو کښ اخروی زیرے دے او دا تفسیر دے د اَلْفَآئِزُوْنَ د پاره.

بِرَحْمَةٍ، مراد د دے نه بچ کول دی د هر عذاب نه لکه په سورة انعام سے او مؤمن سے کښ دی یا مراد د دے نه قبلول د عملونو د دوی دی.

وَإِخْوَانَكُمْ أَوْلِيَاءَ إِنِ اسْتَحَبُّوا الْكُفْرَ عَلَى

او رونړه خپل دوستان که خوخوی دوی کفر لره په

الْإِيمَانِ ۚ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَأُولَٰئِكَ

ایمان باندے۔ او چا چه دوستانه اوکړه د دوی سره ستاسو نه پس دغه کسان

هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٣﴾ قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ

خاص دوی ظالمان دی ته اووایه که دی پلاران ستاسو

وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ

او ځامن ستاسو او رونړه ستاسو او بیبیانے ستاسو او قبیلے ستاسو

وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ

او هغه مالونه چه ګټلی تاسو هغے لره او تجارت چه یریږئ تاسو

كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ

د کوپه کیدلو د هغے نه او هغه کورونه چه خوخوئ تاسو هغے لره ډیر خواږه دی تاسو ته

۲۳ داجواب دے د دریم مانع د قتال۔ سوال دا وو چه دے مشرکانو سره زمونږه خپلولی ده او صله رحمی ساتل خو واجب وی نو دوی سره قتال ولے واجب شو؟

نو جواب اوشو چه د مشرکانو سره دوستانه کول اګرچه خپلوان وی حرامه ده او د دوستانے تفسیر دا دے چه په کار د کفر او د شرک کښ د هغوی تابعداری کوی یا په دغے کارونو کښ د دوی امداد کوی یا د هغے د وجے نه جهاد پریږدی

فائده: په دے ایت کښ یے ذکر د ځامنو ځکه نه دے کړے چه ځامن تابع د پلار وی۔ نو پلار د ځوی سره دوستانه په طریقه د تابعداریٔ د هغه نه کوی۔

او د دے ایت په تفسیر کښ د عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه څوک په شرک باندے رضا شو نو هغه مشرک دے۔

مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَجِهَادٍ فِيْ سَبِيْلِهٖ

دَ الله تعالیٰ نه او دَ رسول (صلی الله علیه وسلم) دَ هغه نه او دَ جهاد نه په لاره دَ هغه کښې

فَتَرَبَّصُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ۗ وَاللّٰهُ

پس انتظار اوکړئ ترد دے چه راوړی الله تعالیٰ فیصله خپله، او الله تعالیٰ

لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۴﴾ لَقَدْ

توفیق نه ورکوی قوم نافرمان ته. یقیناً

نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِيْ مَوَاطِنَ كَثِيْرَةٍ ۙ وَّيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ

امداد کړے دے تاسو سره الله تعالیٰ په ځایونو ډیرو کښې او په ورځ دَ حنین

اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْـًٔا

کله چه خوشحاله کړئ تاسو ډیروالی ستاسو. پس فائده ئې درنکړه تاسو ته هیڅ فائده

ع ۳ / ۸ / ۹

سلا دا آیت هم دَ مخکښې آیت سره تعلق لری او دَ مخکښې نه ترقی ده په بیان کښې ځکه چه مخکښې ئې ولایت منع کړو دَ کافرانو سره او په دے آیت کښې هر قسم تعلق ساتل دَ هر چا سره په مخالفت دَ الله او دَ رسول کښې منع کوی. او زورنه ده هغه چا ته چه دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ حکم په مقابله کښې خپلوان یا دَ دنیا څیزونه غوره کوی دا رنګ دَ هغوی دَ مینے دَ وجے نه هجرت او جهاد پریږدی.

کشاف وئیلی دی چه دا ډیر سخت آیت دے په بندګانو باندے یعنی هر مسلمان دے دَ ځان سره انصاف اوکړی چه آیا دے خپل ځان لره دَ الله تعالیٰ په دین کښې دا سے کلک موږی لکه چه دَ دے آیت تقاضا ده. او رازی وئیلی دی دا آیت دلیل دے چه یو طرف ته دَ دین یو مصلحت وی او بل طرف ته دَ دنیا بے شماره مصلحتونه وی لیکن په مسلمان باندے فرض دے رعایت دَ مصلحت دَ دین او ترجیح دَ دین په دنیا باندے. وَجِهَادٍ فِيْ سَبِيْلِهٖ، دَ دے تخصیص په دے وجے سره اوشو چه دا ذریعه دَ إعلاء او غلبے دَ دین الٰهی ده. اَمْرِهٖ، مراد دَ دے نه عذاب دے دَ دنیا په مختلفو طریقو سره. الْفٰسِقِيْنَ، مراد هغه خلق دی چه بهکاره وتلی دی دَ طاعت دَ الله او دَ رسول نه او توبه ئې نه ده کړے. او لَا يَهْدِي نه مراد دَ عذاب نه بچ کول دی.

وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ

او تنګه شوه په تاسو باندے زمکه سره د ارتوالی نه بیا

وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِينَ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ أَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ

او ګرځیدئ تاسو (د میدان جنګ نه) شاکوونکی- بیا را اولیږله الله تعالیٰ تسلّی د خپل طرفه

عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَنزَلَ

په رسول (صلی الله علیه وسلم) خپل او په مؤمنانو باندے او را اولیږلے ئے

جُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا وَعَذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُوا

داسے لښکرے چه نه لیدلے تاسو هغه او عذاب ئے ورکړو کافرانو لره-

۲۵ ربط د مخکښ سره دادے لکه چه اعتماد په دغه ذکر کړے شوے څیزونو باندے منع دے نو دا رنګ اعتماد کول په خپل ډیروالی باندے هم منع دے او په دے ایت کښ زیرے دے په امداد د الله تعالیٰ سره د پاره د ترغیب د جهاد، دویم مقصد دا دے چه اعتماد په خپل ډیروالی باندے مه کوئ بلکه توکل کوئ په الله تعالیٰ-

مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ، مراد د دے نه مغازی (غزاګانے) دی. مؤرخینو وئیلے دی چه اتیا مغازی په ټوند د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ موجود شول او په روایت د بخاری کښ دی چه نبی صلی الله علیه وسلم پخپله په نولس ۱۹ غزاګانو کښ شریک شوے دے-

وَيَوْمَ حُنَيْنٍ، د دے تخصیص ئے د دفع د وهم د وجے نه اوکړو که څوک وهم اوکړی چه په حنین کښ خو هزیمت شوے دے نو معلومه شوه چه نصرت الٰهی نه وو نو د هغے جواب ئے اوکړو- او حُنَيْن د مکے او د طائف په مینځ کښ وادی ده او په مقابله کښ د هوازن او ثقیف قبیلو څلور زره کسان وو چه هغوی د غشو ویشتلو ډیر تکړه وو غزوه د حنین د فتح مکے نه روستو وه او لښکر د مؤمنانو دولس زره کسان وو لیکن په هغوی کښ نوی مسلمانان وو چه دا د ا دابو نه پوره خبر نه وو نو د دے وجے نه د جنګ په ابتداء کښ تنګ شول او میدان ئے پریښودلو-

وَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۶﴾ ثُمَّ يَتُوْبُ اللّٰهُ

او دا سزا ده دَ کافرانو - بیا مهربانی اوکړه الله تعالیٰ

مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ

روستو دَ دے (غلبے) نه په هغه چا چه اوئے غوښتل - او الله تعالیٰ بخونکے

رَّحِيْمٌ ﴿۲۷﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ

رحم کوونکے دے - اے ایمان والو یقیناً مشرکان

نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ

پلیت دی نو نه دے نیژدے کیږی مسجد حرام ته روستو د

عَامِهِمْ هٰذَا ۚ وَاِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ

دے کال نه (نهم کال دَ هجرت) - او که یریږئ تاسو دَ فقیرئ نه نو زر دے چه

يُغْنِيْكُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖٓ اِنْ شَآءَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

مالدار به کړی تاسو لره الله تعالیٰ دَ فضل خپل نه که اوغواړی - یقیناً الله تعالیٰ

۲۶ دے ایت کښې ذکر دَ امداد دَ الله تعالیٰ دے په ورځ دَ حنین پے روستو حالت چه الله تعالیٰ ملائیک رااولیږل او کافران ئے مغلوب کړل-

علیٰ رَسُوْلِهٖ، دا سے په سورة فتح ۲۶ کښې هم دی او په دے کښې اشاره ده چه رسول هم دَ الله تعالیٰ سکینے ته محتاج دے اګرچه په هغه باندے په دے واقعه کښې هیڅ اضطراب نه وو راغلے صرف خفګان ورباندے راغے دَمرګرو دَ تللو دَوجے نه.

وَعَذَّبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا، ځنې ئے قتل کړل او ډیرئے قید کړل بیا روستو دَ ایمان راوړلو نه ئے واپس ورکړل-

۲۷ دے کښې اشاره ده چه پس دَ جنګ نه ډیرو کافرانو ته توفیق دَ ایمان ورکړے شو دا رنګ په دے ایت کښې ځنې دَ صحابو کرامو ته هم اشاره ده.

يَتُوْبُ حکایت دَ حال ماضیه دے دَ پاره دَ دے چه راتلونکے زمانے ته شامل شی،

عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۸﴾ قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

پوهه دے حکمت والا دے۔ جنګ کوئ د هغه کسانو سره چه ایمان نه لري

بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَلَا يُحَرِّمُوْنَ

په الله تعالیٰ باندے او نه په ورځ روستنۍ (په شان د ایمان د صحابه کرامو) او حرام نه ګنړي

مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ

هغه څيز چه حرام کړے الله تعالیٰ او رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغه او تابعداري نه کوي د دين

الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حَتّٰى

حق د هغه کسانو نه چه ورکړے شوے دے ورته کتاب تر دے

۲۸ په دے ایت کښ د براءت یو طریقه ذکر ده، او هغه دا ده چه مشرکانو له د حج او د عمرے او د حرم د داخلیدلو نه منع کړئ او د هغے علت ذکر شو چه دوی نجس (پلیت) دی۔ اکثرو علماؤ وئیلی دی چه مراد د نجاست نه نجاست باطنی دے چه هغه شرک دے او د بعضو اهلِ علمو په نیز باندے مراد د نجاست نه نجاست ظاهری کیدان دے۔

فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ، مراد د دے نه د حج او عمرے او طواف نه منع کول دی او مسجد حرام ته او نورو مساجدو ته داخلیدل په نیز د احنافو جائز دی او په نیز د امام شافعی صرف مسجد حرام ته منع دی نورو مساجدو ته جائز دی او په نیز د امام مالک ټولو مساجدو ته منع دی۔ غوره دا ده چه مراد د مسجد حرام نه ټول حرم دے او د مشرکانو کافرانو داخله حرم ته منع ده۔

بیا په دے ایت کښ جواب دے د څلورم مانع د قتال۔ سوال دا وو چه د مشرکانو د طرف نه موتږ له مالونه راځی نو که هغوی سره قتال کوو او د حرم نه ئے بند کړو نو هغه مالونه به بند شی؟

نو جواب او شو چه پرواه مه کوئ الله تعالیٰ به د بل طرف نه څه سبب جوړ کړی اِنْ شَآءَ، دا دلیل دے په دے باندے چه مالداری او غریبی په اختیار د بندګانو کښ نه دی بلکه دا اختیار د الله تعالیٰ دے۔

يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿۲۹﴾

چه ورکوی جزیه (ټیکس) په خپل لاس سره او دوی به ذلیلان وی۔

وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ ابْنُ اللّٰهِ وَقَالَتِ

او وائی یهودیان عزیر (علیه السلام) ځوئے د الله تعالیٰ دے او وائی

النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ

نصاریٰ چه عیسیٰ (علیه السلام) ځوئے د الله تعالیٰ دے، دا وینا د دوی ده

سلا د دے ایت نه دویمه حصه د سورت ده تر اوو دیرش ایت پورے او په دے حصه کښ ذکر د اهلِ کتابو کافرانو دے او د هغوی د قتال د پاره دیارلس[۱۳] وجے ئے ذکر کړے دی۔ په دے ایت کښ د هغے نه درے ذکر دی، او دے ایت نه دا معلومه شوه چه د قتال د دے کافرانو نه مقصد کمزوری کول د دوی دی توکه دار اسلام کښ اوسی او جزیه ورکوی یا د دار اسلام نه بهر وی لیکن مسلمانانو سره صلحه اوکړی په جزیه ورکولو نو دا جائز دی او تفصیلی احکام د جزیئے په احادیثو کښ او په کتابونو د فقهه کښ ذکر دی۔

وَهُمْ صٰغِرُوْنَ، دا دلالت کوی په دے خبره چه اهل ذمه په دار اسلام کښ به د عزت په طور نه شی اوسیدلے۔

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ، مراد د دے نه نفی د ایمان شرعی ده چه هغه ایمان د صحابو دے او یهودیان عقیده د تجسیم او تشبیه لری او نصاریٰ عقیده د حلول او تثلیث لری او بعث د ارواحو بغیر د اجسادو نه منی او جنت د ځان د پاره خاص کوی۔

مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ، یعنی تحریمات د قران او د سنت نه منی یا د تورات او انجیل هم نه منی په هغے کښ ئے تحریف کړے دے۔

عَنْ يَّدٍ، په خپل لاس به ئے ورکوی او نقد به ادا کوی او په زور سره به ورکوی دے ته عَنْ يَّدٍ وئیلے شی۔

وَهُمْ صٰغِرُوْنَ، دا دلیل دے چه معاهد او اهلِ ذمه به دار اسلام کښ په عزت سره نه اوسیږی اهلِ علمو وئیلے دی چه په ښارونو کښ به نه اوسیږی د ښکے ابادۍ به نه کوی د اسلامی حکومت په فوج کښ او نورو اعلیٰ عهدو باندے به نه مقرریږی۔

بِأَفْوَاهِهِمْ يُضَاهِئُونَ قَوْلَ الَّذِينَ

په خلو د دوی (بے دلیله) برو شان والے کوی دوی د وینا د هغو کسانو سره

كَفَرُوا مِنْ قَبْلُ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ أَنَّىٰ

چه کفر یئے کریدے د دوی نه مخکښ۔ لعنت دے اوکړی الله تعالیٰ په دوی باندے، څه رنګه

يُؤْفَكُونَ ﴿٣٠﴾ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ

اوړولے کیږی دوی د حق نه۔ جوړ کړیدی دوی ملیان خپل او پیران خپل

تشریح: په دے آیت کښ نور څلور اسباب د قتال د هغوی ذکر دی۔ اوشرک د یهودو داوو چه عزیر علیه السلام ته یئے ابن الله وئیلو او شرک د عیسا یانو داوو چه عیسیٰ علیه السلام ته یئے ابن الله وئیلو۔ او په دوی کښ د عوامو عقیده داوه چه دوی حقیقتاً ځامن د الله تعالیٰ دی۔ او د خاصو خلقو عقیده داوه چه دوی د الله تعالیٰ د پاره پشانته د نازولو ځامنو دی چه پلار د هغوی خبره منی او هغوی ته یئے اختیارات سپارلے وی او دا دواړه عقیدے د کفر دی۔ او د دے اُمت په جاهلانو کښ دا دویمه عقیده په کثرت سره موجود ده۔ ابن عطیه په محرر الوجیز کښ وئیلی دی چه دا ځوئے والے د محبت او د شفقت دے حقیقی نه دے او نیشا پوری وئیلی دی چه هر کله عزیر علیه السلام یهودو ته ډیره زمانه روستو تورات په یادو باندے اولوستلو نو هغوی عقیده اوساتله چه دے مظهر د صفت د علم د الله تعالیٰ دے یعنی دے یئے علیم بکل شئ ګرځولے دے او هر کله چه عیسیٰ علیه السلام معجزات پیش کړل نو نصاراؤ عقیده اوساتله چه دۂ ته الله تعالیٰ صفت د تصرف د کل شئ ورکړیدے او مظهر د صفت د قدرت او تصرف یئے ګرځولے دے یعنی اثر د الوهیت په عزیر او عیسیٰ علیهما السلام کښ ښکاره دے لکه چه اثر د پلار په ځوئی کښ ښکاریږی

قَوْلُهُمْ بِأَفْوَاهِهِمْ، مراد د دے نه وینا بے دلیله ده۔ قَوْلَ الَّذِينَ كَفَرُوا، مراد د دے نه هغه اِمیان کافران دی چه هغوی ملائکو ته بنات الله وئیل (لونړه د الله تعالیٰ) یا مراد د دینه مشران د دوی دی چه دوی په کفر کښ د هغوی تقلید کوؤ یا مقصد دا دے چه موجوده یهود او نصاریٰ تقلید کوی د مشرانو ګمراهانو۔ دارنګ مراد د دینه یو ذیه او براهمه کافران دی چه د یهود او نصاراؤ نه مخکښ تیر شویدی او هغوی د بوذا او د برهما په باره کښ عقیده ساتله چه دوی ځامن د الله تعالیٰ دی (تاریخ ابو زهره)۔

قَاتَلَهُمُ اللَّهُ، دا دُعاء شر ده (خیرے) او مراد د دے نه لعنت دے۔

اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ ۚ

اختیارمن (د احکامو د حلال وحرام) سیوا د الله تعالیٰ نه او مسیح ځوئے د مریم

وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ

او نه دے کړے شوے حکم دوئ ته مګر د دے خبرے چه بندګی د دے خاص کړی د معبود کار یو،

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۱﴾

نیشته حقدار د بندګئ سیوا د هغه نه. پاک دے الله تعالیٰ د هغے نه چه دوی ورسره څه شریک جوړ وی.

۳۱ په دے ایت کښ نور اسباب د قتال ذکر دی. اَحْبَار هغه علماؤ ته وائی چه الفاظ او معنی په ښائسته طریقے سره راوړی. او رُهْبَان هغه کسانو ته وائی چه یره کوی د الله تعالیٰ نه او خپل وخت او عمل خاص د الله تعالیٰ د پاره خرچ کوی. لیکن په دے ایت کښ چه اضافت د دوی ئے ضمیر د هغوی ته اوکړو دا دلیل دے په دے باندے چه مراد د دے نه ناکاره مُلایان او پیران دی چه هغوی به دوی ته شرک او کفر او بدعات ښائسته کول او وئیل به ئے چه دا دین دے. اَرْبَابًا، مراد د دے نه دا نه دے چه دوی ملایان او پیران خدایان ګنړل. دا رنګ هغوی لره عبادت ئے هم نه دے کړے لیکن مراد دا دے که هغوی به دوی لره یو حرام څیز جائز کوو نو دوی به جائز ګنړلو او که یو حلال څیز به ئے حراموله نو دوی به حرام ګنړلو لکه دا رنګ حدیث د عدی ابن حاتم کښ راغلے دی چه ترمذی روایت کړے دے نو د دینه دا معلوم شوه چه د ملایانو او د پیرانو وغیرۀ تقلید کول په خلاف د حکم شرعی کښ شرک دے. او معلومه شوه چه رب په معنی اختیارمند د حکم سره دے او دیته شرک فی الحکم او فی التشریع وئیلے کیږی او لفظ د یشرکون په دے دلالت کوی. او امام رازی په تفسیر کښ د ابوالعالیه نه نقل کړیدی چه دوی به هر کله په کتاب د الله کښ داسے حکم اومندلو چه د قول د احبارو او رهبانو نه به مخالف وو نو دوی به قول د کتاب الله پریخودلو او د هغوی قول به ئے اخستلو بیا ئے ورپسے ذکر کړیدی چه داسے حال زمونږ د زمانے د مقلدینو هم دے چه د دوی د مذهب نه خلاف ایت یا حدیث دوی ته اولوستلے شی نو هغے ته التفات نه کوی.

وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ، دا ئے جدا ځکه ذکر کړو چه هغه ئے د الله تعالیٰ سره صرف په عبادت کښ شریک کړے وو نه په تابعدارئ کښ بلکه د هغه تابعداری ئے

يُرِيدُونَ أَن يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ

کوشش کوی دوی چه مړه کړی رنړا د الله تعالیٰ په خپلو خلو سره

وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَن يُتِمَّ نُورَهُ وَلَوْ كَرِهَ

او نه غواړی الله تعالیٰ مګر دا خبره چه پوره کړی رنړا خپله اګرکه بد یې ګڼړی

الْكَافِرُونَ ﴿٣٢﴾ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ

کافران۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه رالیږلے یې دے رسول خپل

بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ

په هدایت سره او په دین حق سره دے دپاره چه غالب یې کړی په دینونو

كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

ټولو باندے اګرکه بد یې ګڼړی مشرکان۔ اے ایمان والو

پریښودلے وه او دا شرک فی الالوهیت دے او دا دواړه قسمه شرکونه د دے اُمت په جاهلانو کښې هم موجود دی۔ فائده: دا ایت دلیل دے په دے خبره چه کتابی عمل د شرک کوی اګرچه هغې ته شرک نه وائي نو دے مشرک دے۔

۳۲ دا بل سبب د قتال دے۔ نُورَ اللَّهِ نه مراد دین توحید دے۔ او بِأَفْوَاهِهِمْ نه مراد بے دلیله خبرے دی۔ يُرِيدُونَ، مراد د اراده نه کوشش کول دی او دا سے په سورة صف ۸ کښې هم دی۔ أَن يُطْفِئُوا، بغیر د لام نه یې ذکر کړے دے اشاره ده چه نور (رنړا) مړکول د دوی اصل مقصد دے۔

۳۳ دے ایت کښې بیان د اِتمام د نور دے او بیان د صداقت د اخری پیغمبر دے د هُدَىٰ نه مراد اصول او عقائد دی۔ او دِينِ الْحَقِّ احکام او فروع دی۔ لِيُظْهِرَهُ دا ضمیر یا راجع دے دین ته، معنیٰ دا ده چه دین اسلام لره په ټولو دینونو غالب کوی په اعتبار د دلیلونو سره غالب دے په هره زمانه کښې او په اعتبار د تسلّط سره غالب به وی په زمانه د نزول د عیسیٰ علیه السلام کښې یا مراد د دے نه غلبه د دین ده په جزیرة العرب کښې او دا په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم کښې موجود شوے وه۔ یا دا ضمیر راجع دے رسول الله صلی الله علیه وسلم ته معنیٰ

إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ

يقيناً ډير دَ مليانو نه او پيرانو نه خامخا خوري

أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن

مالونه دَ خلقو په ناروا طريقه او منع كوي خلق دَ

سَبِيلِ اللَّهِ ۗ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ

لارے دَ الله تعالىٰ نه، او هغه كسان چه جمع كوي سرۀ زر

وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

او سپين زر او نه خرچ كوي هغه په لارے دَ الله تعالىٰ كښ

فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٤﴾ يَوْمَ يُحْمَىٰ

نو زيرے وركړه دوی لرۀ په عذاب دردناك سرۀ. په هغه ورځ چه ګرمولے به شي

داشوه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم له خبر وركوی په ټول دين اسلام باندے
او دا سے ايت په سورة صف ۹ او سورة فتح ۲۸ كښ هم دے. فائده: د اول ايت
فاصله په لفظ د كافرون سرۀ ده او د دے ايت فاصله په لفظ د مشركون سرۀ ده
ځكه چه اول ايت كښ لفظ د نور دے او مقابل د نور تيارۀ ده. او كفر تيرے ته وائي
او په دے ايت كښ هدای توحيد دے او مقابل د هغے مشركان دي.
۳۴ ربط دا دے چه مخكښ ايا تونو كښ د دوی دشمنی د اسلام سرۀ ذكر كړه نو په دے
ايت كښ مؤمنانو ته تنبيه وركوی د هغوی د مشابهت نه په ذكر د نورو قبيح صفتونو
سرۀ چه هغه حرص د مال او ګمراه كول د خلقو او بخل دی او دا نور اسباب د قتال دی.
مراد د كَثِيرًا نه هغه مليان او پيران دي چه په ايت يوديرش كښ ذكر شول.
لَيَأْكُلُونَ، مراد د اكل نه اخستل او حاصلول دی ليكن لوئے مقصد د هغے خوراك دے
د دے وجے نه تعبير ئے په اكل سرۀ اوكړو او دا رنګ په دے تعبير كښ ډيرۀ بدی ده
چه دوی د ګيډے د پارۀ دين برباد كړے دے. النَّاسِ نه مراد د دوی مقلدين او
مريدان دي چه په ۳۱ كښ ذكر شول. بِالْبَاطِلِ، باطل نه مراد هغه ټولے طريقے
دی د مال د حاصلولو چه د شرعے نه خلاف وی او هغه خلقو ته ثواب ښكارۀ كوی لكه

عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ

دغه خیزونه په اور د جهنم کښ نو داغلے کیږی به په هغے سره تندی د دوی

وَجُنُوْبُهُمْ وَظُهُوْرُهُمْ ؕ هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ

او اړخونه د دوی او شاګانے د دوی. (وئیلے کیږی به) چه دا هغه شے دے چه جمع کړیوو تاسو

لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ﴿۳۵﴾

د ځانونو ستاسو د پاره نو اوڅکئ سزا د هغے چه تاسو جمع کول.

اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوْرِ عِنْدَ اللّٰهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا

یقینًا شمار د میاشتو په نیز د الله تعالیٰ دولس میاشتے دی

رشوتونه، اپے، تذرانے وغیره. سَبِيْلِ اللّٰهِ نه مراد توحید، سنت او قرآن دے. وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ، دا هم عطف دے په مخکښ باندے او صفت د احبار او رهبان دے او مراد د مال جمع زکوٰة او واجبات نه ورکول دی اګرچه مالدار وی او دا قول د جمهور صحابه کرامو دے سیوا د ابوذر رضی الله عنه نه لیکن تائید د دے د ابو داؤد حدیث دے د عمر رضی الله عنه چه هغه د دے تفسیر د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوتپوسلو او هغه جواب ورکړو حاصل د جواب دا وو چه الله تعالیٰ چه په زکوٰة کښ څلویښتمه او عشر مقرر کړے دے او میراث ئے د ورثو حق ګرځولے دے دا دلیل دے چه زیاتی مال جمع کول جائز دی. وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا، ها ضمیر کنوز او اموال ته راجع دے. فائده: دے ایتونو کښ اګرچه صفات د یهودیانو او د نصاریٰ دی لیکن د دے امت هغه ملیان پکښ هم داخل دی چه په هغوی کښ دا درے صفات وی. حدیث د بخاری په دے باندے دلیل دے چه په هغے کښ دا الفاظ دی "نزلت فینا وفیهم" (دا ایت نازل شوے دے زمونږه په باره کښ او د دوی په باره کښ) او دارنګ ابن کثیر وئیلے دی چه په دے کښ تحذیر د ټولو علماءِ سوء او ګمراه پیرانو نه دے. او رازی په تفسیر کښ د دے زمانے د علماء سوء بد اخلاق ذکر کړیدی. ۳۵ دے ایت کښ بیرته اخروی ذکر ده د پاره د دغه مخکښ صفاتو والو او په دے ایت کښ دا درے اندامونه ذکر دی ځکه چه په وخت د لیدلو د فقراؤ کښ د دوی تندے تریو شو او بیا په ئے اړخ بدلولو نو بیا به ئے شا ګرځوله. او بله وجه دا ده چه دا کنایه ده د احاطے د ټولو طرفونو نه په دے کښ هم عَلَيْهَا او بِهَا ضمیرونه کنوز او اموال ته راجع دی.

فِیْ كِتٰبِ اللّٰهِ یَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

په حکم د الله تعالیٰ کښې د هغه ورځ نه چې پیدا کړې دی اسمانونه او زمکه

مِنْهَاۤ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ؕ ذٰلِكَ الدِّیْنُ الْقَیِّمُ ۙ۬

د هغې نه څلور میاشتې د عزت دی. دا دین کلک دے

فَلَا تَظْلِمُوْا فِیْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا

نو مه کوئ ظلم په دے میاشتو کښې په ځانونو خپلو باندے او جنګ کوئ

الْمُشْرِكِیْنَ كَاۗفَّةً كَمَا یُقَاتِلُوْنَكُمْ كَاۗفَّةً ؕ

د مشرکانو تولو سره لکه چې جنګ کوی دوی تاسو تولو سره

وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِیْنَ ﴿۳۶﴾ اِنَّمَا النَّسِیْٓءُ

او پوهه شئ چې یقینًا الله تعالیٰ ملګرے د متقیانو دے. یقینًا روستو کول (د عزت د میاشتو)

ف۳۶ په دے ایت کریمه کښې هم رد دے په اهل کتابو باندے چه د هغوی په نیز باندے په کال کښې د دولسو میاشتو نه څه ورځے زیاتے وی او بعض کلونو کښې د هغوی په نیز دیارلس میاشتے وی او دا سبب دے د ګډوډ کولو د حج او د رمضان دا رنګے رد دے په مشرکین عرب باندے چه هغوی د حرمت په میاشتو کښې تبدیلی کوله او اهل کتابو هم د هغوی سره په دے کښې اتفاق کوو- الدِّیْنُ الْقَیِّمُ، قرطبی وئیلی دی چه حق دا دہ چه دین په معنٰی مشهور سره دے او قَیِّمُ په معنی د مستقیم سره دے ځکه دا دین د ابراهیم علیه السلام دے- او په دے ایت کښې بیا امر د قتال دے د تولو مشرکینو سره-
فَلَا تَظْلِمُوْا فِیْهِنَّ، معنٰی دا دہ چه ظلم مه کوئ په دے تولو میاشتو کښې په زیاتوالی سره دا رنګ په تبدیل سره او په مخکښې کولو روستو کولو سره او په نورو ګناهونو سره-
فائده (۱) دا ایت دلیل دے په دے خبره چه اعتبار په احکامو د شریعت کښې حساب د سپوږمۍ ته دے نه حساب د نمر ته- فائده (۲) د میاشتې په حساب سره د کال تولے ورځے درې سوه پنځه پنځوس دی او د نمر په حساب سره درے سوه پنځه شپیته او څلورمه حصه د ورځے- نو شمسی کال نه تقریبًا لس ورځے زیات وی نو په درے کاله کښې یو میاشت زیاتیږی نو دیارلس میاشتے د کال جوړیږی او دا د الله تعالیٰ د قانون نه

زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ يُضَلُّ بِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

زیاتولے دے په کفر کښې زیاتی کیدلې شي په دے سره گمراهي دَ کافرانو

يُحِلُّوْنَهٗ عَامًا وَّيُحَرِّمُوْنَهٗ عَامًا لِّيُوَاطِـُٔوْا

حلال گنړي دوی هغه میاشت یو کال او حرامه گنړي هغه میاشت بل کال دے دَ پاره چه پوره کړي

عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ فَيُحِلُّوْا مَا حَرَّمَ اللّٰهُ ؕ

شمار دَ هغې میاشتو چه عزت ورکړے دے الله تعالیٰ نو حلالوي دوی (په دے طریقے سره) هغه میاشتې چه حرامې کړي دي الله تعالیٰ

زُيِّنَ لَهُمْ سُوْٓءُ اَعْمَالِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي

ښائسته کړے شوي دي دوی ته بد عملونه دَ دوی۔ او الله تعالیٰ توفیق نه ورکوي

الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝۳۷ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

قوم کافرانو ته۔ اے ایمان والو

ع ۵ ۸ ۱۱

خلاف دے۔ فائده (۳) دَ عند الله نه روستو کتاب الله لفظ دلیل دے چه دا حکم په لوح محفوظ کښې لیکلے شوے دے۔ فائده (۴) کَافَّةً، یعنی ټول قسمونه مشرکان یا ټولے میاشتې بناء په روستنۍ معنیٰ سره دا آیت ناسخ دے دَ حرمت دَ قتال په میاشتو دَ عزتمنو کښې۔ نکته دے آیت کښې رد دے په یو رسم باطل دَ مشرکانو چه هغه تعلق لري دَ میاشتو سره لکه چه تیر شوی آیت کښې رد وُو په کتابیانو په زیادت دَ میاشتې سره۔ تفصیل ئې دا دے چه درے میاشتې دَ حرمت پرله پسے وے ذوالقعده، ذوالحجه او محرم۔ نو عرب مشرکینو باندے دا گرانه وه چه درے میاشتې پرله پسے دَ جنگونو کولو نه صبر اوکړي نو دوی به چه کله په حج کښې دَ منا نه واپس شول نو یو سړے به دَ بنو کنانه او دریدلو چه دَ هغه نوم قلمس وو او دَ هغه فیصله به چا نه شوه واپس کولے دوی به ورته اوئیل چه په حرمت دَ محرم کښې موږ له دا النَّسِیُّ (روستوالے) اوکړه نو هغه به اوئیل چه دَ محرم نه حرمت صفر ته نقل شو نو میاشت دَ محرم به دوی حلاله کړه بل کال به دا حرمت ربیع الاول ته نقل شو په دا سے طریقه هر کال کښې بلے بلے میاشتې ته به ئې نقل کوؤ نو په دے رسم کښې کفر دا وو چه دَ حرامو تحلیل به ئې کوؤ نو ځکه په دے آیت کریمه کښې دیته دَ کفر زیاتوالے اوئیلے شو یعنی دَ دوی نور کفریات هم وُو لیکن تحریم او تحلیل دَ میاشتو دَ خپل ځان دَ طرف نه دا بل کار دَ کفر وو نو لکه چه په ایمان کښې

مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

څه عذر دے ستاسو کله چه اوئیلے شی تاسو ته اووځئ په لار د الله تعالیٰ کښې

اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ ۚ أَرَضِيتُم بِالْحَيَاةِ

نو دراته شئ تاسو زمکے ته (دُنیا ته) - ایا خوښ کړی دے تاسو ژوند

الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ ۚ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

دنیوی په بدله د اخرت کښې پس نه دے سامان د ژوند دنیوی

فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٣٨﴾ إِلَّا تَنفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ

په مقابله د اخرت کښې مګر لږ دے - که او نه ځئ تاسو (جهاد له) نو عذاب به درکړی الله تعالیٰ

زیاتوالے راځی نو دا رنګ په کفر کښې هم زیادت راځی۔ فائده؛ دا دلیل دے په دے باندے چه څوک د یو عبادت د پاره وخت شرعی بدلوی او بل وخت د هغے د پاره مقرر کوی نو دا حرام کار دے دا رنګ تحریم تحلیل بے د شرعی دلیل نه کفر دے۔ يُضَلُّ بِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا، اضلال د شیطان په وسوسه دے که انسی او که جنی دی۔ لِيُوَاطِئُوا، یعنی دوی صرف شمار ته اعتبار ورکوی او وصف د تحریم بدلوی د هغے پرواه نه کوی۔

۳۸ د دے ځائے نه تر یو کم سل ایت پورے دریمه حصه د سورت ده او په دے کښې زورنے دی منافقانو ته او د هغوی شپږ اویا صفات قبیحه ذکر دی بغیر د تکرار نه! په هر صفت باندے د پاسه رقم (نمبر) لګولے شویدے او په دے ایتونو کښې اشاره ده واقعے د غزوه تبوک ته چه نهم کال د هجرت باندے وه او بعض منافقینو په هغے سفر کښې شمولیت کړیوو او بعض د هغے نه پاتے شوی وو کوچے د نفاق نه او د مؤمنانو نه هم بعض پاتے شوی وو بیا هغوی توبه ویستله او د هغوی ذکر به په څلورمه حصه کښې راځی. دے ایت کریمه کښې مراد په امنوا سره منافقان خلق دی او په دے کښې د منافقینو دوه خصلته ذکر دی - اثَّاقَلْتُمْ، مراد د دے نه سُستی کول دی د جهاد نه د دُنیا سره د محبت د وجے نه. الْأَرْضِ، کنایه ده د مزو او سامانونو د دنیا نه او د دے په هغه وخت کښې څلور وجے وے (۱) سخت والے د ګرمئ (۲) لرے والے د مسافت (۳) فصلونه او میوے په مدینه کښې پخیدل (۴) مقابله د سخت دشمن سره۔

وَمِنَ الْآخِرَةِ، من په معنیٰ د بدل دے لکه په سورة زخرف ۶۰ کښې دی او دا ایت

عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ

عذاب دردناک او ستاسو پہ ځای کښې بہ راولی بل قوم غیر ستاسو نہ

وَلَا تَضُرُّوْهُ شَيْـًٔا ۭ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

او ضرر نہ شئ ورکولے تاسو اللہ تعالیٰ تہ هیڅ ضرر۔ او اللہ تعالیٰ پہ هر خیز باندے

قَدِيْرٌ ۝۳۹ اِلَّا تَنْصُرُوْهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ اِذْ

قدرت لرونکے دے۔ کہ امداد نہ کوئ تاسو دَدے رسول سره، نو یقینًا امداد کړیدے دَدهٔ سره اللہ تعالیٰ کلہ چہ

اَخْرَجَهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثَانِيَ اثْنَيْنِ اِذْ هُمَا

ویستلے وو دهٔ لره کافرانو دویم دَ دوؤ نہ کلہ چہ دواړه

فِي الْغَارِ اِذْ يَقُوْلُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ

پہ غار کښې وو کلہ چہ وئیل پیغمبر خپل ملګری تہ مہ خفہ کیږه

اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا ۚ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلَيْهِ

یقینًا اللہ تعالیٰ زموږ ملګرے دے، نو رااولیږلہ اللہ تعالیٰ تسلّی (دَ زړه) پہ هغہ باندے

وَاَيَّدَهٗ بِجُنُوْدٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ

او کلک ئے کړو دے پہ اسے لښکرو سره چہ نہ لیدل ئے تاسو هغہ او وګرځولہ اللہ تعالیٰ کلمہ (خبره)

دلیل دے پہ دے خبره چہ ټول څیزونہ دَ دُنیا پہ مقابلہ دَ عمل اخروی کښې لږ دی او دا ئے پہ سورة نساء ۷۷ کښې هم دی۔

۳۹ دے ایت کښې یره ورکول دی پہ عذاب او پہ هلاکت سره پہ سبب دَ پرېښودلو دَ جهاد۔ عذاب اګرچہ عام دے لیکن بعضو روایاتو کښې (روایات دَ ابوداؤد) دَ هغې مثال ذکر کړے دے پہ شوکړے سره۔

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، نو قدرت لري پہ بدلولو دَ قومونو او پہ نصرت باندے بغیر دَ لښکر نہ لکہ چہ وروستو ایت کښې ذکر دی۔

الَّذِيْنَ كَفَرُوا السُّفْلٰى ؕ وَكَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا ؕ
دَ کافرانو لاندے ۰ او کلمہ دَ اللہ تعالیٰ هغه اوچته ده
وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝٤٠ اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا
او الله تعالیٰ زور اور دے حکمتونو والا دے۔ او ځئ که سپک یئ او که درانه یئ
وَجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ فِيْ
او جهاد کوئ په مالونو خپلو سره او ځانونو خپلو سره په
سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ
لاره دَ الله تعالیٰ کښې۔ دا ډیره فائده ده ستاسو دَ پاره که تاسو

نګ دے آیت کښې زورنه ده په پریښودلو دَ جهاد او په دے کښې اشاره ده واقعے دَ هجرت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چه په دے هجرت کښې ابوبکر رضی الله تعالیٰ عنه دَ هغه ملګرے وو او دوارہ په غار ثور کښې درے ورځے پاتے شوے وو تفصیل دَ واقعے محدثینو ذکر کړے دے او په دے آیت کښې فضیلت دَ ابوبکر صدیق رضی الله عنه دے او دلیل دے دَ هغه په صحابیت باندے نو چه څوک دَ هغے نه انکار کوی نو هغه کافر دے۔

اِلَّا تَنْصُرُوْهُ، جزاء حذف ده " فالله متکفل به " (الله تعالیٰ ذمه وار دے دَ مدد دَ هغه)۔

ثَانِيَ اثْنَيْنِ، په معنیٰ دَ احدهما دے او دا لفظ دلیل دے چه دَ دوو نه زیات نه وو او دلیل دے په اولیت دَ نبی صلی الله علیه وسلم یعنی هغه اول وو او ابوبکر رضی الله عنه دویم وو

لِصَاحِبِهٖ، مراد په دے کښې صحبت دینیه دے ځکه چه صحبت دَ غار ئے خو مخکښې ذکر کړو

لَا تَحْزَنْ، حزن او خوف په انبیاء علیهم السلام باندے هم راځی لکه په یعقوب او ابراهیم او موسیٰ او لوط علیهم السلام باندے راغلے وو نو دا نقصان نه دے او قرطبی وئیلے دی چه دا حزن دَ ابوبکر په باره دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې دے نو دا خو کمال دے۔

عَلَيْهِ ضمیر ابوبکر رضی الله عنه ته راجع دے په قرینه دَ ما قبل سره۔ وَاَيَّدَهٗ، ضمیر راجع دے نبی صلی الله علیه وسلم ته نو عطف دے فقد نصره الله باندے او دا تائید مختص په غار پورے نه دے بلکه دَ هغے نه روستو په ډیرو غزاګانو کښې ملائیک رالیږلے شوی وو۔

كَلِمَةَ الَّذِيْنَ الخ مراد دَ دینه ټول اقوال او اعمال دَ کفر دی او دا رنګ ارادے دَ کافرانو په باره دَ قتل دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې۔

تَعْلَمُوْنَ ﴿۴۱﴾ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيْبًا وَّسَفَرًا

پوهيږئ. که (غزوه د تبوک) وے سامان اسان حاصليدونکے او سفر

قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوْكَ وَلٰكِنْۢ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ

درمیانه خامخا دوی به تلی وے تا سره لیکن لرے شویده پری دوی باندے

الشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا

سفر او زر دے چه قسمونه به اوکړی دوی په الله تعالیٰ، که طاقت لرلے مونږه

لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ ۚ يُهْلِكُوْنَ اَنْفُسَهُمْ ۚ وَاللّٰهُ

خامخا وتلے به وے مونږ ستاسو سره هلاکوی دوی ځانونه خپل (په دروغ قسم سره)، او الله تعالیٰ

يَعْلَمُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۴۲﴾ عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ ۚ

پوهه دے چه یقیناً دوی خامخا دروغژن دی - معافی کړیده الله تعالیٰ تا ته

ع ۵/۱۲

۴۱ دے ایت کښ امر دے د پاره د فرضیت د قتال په هر حالت کښ. او خفافاً وثقالاً په دے کښ د مفسرینو لس اقوال دی بعضِ د هغے نه دا دی (۱) خفافاً لږ وسلے والا اوثقالاً ډیرے وسلے والا (۲) خفافاً فقیران، ثقالاً مالداران (۳) خفافاً بے عیاله، ثقالاً عیال والا (۴) خفافاً روغ بدن والا، ثقالاً بیماران په لږه بیمارئ سره وغیره. لیکن په دے کښ معذورین داخل نه دی نو ایت منسوخ نه دے. بِاَمْوَالِكُمْ، مالونه ئے مخکښ ذکر کړل ځکه چه اول تیاری د وسلو او خرچ پکار دے او هغه په مال سره کیږی. تَعْلَمُوْنَ، دا شرط ئے د دے وجے نه اولګوؤ چه په علم سره تمیز د خیر او شر حاصلیږی یا مراد د علم نه علم د حق دے یعنی ایمان ځکه چه خیر (ثواب) بغیر د ایمان نه نه حاصلیږی.

۴۲ په دے ایت کښ زورنه ده منافقینو ته په پریښودلو د جهاد سره او څلور صفات قبیحه دی او مطلب د ایت دا دے چه سفر د تبوک ډیر اوږد وؤ او د مدینے منورے نه تقریباً اته سوه کلومیټره لرے وؤ او په هغے کښ غنیمت حاصلول هم ګران وؤ ځکه چه دشمن قوم هم سخت وو په جنګ کښ د دے وجے نه بعضِ منافقان د دے سفر نه پاتے شول او دے ایت کښ دلیل دے په دے خبره چه په دروغه

لِمَ أَذِنْتَ لَهُمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ

په څه وجه دې تا اجازت اوکړو دوی ته ترهغې چه ښکاره شوې وې تاته هغه کسان

صَدَقُوا وَتَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ ﴿٤٣﴾ لَا يَسْتَأْذِنُكَ

چه رښتيا دائي او پيژندلې وې تا دروغژن. نه غواړي اجازت ستا نه

الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

هغه کسان چه ايمان لري په الله تعالیٰ او په ورځ روستنۍ

أَن يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۗ وَاللَّهُ

(په پريښودلو د دې) چه جهاد اوکړي په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو. او الله تعالیٰ

قسم کول سبب د هلاکت دے. عَرَضًا، د دنيا ټولو مالونو ته عرض وئيلې شي ځکه عارضي څيزونه دي او په وجود کښ الله تعالیٰ ته محتاج دي نو جوهر په کښ نيشته کوم چه د منطقيانو اصطلاح ده. وَسَيَحْلِفُونَ، سَ د استقبال ئې د دې وجې نه ذکر کړو چه دا آيا تونه په سفر د تبوک کښ نازل شوې وو يعني هر کله چه اے نبي ته دوی ته واپس لاړشې نو دوی به قسمونه کوی.

۴۳ په دے آيت کښ په نيز د عمرو بن ميمون عتاب دے رسول الله صلی الله عليه وسلم ته په نرمے لهجے سره ځکه چه رسول الله صلی الله عليه وسلم بعضِ منافقينو ته اجازت ورکړے وو د پاتے کيدلو د جهاد نه کله چه هغوی اجازت طلب کړے وو ليکن رسول الله صلی الله عليه وسلم پوهه نه وو د هغوی په دروغو باندے نو په دے کښ څه گناه په نبي صلی الله عليه وسلم باندے نيشته او قاضي عياض په شفاء کښ وئيلي دی چه دا عتاب نه دے ځکه چه الله تعالیٰ د دے وخت نه مخکښ نهی نه ده کړے او نه الله تعالیٰ په دے باندے د معصيت اطلاق کړيدے نو عَفَا په معنی د غفر نه دے بلکه په معنی د لم يلزم سره دے لکه عَفَا اللهُ عَنْ صَدَقَةِ الْخَيْلِ نو مطلب دا شو چه په تا باندے څه لزوم نيشته. او مکی وئيلي دی چه دا استفتاح د کلام ده لکه چه اعزك الله وئيلے کيږی. او رازی وئيلي دی چه دا مبالغه ده په اکرام او تعظيم د هغه کښ دا اقوال خطيب شربينی نقل کړيدی.

فائده: او دا آيت صريح دے په دے خبره چه پيغمبر غيب دان نه دے.

عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ﴿۴۴﴾ اِنَّمَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ

پوهه دے په متقيانو باندے. يقيناً اجازت غواړي ستانه (دَجهاد پريښودلو) هغه کسان

لَا يُؤْمِنُوْنَ(۸) بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَارْتَابَتْ(۹)

چه ايمان نه لري په الله تعالیٰ او په ورځ روستنئ او شک کړيدے

قُلُوْبُهُمْ فَهُمْ فِيْ رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُوْنَ(۱۰) ﴿۴۵﴾

زړونو دَدوي پس دوي دَوجے دَشک خپل نه کړ وډ دي.

وَلَوْ اَرَادُوا(۱۱) الْخُرُوْجَ لَاَعَدُّوْا(۱۲) لَهٗ عُدَّةً

او که دوي نيت لرلے دَ وتلو جهاد له خامخا دوي به تيارے کړے وے هغے لره دَسامان

وَّلٰكِنْ كَرِهَ اللّٰهُ انْبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيْلَ

ليکن بد ګڼړلے دي الله تعالیٰ پورته کيدل دَدوي (جهادته) پس منع ئے کړل دوي لره، او اوئيل شو دوي ته

سمک دے ايت کښ صفت دَ مؤمنانو ذکر دے چه هغوی بغير دَعذر نه دَ جهاد نه نه پاتے کيږی او نه دَ پيغمبر نه دَ پاتے کيدلو اذن غواړی . نو دا تائيد دے دَماقيل دَ پاره چه په دے موقع (تبوک) کښ رشتيني مؤمن او دروغژن پيژندل اسان دی معلوميږی په اجازت طلب کولو او په نه طلب کولو سره.

سوال: په سورة نور سلا کښ صفت دَ مؤمنانو استيذان دے او دلته عدم استيذان؟

جواب دا دے چه په هغه سورت کښ ذکر دَ استيذان دے دَ پاره دَ رخصت کيدلو دَ مجلس دَ نبی صلی الله عليه وسلم نه او په دے سورت کښ ذکر دَ استيذان دے دَ پريښودلو دَ جهاد.

سهٔ دے ايت کښ زور ته ده منافقينو ته او په دے کښ هم دَ هغوی څلور صفات قبيحه ذکر دی او دلته استيذان په باره دَ پريښودلو دَ جهاد کښ مراد دے.

وَارْتَابَتْ، دا صيغه دلالت کوی په کلك شک باندے چه هغه په طريقه دَ انکار سره دے او دا علت دے دَ لايؤمنون دَ پاره.

يَتَرَدَّدُوْنَ، يعنی حيران دی چه مؤمنانو سره شی او که دَ کافرانو سره شی.

اقْعُدُوْا مَعَ الْقٰعِدِيْنَ ﴿۴۶﴾ لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ

چه کيني سره د کيناستونکو . که وتلے وے دوی په لښکر ستاسو کښې

مَّا زَادُوْكُمْ (۱۳) اِلَّا خَبَالًا وَّلَاَوْضَعُوْا (۱۴) خِلٰلَكُمْ

نه به وو زیات کړے دوی تاسو لره مګر نقصان او خامخا منډے به وهلے وے دوی په مینځ ستاسو کښې (په چغلی ژی سره)

يَبْغُوْنَكُمُ (۱۵) الْفِتْنَةَ ۚ وَفِيْكُمْ (۱۶) سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ ۗ

غواړی دوی په تاسو کښې اختلاف او په (لښکر) ستاسو کښې جاسوسان شته د دوی .

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ ۢ بِالظّٰلِمِيْنَ (۱۷) ﴿۴۷﴾ لَقَدِ (۱۸) ابْتَغَوُا

او الله تعالیٰ ښه پوهه دے په ظالمانو . یقیناً غوښتلے وه دوی

سلګ دے ایت کښې هم زورنه دہ منافقینو ته چه هغوی د جهاد نیت هم نه لری او نه د هغے د پاره تیاری کوی ځکه چه لفظ د لَوْ دلالت کوی په نفی باندے او تیاری نه کول مخالفت د هغه امرنه دے چه په سورة انفال سلګ کښې وؤ . او په دے ایت کښې دوه صفات قبیحه د منافقینو دی . وَلٰكِنْ نه روستو دریے جملے دلیل دے چه معصیتونو د انسانانو پورے اراده د الله تعالیٰ متعلق دہ . انْبِعَاثَهُمْ، د دوی د جهاد د پاره تلل په صحیح نیت سره نه وؤ او په ناراستیٔ سره وؤ د دے وجے نه په دے لفظ سره یٔے تعبیر اوشو په لفظ د خروج سره یٔے تعبیر نه دے کړے . قِيْلَ اه دا قول د تقدیر الٰهی دے یا قول د رسول او د صحابو دے منافقانو ته . قٰعِدِيْنَ نه مراد ړاندۀ او ګوډ او زنانه او واړه دی .

سکګ دے ایت کښې مؤمنانو ته تسلّی دہ په پاتے کیدلو د منافقینو د جهاد نه او زورنه دہ منافقینو ته په ذکر د ښځو صفاتو قبیحو او دا علت دے د پاره د كَرِهَ اللّٰهُ اه یعنی د دوی په وتلو کښې ډیر مفاسد دی . اِلَّا خَبَالًا، که ما قبل کښې لفظ د شیًٔا مقدر شی نو دا استثناء متصل دہ او که خیرًا مقدر شی نو استثناء منقطع دہ او له توجیه غوره دہ . الْفِتْنَةَ، مراد د دے نه اختلاف او د جهاد نه واپس کول او د دین نه اړول دی . وَفِيْكُمْ اه په دیکښې مراد هغه منافقان دی چه په سفر د تبوک کښې شریک وؤ د پاره د جاسوسیٔ کولو .

الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ (۱۹) حَتّٰى

فتنه مخکښې د دېته او جوړ کړے وو دوی ستا په خلاف کښې ډېر مکرونه تر دے

جَآءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ أَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ كٰرِهُوْنَ (۲۰) ﴿۴۸﴾

چه راغے حق او ښکاره شو دین د الله تعالیٰ او دوی (دغه) بد ګڼړی۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ ائْذَنْ لِّيْ وَلَا تَفْتِنِّيْ (۲۱)

او بعضې د دوی نه هغه څوک دی چه وائی اجازت راکړه ماته (د پاتېکېدلو) او مه اچوه ما په فتنه کښې

أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوْا (۲۲) وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌ

خبر شئ په فتنه کښې دوی پرېوتے دی او یقیناً جهنم خامخا راګیرووکے دے

بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿۴۹﴾ إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ (۲۳)

کافرانو لره ۔ که اورسی تا ته خوشحالی نو خفه کوی دوی لره

۱۹ په دے کښې هم زورنه ده منافقینو ته په ذکر د دریو صفاتو قبیحو او دا دلیل دے د یاره د لزوم د هغه مفاسدو چه په تیر شوی ایت کښې ذکر دی۔

لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ، په دے کښې اشاره ده ښکاره کولو د منافقت ته په تیرو شوؤ غزاګانو کښې لکه غزوهٔ احد او غزوهٔ احزاب۔

وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ، کده یو مطلب دا دے چه دوی د پیغمبر د قتلولو د پاره وخت په وخت تدبیرونه جوړ کړی وو۔ دویم مقصد دا دے چه دوی خپله رائے او خیالات ګرځولے دی په مقابله د دین د پیغمبر کښې او تدبیرونه ئے جوړ کړی دی۔

۲۱ دا هم زورنه ده منافقینو ته او یو قسم د هغے منافقینو ذکر دے چه د غزوه تبوک نه پاتے شوی وؤ چه د هغه یو نوم جد ابن قیس وؤ او په دے کښې د هغوی دوه صفاتِ قبیحه دی۔

حاصل دا دے چه څوک د پیغمبر تابعدار ئ ته فتنه وائی نو هغه منافق دے۔

فِي الْفِتْنَةِ، پاتے کیدل د جهاد نه او مخالفت کول د نبی صلی الله علیه وسلم نه فتنه ده۔

بِالْكٰفِرِيْنَ، اشاره ده چه په دے لفظ (لا تفتنی) سره دوی خپل کفر ښکاره کړو۔ ځکه چه اتباع د نبی صلی الله علیه وسلم او جهاد ته ئے فتنه ویلے ده۔

وَإِن تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا (۲۴)

که اورسی تاته څه مصیبت وائي دوی یقینًا عمل کړی وو مونږ

أَمْرَنَا مِن قَبْلُ وَيَتَوَلَّوا وَّهُمْ فَرِحُونَ (۲۵) ۝۵۰

په تدبیر خپل مخکښ د دینه او اوګرځي دوی او دوی خوشحالی کوی (ستاسو په مصیبت باندې)

قُل لَّن يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا ج

ته اووایه هیڅ کله او به نه رسی مونږ ته مګر هغه چه مقرر کړی دی الله تعالی مونږ لره

هُوَ مَوْلَانَا ج وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

هغه مولی (مددګار) زمونږ دے او خاص په الله دے ځان سپاری

الْمُؤْمِنُونَ ۝۵۱ قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا

مؤمنان - ته ورته او وایه چه نه کوئ تاسو انتظار په باره زمونږ کښ

إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ط وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ (۲۶)

مګر یو د دوو خوشحالو نه - او مونږ انتظار کوو

(۲۵) دا هم زورنه ده منافقینو ته او په دے کښ د هغوی درے صفاتِ قبیحه دی۔ أَخَذْنَا أَمْرَنَا، مراد د دے نه خپل ځان ته هوښیار وئیل دی چه د هغې د وجے نه د قتال نه پاتے شول۔ تَسُؤْهُمْ، دا د حسد د وجے نه۔ حَسَنَةٌ، مراد د دینه نصرت او غنیمت دے چه ښکاره او لوے نعمت دے د دے وجے نه تُصِبْكَ سره یے ذکر کړے تمسك سره یے نه دے ذکر کړے:

(۲۶) دا اول جواب دے منافقانو ته چه کله هغوی په مصیبت د مؤمنانو خوشحاله شی نو هغوی ته به داسے جواب کیدے شی او دا دلیل دے چه تقدیر د الله تعالی لیکلے شوے دے د مخکښ نه او په هغې باندے ایمان راوړل فرض دی۔
هُوَ مَوْلَانَا، په دے کښ اشاره ده چه په تقدیر د الله تعالی کښ هر قسم خیر دے د پاره د مؤمنانو۔
وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الخ یعنی ایمان په تقدیر باندے مستلزم دے توکل کولو لره۔

بِكُمْ أَنْ يُصِيبَكُمُ اللهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِندِهِ

ستاسو په باره کښې چه او به رسوي تاسو ته الله تعالیٰ عذاب دَ خپل طرف نه

أَوْ بِأَيْدِينَا ۖ فَتَرَبَّصُوا إِنَّا مَعَكُم

یا زمونږ په لاسونو. نو انتظار کوئ یقینًا مونږ تاسو سره

مُّتَرَبِّصُونَ ﴿٥٢﴾ قُلْ أَنفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا

انتظار کوونکی يو. ته اووایه خرچ کوئ په خوښه یا په ناخوښه

لَّن يُتَقَبَّلَ مِنكُمْ (۲۸) ۖ إِنَّكُمْ كُنتُمْ قَوْمًا

هیڅ کله به قبول نه کړېشي ستاسو نه یقینًا تاسو قوم يئ

فَاسِقِينَ (۲۹) ﴿٥٣﴾ وَمَا مَنَعَهُمْ أَن تُقْبَلَ مِنْهُمْ

نا فرمان. او نه دے منع کړے دوی چه قبول کړېشي دَ دوی نه

نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللهِ وَبِرَسُولِهِ

خیراتونه دَ دوی مګر دے خبرے چه دوی کفر کړیدے په الله تعالیٰ او په رسول دَ هغه

۲۸ دا دویم جواب دے دَ قول دَ منافقینو او په دے کښې دَ هغوی دوه صفات قبیحه ذکر دي. مُحسنیینِ نه مراد فتح ده سره دَ غنیمت نه او شهادت دے. نَتَرَبَّصُ بِكُمْ، دَ دے نه روستو احدی الحُسنیینِ مقدار دے او روستو دَ هغے دواړو تفصیل ذکر دے.

فائده: تربص اکثر په هغه ځائے کښې ذکر کیږی چه ضرور واقع کیږی او انتظار عام دے واقع کیدونکے او نه واقع کیدونکے دواړو کښې استعمالیږی.

۲۹ دے ایت کښې هم دوه صفات قبیحه دی دَ منافقینو. اَنفِقُوا، دا امر په معنی دَ خبر دے یعنی انفاق دواړه قسمونه په نه قبلیدلو کښې برابر دے او دا ایت دلیل دے په دے خبره چه نیک اعمال په کفر او په نفاق سره باطلیږی.

فَاسِقِينَ دَ فسق نه مراد فسقِ اعتقادی دے یعنی کفر.

وَلَا يَأْتُونَ(۳۱) الصَّلٰوةَ اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى

او نه راځي دوی مانځه ته مګر په داسې حال چې ناراست وي

وَلَا يُنْفِقُوْنَ(۳۲) اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ۝۵۴ فَلَا تُعْجِبْكَ

او خرچ نه کوي مګر په داسې حال چې بد يې ګڼړي۔ تو تعجب کښې دې نه اچوي تا لره

اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ ؕ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ

مالونه د دوی او نه اولاد د دوی۔ يقيناً غواړي الله تعالٰی ربّ دېر والی د مالونو او اولاد

لِيُعَذِّبَهُمْ(۳۳) بِهَا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ

چې عذاب ورکړي دوی لره په هغې سره په ژوند د دنيا کښې او اوځي

اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ(۳۴) ۝۵۵ وَيَحْلِفُوْنَ

روحونه (ساګانې) د دوی په داسې حال چې دوی به کافران وي۔ او قسمونه کوي دوی

۵۴ دا اٰيت تفصيل د فسق دے چه مانع دے د قبوليت د نفقاتو نه او په دے اٰيت کښې
درے صفات قبيحه د هغوی ذکر دی يعنې په دوی کښې ايمان نيشته او عبادات بدنيه
او ماليه هم د عبادت په طور باندے نه کوی۔ وَهُمْ كُسَالٰى، داسې په سورة نساء
۱۴۲ کښې هم دی۔
۵۵ هر کله چه مخکښې اٰيت کښې ذکر شو چه د دوی نفقات نه قبليږی نو دے اٰيت
کښې په هغې باندے تفريع ده په حرف د فاء سره چه د دوی مالونه بے فائدے
دی چه په هغې څه ثواب نه ملاويږی او اولاد يې هم بے فائدے دی چه د
هغوی په عمل کښې دوی ته څه فائده نه رسی بلکه دا دواړه سبب د عذاب
د دوی دے د هغې په حاصلو کښې او بيا د هغې په ساتنه کولو کښې ستړے والے او
مشقتونه او غمونه وغيره برداشت کوی او هيڅ ثواب يې نه کيږی او هر چه مؤمن مال دے
دے نو د هغه کسب مشقت مصيبتونه سبب د اجر دے نو هغه عذاب نه دے۔
او دا ډير والے د مالونو او د اولاد د دوی داخو استدراج دے د دوی د پاره او په دے
اٰيت کښې دوه صفات قبيحه دی اٰخری جمله کښې اشاره ده چه د وجے د شغل د مالونو
او اولاد نه تر مرګه پورے توبه کولو ته نه اوزګاريږی نو په کفر کښې مړ شی۔

بِاللّٰهِ اِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ ؕ وَمَا هُمْ مِّنْكُمْ وَلٰكِنَّهُمْ

په الله تعالیٰ چه یقیناً دوی ستاسو ډلې نه دی۔ او حال دا چه نه دی دوی ستاسو ډلې نه لیکن دوی

قَوْمٌ يَّفْرَقُوْنَ (۳۶) ﴿۵۶﴾ لَوْ يَجِدُوْنَ مَلْجَاً

داسې قوم دے چه یریږی۔ که دوی مونده لے وے ځائے د پناه ئے

اَوْ مَغٰرٰتٍ اَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا اِلَيْهِ (۳۷) وَهُمْ

یا غارونو یا سمسې ځائے ننوتلو ورغلی به وو هغے ته په داسې حال چه

يَجْمَحُوْنَ ﴿۵۷﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ (۳۸) فِي

منډے به ئے وهلے۔ او بعض د دوی نه هغه څوک دی چه عیب لګوی په تا باندے په تقسیم

الصَّدَقٰتِ ۚ فَاِنْ اُعْطُوْا مِنْهَا رَضُوْا (۳۹) وَاِنْ لَّمْ

د زکواتونو کښں، نو که ورکړے شی دوی ته د هغے نه نو خوشحاله شی (رضا وی) او که

يُعْطَوْا مِنْهَآ اِذَا هُمْ يَسْخَطُوْنَ (۴۰) ﴿۵۸﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ

ورنکړے شی د هغے نه نو د غه وخت دوی خفګان کوی۔ او که چرے دوی

۳۶ په دے ایت کښں هم زورنه ده منافقینو ته او ذکر شوی دوه صفات قبیحه دی هرکله چه د دوی علامات د کفر ذکر شول نو دوی د مؤمنانو د دهوکه کولو د پاره دروغ قسمونه شروع کړل چه مونږ د کافرانو سره نه یو بلکه ستاسو ملګری یو۔ وَلٰكِنَّهُمْ نه روستو عبارت پټ دے یعني لكنهم يظهرون اليكم الايمان یعنی دوی ایمان ښکاره کوی د وجے د یرے نه۔ يَفْرَقُوْنَ د فرق نه ماخوذ دے یره سره د جزع او د هیبت ته نو دا د خوف نه زیاته ده۔ مراد د يَفْرَقُوْنَ نه دا دے چه دوی یریږی د دے خبرے نه چه هسے نه چه زمونږ نفاق ښکاره شی او مسلمانان مونږ لره قتل کړی۔

۳۷ دا هم زورنه ده منافقینو ته او بیان د خوف د هغے دے او په دے کښں یو صفت قبیحه دے۔ مَلْجَاً ځائے د پناه ئی لکه قلعه ګانے۔ مَغٰرٰتٍ او غارونه چه په غرونو کښں دی۔ مُدَّخَلًا هغه سمستې چه په زمکه کښں وی۔ يَجْمَحُوْنَ، جمح هغه منډه د اس ده چه په واګے سره هم نه حصاریږی۔

۳۸ په دے ایت کښں هم زورنه ده منافقینو ته او په دے کښں دریے صفات

رَضُوْا مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ ۙ وَقَالُوْا

خوشحاله شوي په هغې چه ورکړي دي دوی ته الله تعالیٰ او رسول (صلی الله علیه وسلم) ده هغه، او ويلي وے دوی

حَسْبُنَا اللّٰهُ سَيُؤْتِيْنَا اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ

چه پوره دے مونږ لره الله تعالیٰ، زر دے چه راکړي مونږ ته الله تعالیٰ د فضل خپل نه

وَرَسُوْلُهٗۤ ۙ اِنَّاۤ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوْنَ ﴿۵۹﴾ ع اِنَّمَا

او رسول (صلی الله علیه وسلم) ده هغه (په تقسیم کولو سره). يقيناً مونږ خاص الله تعالیٰ ته رغبت کوونکي يو. يقيناً هغه

الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ

زکاتونه (ورکيدلي شي) محتاجو ته او مسکينانو (غريبانو) ته او کار کوونکو ته

قبيحه دی او دا آيت دليل دے په دے خبره چه څوک د پيغمبر په يو طريقه باندے اعتراض کوی نو هغه منافق دے۔ دارنګ هغه څوک چه د دين کارکوی د مالي مفادانو د پاره نو هغه منافق دے او د دے پشان په سورة بقره ۵۱ او سورة نور ۴۹ او سورة ج ۱۱ کښې هم دی۔ يَلْمِزُكَ، لمز مخاطب ته عيب ويئيل او دارنګ د سترګو په اشارو سره بے عزتي کول دی او د دے نه نهي په سورة حجرات ۱۱ کښې او په دے باندے زجر په سورة همزه ۱ کښې ذکر دی۔ يَسْخَطُوْنَ، سخط په معنی د خفګان دے سره د غضب نه۔ او اِذَا ئي د مفاجات د پاره ځکه راوړے دے چه دوی هيڅ فکر نه کوی په سبب د نه ورکولو کښې بلکه ناڅاپه بے فکره خفګان او غصه کوی۔

۵۹ دا ترغيب دے د خائسته اخلاقو چه په هغې سره د نفاق نه بچ کيږی۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ جزا د دے محذوف ده يعنی لکان خيراً لهم (د دوی د پاره به غوره وے)۔

وَرَسُوْلُهٗ، د ورکولو د رسول الله صلی الله عليه وسلم ته مراد په دے ځائے کښې د زکوٰة او د غنيمت نه حصے ورکول دی په امر د الله تعالیٰ سره او د دے تشريح په حديث صحيح کښې ده چه "انما انا قاسم والله يعطی"۔ نو د دے آيت نه د مشرکانو دليل نيول (چه نبی هم اختيار من د نفع او ضرر دے) دا غلط دے ځکه په دے کښې مراد په طريقه د تقسيم سره ورکول دی۔ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوْنَ، معنی دا چه مونږ مال طرف ته رغبت نه کوؤ بلکه د الله تعالیٰ د رضا د طرف رغبت لرو يا رغبت نه مراد الله تعالیٰ ته عاجزی کول او دعا کول او دا عمل خاص دے په الله تعالیٰ پورے د دے وجے نه اِلَى اللّٰهِ لفظ ئي مخکښې ذکر کړے دے۔

عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ

چه مقرر وی په هغې باندې، او هغه څوک چه خوشحالولے شي زړونه د هغوی، او په آزادولو د سټو کښ

وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ

او قرضدارو ته، او په لار د الله تعالیٰ کښ او مسافرو ته۔

فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۶۰﴾

فرض کړے شویدے د طرف د الله تعالیٰ نه۔ او الله تعالیٰ پوهه دے حکمتونو والا دے۔

سلك په دے ایت کښ بیان د مصارفو د زکوٰة دے او مقصد په دے کښ رد دے په هغه منافقینو چه هغوی په نبی صلی الله علیه وسلم باندے اعتراض کوؤ په تقسیم د صدقاتو کښ۔ فقیر او مسکین کښ فرق دے په ډیرو طریقو سره مشهور په هغے کښ دا دے چه فقیر هغه دے چه د هغه د ګذارے کولو د پاره څه مال وی لیکن د نصاب نه کم وی او مسکین هغه څوک دے چه د هغه د پاره هیڅ څیز نه وی۔ او دویم قول د دے په عکس سره دے او دا فرق د دے په هغه وخت کښ دے چه دوی یوځائے کښ ذکر شی او هر کله چه جدا جدا ذکر روی نو د دواړو یو شان معنٰی وی۔

الْعٰمِلِيْنَ، مراد د دے نه هغه کسان دی چه هغوی د امیر د طرف نه مقرر کړے شوے وی د پاره د جمع کولو د زکوٰة د مال د مالدارو خلقو نه اګرچه مالداروی نو د هغه به هم ورکیدے شی د زکوٰة نه په قدر د عمل د هغه ځکه چه دے بند دے په خدمت د فقراؤ کښ او په دے کښ لیکونکے او تقسیم کوؤنکے او ساعی او عاشر او څوکیدار وغیره ټول داخل دی۔

وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ، دا ډیر قسمونه دی اول هغه چه اسلام ئے ښکاره کوؤ لیکن یقین ئے کمزورے وو نو دوی له هم زکوٰة ورکیدے شو د پاره د الفت د زړونو د دوی دویم هغه دی چه کافروی خو د هغه نه امید د ایمان کیدیشی. دریم هغه څوک چه د هغه د وجے نه نور خلق اسلام راوړی۔ څلورم هغه دے چه د هغه په وجے سره ضرر د مسلمانانو دفع کیږی۔ او د دوی د حصے په منسوخ کیدلو کښ روستو د وفات د نبی صلی الله علیه وسلم نه اختلاف دے خو غوره دا ده چه په وخت د ضعف د اسلام کښ دا حصه ورکول پکاردی او دا قول ابن کثیر هم غوره کړے دے۔ الْغٰرِمِيْنَ، مراد د دے نه هغه کسان دی چه هغوی

وَمِنْهُمُ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ النَّبِيَّ وَيَقُوْلُوْنَ (۴۱) (۴۲)

او بعض د دوی نه هغه کسان دی چه خفه کوی نبی (صلی الله علیه وسلم) لره او دوی وائی

هُوَ اُذُنٌ ؕ قُلْ اُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ

چه دے هره خبره منونکے دے. ته او وایه چه دے منونکے د خیر د خبرے دے ستاسو ایمان لری په الله تعالیٰ

وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او خبره منی د مؤمنانو او رحمت دے د پاره د ایمان والو

مِنْكُمْ ؕ وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ لَهُمْ

ستاسو نه او هغه کسان چه خفه کوی رسول د الله لره دوی له

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۶۱﴾ يَحْلِفُوْنَ (۴۳) بِاللّٰهِ لَكُمْ لِيُرْضُوْكُمْ ۚ

عذاب دردناک دے. قسمونه کوی په الله تعالیٰ تاسو ته دے د پاره چه رضا کړی تاسو

د نیکئ په یو کار کښې یا د عامو خلقو د فائدے د پاره یا د دوو ډلو د صلح کولو د پاره [2]
تاوان په ځان باندے کیښود او دے مالدار وی لیکن مال د ده د تاوان نه کم وی نو
ده لره هم زکوٰة ورکول پکار دی په سراج المنیر کښې ذکر دی چه چا د یو میلمه د میلمستیا
د پاره یا د مسجد د اباد ئ د پاره یا د پل د جوړولو د پاره یا د قیدیانو د خلاصولو د پاره
(او زه وایم چه د مدرسے د اباد ئ یا د خرچ د پاره) قرضه په ځان باندے اړولے
وی هغه په کښې هم داخل دی په دے شرط چه د هغه خپل مال د قرضے نه کم وی.
او عام قرضداره هم په دے کښې داخل دے چه قرض یے د مال سره برابر وی
یا ډیر وی اگرچه دے د گناه په یو کار کښې قرضدار شوے وی لیکن توبه یے کړے وی.
وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، مراد د دے نه غازیان دی ورکیدے شی دوی ته زکوٰة د پاره د خرچ
د غزا اگر که دوی مالدار وی دا رنگ داخل دی په دے کښې طالبان د علم دین
او دا رنگ دعوت د دین په دے کښې داخل دے.
[43] دا زورنه ده منافقینو ته او په دے ایت کښې دوه صفات قبیحه د هغوی ذکر دی.
مطلب دا دے چه دوی په نبی صلی الله علیه وسلم پسے بدے خبرے کولے او په
هغه به یے عیبونه لګول که دوی ته به او ویلے شو که نبی صلی الله علیه وسلم

وَاللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اَحَقُّ اَنْ يُّرْضُوْهُ اِنْ كَانُوْا

او الله تعالیٰ او رسول (صلی الله علیه وسلم) ډېر زیات حقدار دی چه رضا کړی دوی هغوی لره که وی دوی

مُؤْمِنِيْنَ ﴿۶۲﴾ اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّهٗ مَنْ يُّحَادِدِ

مؤمنان - آیا نه پوهیږی دوی چه یقینًا چا چه خلاف اوکړو د حدودو (بولو)

اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاَنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِيْهَا ؕ

د الله تعالیٰ او د رسول د هغه نو یقینًا هغه لره اور د جهنم دے همیشه به وی په هغے کښ

ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۳﴾ يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ

دا شرمندګی لویه ده - یریږی منافقان

خبرشی نو سنا سو ته به خفه شی نو دوی به وئیل چه هغه هره خبره قبلوی اوکه مونږه ورته دروغه بهانه اوکړو نو هغه به ضرور قبوله کړی نو جواب کښ او وئیلے شول چه دا نبی صلی الله علیه وسلم ایمان په الله تعالیٰ لری او خبرے د مؤمنانو قبلوی د منافقانو خبرے تصدیق نه کوی. اُذُنٌ، په اصل کښ غوږ ته وئیلے شی دلته مراد هغه څوک دے چه د غوږ په شان هره خبره او هر عذر قبلوی. نو اُذُنٌ ورته مُبالغةً وئیلے شی. يُؤْمِنُ، دا تفسیر د ماقبل دے. بِاللّٰهِ، په حرف د باء سره ایمان شرعی مراد دے او په حرف د لام سره ایمان لغوی مراد دے. وَرَحْمَةٌ، دا عطف دے په اُذُنُ خَيْرٍ باندے. اٰمَنُوْا، هغه څوک چه اظهار د ایمان کوی که مخلص وی او که منافق وی د هغوی د زړه رازونه نه معلوموی په ظاهری ایمان باندے اکتفا کوی او د هغوی د پاره دعا کول غواړی. هر کله چه دا لفظ منافقانو ته شامل دے نو وروستو جمله کښ د هغوی (په سبب د ایذاء ورکولو سره) استثناء کوی او تخویف ورکوی.

۶۲ دے ایت کښ هم زورله ده منافقینو ته او د هغوی یوصفت قبیحه ذکر دے. یعنی مخلوق د رضا کولو کوشش کوی په دروغه قسمونو باندے او الله تعالیٰ او رسول الله صلی الله علیه وسلم خفه کوی. اَنْ يُّرْضُوْهُ، یو ضمیر ئے ذکر کړو ځکه رضا د الله او د رسول یو شان ده او دا ضمیر راجع دے الله ته په نیز د بیضاوی او راجع دے رسول ته په نیز د سیبویه.

۶۳ په دے ایت کښ یره اخروی ده او یوصفت قبیحه دے د هغوی. يُحَادِدِ، مطلب دا دے چه د الله تعالیٰ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حدودو نه مخالف کیدل نه حدود

أَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُورَةٌ تُنَبِّئُهُمْ بِمَا

چه نازل به شي په دوی (مسلمانانو) باندے یو سورت چه خبر به کړی دوی لره په هغه څه

فِي قُلُوبِهِمْ ۚ قُلِ اسْتَهْزِءُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ

چه په زړونو دِ منافقانو کښ دی. ته ورته او وایه چه ټوقے کوئ تاسو یقیناً الله تعالیٰ

مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُونَ ﴿۶۴﴾ وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ

ښکاره کوی هغه څیز چه یریږئ تاسو د هغے (د ښکاره کولو) نه. او که تپوس اوکړے ته د دوی نه

لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ ۚ قُلْ

خامخا وائی به دوی یقیناً مونږ وو ځان مشغلولو او لوبے موکولے، ته او وایه

أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِءُونَ ﴿۶۵﴾

آیا په الله تعالیٰ پورے او په آیتونو د هغه پورے او په رسول د هغه پورے تاسو ټوقے کوئ.

جوړه وی او حد ود دوه قسمه دی یو قسم شرعی سزاگانے د پاره د بعض گناهونو لکه حد د زنا او غلا وغیره. دویم قسم د هر حکم شرعی سنت طریقه د هغے حد دے. د دے وجے نه هر مبتدع محاد د الله تعالیٰ او د رسول صلی الله علیه وسلم دے او دا سے په سورة مجادله سه او ۲۲ کښ هم ذکر دی. فَأَنَّ په دے کښ لفظ د حق پټ دے یا دا أَنَّ تکرار دے د مخکښ أَنَّ سره یا جواب حذف دے یعنی يَهلك.

۶۴ دے آیت کښ هم زورنه ده منافقینو ته او د هغوی یو صفت قبیحه ذکر دے مطلب د آیت دا دے چه دوی به ټوقے کولے په پیغمبر او په قرآن پورے او بیا به یریدل د دے خبرے نه هسے نه چه الله تعالیٰ زمونږ د بدو په باره کښ سورت نازل کړی او مؤمنان زمونږ د حال نه خبر کړی لیکن دا سورت الله تعالیٰ د هغوی د عیبونو په باره کښ نازل کړیدے د دے وجے نه دے سورت ته سورة الفاضحه هم وائی (شرموونکے). او سورة المثیرة او مبعثرة ورته هم وائی (را ښکاره کوونکے نقصانونو لره) او سورة الحفارة ورته هم وائی (کنستونکے هغه خبرے چه د دوی په زړونو کښ دی). قُلِ اسْتَهْزِءُوا، دا دلیل دے چه استهزا ئے کوله په الله او رسول او مؤمنانو پورے او دا امر د پاره د تهدید (زورنے) دے.

۶۵ دے آیت کښ د هغوی دوه صفات قبیحه ذکر دی. سَأَلْتَهُمْ، تفصیل د سوال د مخکښ آیت نه معلوم دے یعنی سبب د استهزاء کولو. نَخُوضُ وَنَلْعَبُ، دا عذر د استهزاء کولو دے

لَا تَعْتَذِرُوْا قَدْ كَفَرْتُمْ (۴۸) بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ ؕ

بهانې مه کوئ یقیناً کفر ښکاره کړی تاسو روستو د ایمان (ښکاره کولو) ستاسو نه۔

اِنْ نَّعْفُ عَنْ طَآئِفَةٍ مِّنْكُمْ نُعَذِّبْ طَآئِفَةً ۢ

که معافی اوکړو مونږ د یو ډلے ستاسو نه (په توفیق د توبے) نو عذاب به ورکړو بلے ډلے ته

بِاَنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ (۴۹) ۶۶ ع اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ

په دے وجه چه دوی مجرمان دی۔ منافقان سړی او منافقانے ښځے

بَعْضُهُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ يَاْمُرُوْنَ (۵۰) بِالْمُنْكَرِ وَيَنْهَوْنَ (۵۱)

بعض د دوی د بعضو نه دی، حکم کوی په ناروا او منع کوی

عَنِ الْمَعْرُوْفِ وَيَقْبِضُوْنَ (۵۲) اَيْدِيَهُمْ ؕ

د نیکئ نه او بند ساتی لاسونه خپل۔

او دا مصداق دے د هغه مَثَل مشهور چه "عذر گناه بدتر از گناه" ځکه چه خوض او لعب په الله او رسول او ایاتونو پورے غټ گناه دے او جصاص او رازی لیکلی دی چه کلمه د کفر په توقه سره وئیل هم کفر دے۔

تَخُوْضُ، خوض په ناجائز خبرو کښ مشغولیدل د پاره د گپ شپ۔ نَلْعَبُ یو ناجائز قول یا عمل کول د پاره د وخت تیرولو اگرچه هغه ئے مقصد نه وی۔

تَسْتَهْزِءُوْنَ، دا دلیل دے چه خوض او لعب مرادف دے د استهزاء سره او استهزاء بالله عام دے یعنی د هغه په نومونو او صفتونو او حکمونو پورے استهزاء کول۔ ملا دے ایت کښ هم زورنه ده منافقانو ته او د هغوی دوه صفات قبیحه ذکر دی او دا ایت دلیل دے په دے خبره چه څوک په الله تعالیٰ پورے یا رسول صلی الله علیه وسلم او قرآن پورے توقے کوی او هغه سپک گڼړی نو هغه کافر دے او مرتد دے۔

اِنْ نَّعْفُ، مراد دا دے چه الله تعالیٰ بعض منافقینو ته توفیق د توبے ورکړه او هغوی ئے معاف کړل۔ په دے کښ اشاره ده چه توبه د مرتد هم قبلیږی۔

مُجْرِمِيْنَ، هغه کسان چه په گناه باندے پاښه وی توبه نه اوباسی۔

نَسُوا اللّٰهَ فَنَسِيَهُمْ ۗ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ

هیر کړے دے دوی الله تعالی لره، نو الله تعالی هم پریخودل دوی لره (بے برخے کول سره دَ خیر نه) یقیناً منافقان خاص دوی

الْفٰسِقُوْنَ ﴿٦٧﴾ وَعَدَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ

لوئے نافرمان دی۔ وعده کړیده الله تعالی دَ منافقو سړو سره

وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ

او منافقو ښځو سره او دَ کافرانو سره دَ اور دَ جهنم همیشه به وی دوی

فِيْهَا ۗ هِيَ حَسْبُهُمْ ۚ وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَلَهُمْ

په هغے کښ۔ هغه پوره سزا دَ دوی ده، او لعنت کړے دے په دوی باندے الله تعالی، او دوی لره

عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿٦٨﴾ كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْٓا

عذاب همیشه دے۔ تاسو یئ پشان دَ هغه کسانو چه مخکښ وو ستاسو نه، وو هغوی

اَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۗ

زیات ستاسو نه په طاقت کښ او ډیر وو په مالونو او په اولاد کښ۔

ﷺ په دے ایت کښ زورنه ده منافقانو ته او دَ هغوی شلور صفات قبیحه ئے ذکر کړیدی۔
بَعْضُهُمْ مِّنْ بَعْضٍ، معنیٰ دا ده چه دوی دَ یو بل په شان دی په ټولو کښ دَ دین نه اوړاړنګ په دے صفاتو ذکر شوو کښ۔ او اشاره ده دے ته چه په دے حکم کښ نارینه او زنانه برابر دی۔ لفظ دَ مِنْ استعمالیږی په تشبیه او اشتراك عمل کښ۔
وَيَقْبِضُوْنَ اَيْدِيَهُمْ، مراد دَ دے نه پریښودل دَ جهاد او دَ انفاق فی سبیل الله او دَ نورو واجباتو دی۔
نَسُوا اللّٰهَ، مراد دَ دے قصداً پریښودل دی خو دا سے پریښودل چه اوګرځی په شان دَ هیر شوی مطلب دا دے چه دوی پریښودلے دے ذکر او طاعت دَ الله تعالی لره۔
ﷺ دے ایت کښ یره اُخروی ده منافقینو ته په پینځه طریقو سره۔
وَعَدَ، دَ دے اکثر استعمال په خیر کښ وی او دَ اوعد استعمال په شر کښ وی لیکن هر کله چه دَ وعد سره نار جهنم ذکر شو نو مراد دَ دے نه وعید دے۔

فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ فَاسْتَمْتَعْتُمْ

پس فائده واخسته هغوی په برخه خپله نو تاسو هم فائده واخسته

بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

په برخه ستاسو لکه چه فائده اخستے وه هغه کسانو چه مخکښ وو ستاسو نه

بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا ط

په برخه خپله او مشغول شوئ تاسو پیشان دَ هغے کسانو چه مشغول شوی وو۔

اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا

دغه کسان برباد شویدی عملونه دَ هغوی په دُنیا کښ

وَالْاٰخِرَةِ ج وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۶۹﴾

او په اخرت کښ او دغه کسان هم دوی تاوان والا دی۔

۶۹ پہ دے ایت کښ تشبیه دَ دے منافقانو او کافرانو ده دَ مخکښنو کافرانو سره پہ هغه صفاتو قبیحو کښ چه تیر شوی دی او پہ صفت دَ استمتاع او خوض کښ نو دا دوه نور قبیح اوصاف جامعه دی او پہ سزا کښ۔ فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ، پہ دے کښ اشاره ده صفت دَ فاسقانو او فاجرانو ته چه هغوی دَ دُنیا خیزونه دَ خپل خواهش مطابق استعمالول۔ وَخُضْتُمْ، پہ دے کښ اشاره ده مرض دَ مبتدعینو او دَ مکذبینو دَ حق ته چه هغوی دَ ځان نه دین ایجاد کړے وی دَ خپل خواهشاتو مطابق۔ كَالَّذِيْنَ، دَ دے نه مخکښ لفظ (اَنْتُمْ) پټ دے۔ قُوَّةً، طاقت دَ بدنونو یا زور دَ ظلم او دَ نیولو دَ مظلومانو مراد دے۔ فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ، دَ خلاق نه مراد دَ دُنیا مالونه او مرتبے دی چه دا تقدیری برخه ده دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او دا لفظ ئے ځکه ذکر کړو چه دلالت اوکړی پہ قباحت دَ تیر شوی خلقو بیا روستو جمله کښ ئے هغوی دَ عمل سره تشبیه ورکړے شوه۔ فِي الدُّنْيَا، حبط پہ دنیا کښ دا دے چه نتیجه دَ خیر پہ هغے کښ نه حاصلیږی دا رنګ پہ دنیا کښ دَ هغوی مدح پہ عباداتو دَ هغوی سره نه کیږی چه دا منتقی دے مونځګذار دے یا حاجی دے۔ وَالْاٰخِرَةِ، او پہ اٰخرت کښ پہ دغه عملونو سره ثواب نه حاصلیږی۔

أَلَمْ يَأْتِهِمْ نَبَأُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ قَوْمِ

آيا نه دے راغلې دوى ته خبر دَ هغه كسانو چه مخكښ وو دَ دوى نه قوم دَ

نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ ۙ وَقَوْمِ إِبْرَاهِيمَ

نوح (عليه السلام) او عاديان او ثموديان او قوم دَ ابراهيم (عليه السلام)

وَأَصْحَابِ مَدْيَنَ وَالْمُؤْتَفِكَاتِ ۚ أَتَتْهُمْ

او اوسيدونكى دَ مدين او دَ الټه كړے شوو كلو والا (قوم لوط) راغلى دى دوى ته

رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ ۖ فَمَا كَانَ اللَّهُ

رسولان دَ دوى په ښكاره حكمونو سره نو نه وو الله تعالىٰ

لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ

چه ظلم ئے كړے وے په دوى باندے ليكن وو دوى په خپلو ځانونو باندے

يَظْلِمُونَ ﴿٧٠﴾ وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ

ظلم كوونكى - او مؤمنان سړى او مؤمنانے ښځے

بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ

بعض دَ دوى دوستان دَ بعضو دى حكم كوى په نيكئ سره

ښكـ دا آيت تفسير دے دَ مخكښ آيت دَ پاره چه په هغے كښ فرمائيلى وو كَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ، يعنى ذكر دَ مخكنو قومونو مكذبينو دے سره دَ اشارے كولو نه دَ هغوى دنيوى عذابونو ته چه په نورو سورتونو مكيو كښ ذكر دى دا قومونه په سورة حج ۴۲ ۴۳ ۴۴ كښ او په سورة ص ۱۲ ۱۳ كښ ذكر دى -

أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ، مراد دَ ظلم نه تكذيب او كفر كول دى چه هغه سبب دَ عذاب دَ دوى او گرځيدلو -

وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ

او منع کوي د بدئ نه او پابندي کوي د مانځه

وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ وَيُطِيعُونَ اللّٰهَ وَرَسُولَهٗ

او ورکوي زکوٰة لره او تابعداري کوي د الله تعالیٰ او د رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغه

أُولٰٓئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّٰهُ إِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ

دغه کسان خامخا رحم کوي په دوي باندې الله تعالیٰ. يقيناً الله تعالیٰ زوراور دې

حَكِيمٌ ﴿٧١﴾ وَعَدَ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنٰتِ

حکمتونو والا دې. وعده کړې ده الله تعالیٰ د مؤمنانو سره او د مؤمنانو ښځو سره

جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ

د باغونو چه بهيږي لاندې د هغې نه ويالې هميشه به وي دوي

ملک دې ايت کښې صفات د مؤمنانو دي په مقابله د منافقانو کښې. فائده: د دوی په بارة کښې اولياء لفظ دې او د منافقينو په باره کښې بَعْضُهُم مِّنْ بَعْضٍ لفظ ووئيلې نکته دا ده چه د مؤمنانو زړونه يو دي په محبت کولو کښې د يو بل سره او په شفقت کولو کښې په يو بل باندې او هرچه منافقان دي د هغوی په زړونو کښې د يو بل سره اختلاف دې ليکن په حکم کښې د يو بل سره پيوست دي.

بِالْمَعْرُوفِ، شريعي وئيلي دي چه هر خير او طاعت چه شرعي وي نو اول په هغې کښې ايمان او توحيد او سنت داخل دي.

الْمُنْكَرِ، هر هغه څيز چه په شرع کښې د هغې قباحت معلوم وي اول په هغې کښې شرک او بدعت داخل دې.

وَيُطِيعُونَ، دا په مقابله د نَسُوا اللّٰهَ (په صفت د منافقانو) کښ دے. د دې صفتونو خلاصه څلور اموردي اول په کورنئ کښې ولايت يعنې د نورونه براءت دويم دعوت دريم نيک اعمال څلورم اتباع د قرآن او حديث. په دې ايت کښې معلومه شوه چه دعوت د حق په زنانو باندې هم لازم دې ليکن د نارينو او د زنانو په اوصافو کښې شرعًا فرق وي د هغې لحاظ کول ضروري دي.

فِيهَا وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنّٰتِ عَدْنٍ ؕ

په هغې کښې او په ځايونو مزيدارو په جنتونو د هميشوالي کښې.

وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ اَكْبَرُ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ

او رضامندي د الله تعالیٰ ډېر لوئې نعمت دې. دا کاميابي

الْعَظِيْمُ ﴿۷۲﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ

لويه ده. اے نبي (صلی الله عليه وسلم) جهاد کوه د کافرانو سره

وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ؕ وَمَاْوٰىهُمْ

او منافقانو سره او سخت شه په مقابله د هغوی کښې. او ځائے د دوی (کافرانو)

جَهَنَّمُ ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۷۳﴾ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ

جهنم دے. او بد دے ځائے د ورتللو (دا جهنم). قسمونه کوي دوی په الله تعالیٰ باندے

۷۲ دے ايت کښې زيرے اخروي دے مؤمنانو ته په مقابله د عذاب د منافقانو کښې.
وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً يعني بنگلې به وي جوړے کړے شوے د ملغلرو او د ياقوت وغيره نه او خوشبويه به وي او په منزل د پټوسوو کالو کښې د هغې خوشبوئي به خورېږي او مشتمل به وي په بے شماره نعمتونو سره. په دے ايت کښې لفظ جَنّٰتٍ دوه کرته ذکر دے يو وجه داده چه د اول نه مراد دار د ثواب دے د ټولو مؤمنانو د پاره او د دويم نه مراد باغونه دي بله وجه داده چه د اول نه ټول جنت مراد دے او د دويم نه مراد په جنت کښې يو معيّن ځائے دے. په دے ايت کښې والمؤمنات هم ذکر کړے شوے دے د پاره د دے چه څوک وهم اونکړي چه دا سورت د جهاد په باره کښې دے او جهاد خو د نارينو کار دے نو جنت به صرف د هغوی وي؟
۷۳ په دے ايت کښې خطاب دے پيغمبر ته او داخل دي په دے خطاب کښې مؤمنان هر کله چه مخکښې ايا تونو کښې مقابله ذکر شوه په صفاتو او حالاتو کښې د کافرانو او د منافقينو سره نو اوس په دے ايت کښې اعلان د جهاد دے د ټولو کافرانو سره او جهاد د کافرانو سره په توره سره او په ژبه سره دے او جهاد د منافقانو سره که هجرت ئے نه وي کړے نو هم په توره سره دے او که په دار اسلام کښې وي نو په ژبه سره دے. وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ غلظت مقابل د شفقت دے

مَا قَالُوْا ۭ وَلَقَدْ (۵۶) قَالُوْا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوْا

چه نه دي ويلي دوي سا په باره کښې. او يقيناً ويلي ده دوی کلمه (خبره) دَ کفر او کفر يې ښکاره کړيدے

بَعْدَ اِسْلَامِهِمْ وَهَمُّوْا (۵۷) بِمَا لَمْ يَنَالُوْا ۚ

پس دَ اسلام ښکاره کولو دَ دوی نه او قصد يې کړيدے دَ هغے کار چه حاصل يې نه کړو

وَمَا نَقَمُوْٓا (۵۸) اِلَّآ اَنْ اَغْنٰىهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ

او به نه کتنري دوی مگر دا خبره چه مالدار کړل دوی لره الله تعالیٰ او رسول (صلی الله علیه وسلم) دَ هغه

مِنْ فَضْلِهٖ ۚ فَاِنْ يَّتُوْبُوْا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ

دَ فضل دَ الله تعالیٰ نه، پس که دوی توبه ويستله نو وی به غوره دَ دوی دَ پاره

وَاِنْ يَّتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ

او که دوی مخ اوګرځولو نو عذاب به ورکړي دوی ته الله تعالیٰ عذاب دردناک

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ فِي الْاَرْضِ

په دُنيا کښې او په آخرت کښې، او نه به وی دوی لره په ټوله زمکه کښې

مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ (۷۴) وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللّٰهَ

څوک دوست او نه مدد گار۔ او بعض دَ دوی نه هغه څوک دي چه لوظ يې کړيدے الله تعالیٰ

او ويلے کيږی سختوالی دَ زړه ته په معامله کښې مراد دا دے چه دَ دے دواړو ډلو سره هيڅ شفقت او نرمی مه کوئ او دَ دوی په مقابله کښې کلک شئ دَ ځلے کنځل کول دَ دے نه نه دی مراد۔ دا رنګ غلظت نه مراد ذکر دَ هغه عيبونو دَ منافقانو دے چه په دے سورت کښې ذکر شويدی۔

(۵۶) په دے آيت کښې زور نه ده منافقانو ته دَ هغوی په دريو صفاتو قبيحو سره هر کله چه مخکښې آيت کښې منافقان يې شريک کړل په حکم دَ کافرانو کښې نو هغوی انکار اوکړو دَ کفر کولو نه په قسم کولو سره نو په دے آيت کښې دَ هغے جواب دے۔ كَلِمَةَ الْكُفْرِ نه مراد کنځل کول دی پيغمبر ته او طعن کول دی په اسلام باندے۔ وَهَمُّوْا بِمَا لَمْ يَنَالُوْا مراد دَ دے نه واقعه دَ هغه دولس (۱۲) منافقانو ده په

لَئِنْ اٰتٰنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ

که چیرے راته یې کړو مونږ ته د فضل خپل نه (څه مال) نو خامخا صدقه به کوو

وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝۷۵ فَلَمَّآ اٰتٰهُمْ

او خامخا شو به د نیک عمل کوونکو نه. نو هرکله چې ورکړو الله تعالیٰ دوی ته

مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝۷۶

د فضل خپل نه نو شومتیا اوکړه دوی په هغې سره او اوګرځیدل (د لوظ خپل نه) او دوی مخ اړوونکی دی.

فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ

پس پیدا کړو الله تعالیٰ منافقت په زړونو د دوی کښې تر هغې ورځې پورې

غزوه تبوک کښې چه اراده یې کړې وه د قتل د پیغمبر لیکن هغه اراده کښې کامیاب نه شول ځکه چه الله تعالیٰ نبی لره خبر ورکړو. وَمَا نَقَمُوْٓا مراد د دے دا دے چه منافق سړے د احسان کوونکی سره بدا کوی. په دے ایت کښې نسبت د مالدارکولو الله تعالیٰ ته په طریقه د ورکولو سره دے او نسبت د هغې رسول صلی الله علیه وسلم ته په طریقه د تقسیم سره دے یعنی رسول صلی الله علیه وسلم به دوی ته په مال فئ او غنیمت او زکوٰة کښې مالونه ورکول تر دے چه دوی مالدار شول. ځکه حدیث شریف کښې راغلے دی اِنَّمَا اَنَا قَاسِمٌ وَاللّٰهُ يُعْطِىْ" یقینًا زه تقسیم کوونکے یم او الله تعالیٰ ورکوی".

۷۵ په دے ایت کښې اشاره ده بل قسم منافقینو ته او د هغوی قبیحه صفاتو ته چه نذر اوکړی د الله تعالیٰ په نوم او هغه نه پوره کوی او وعده اوکړی د الله سره او د هغې هم خلاف کوی. فائده: ډیرو مفسرینو په سبب د نزول د دے ایت کښې ثعلبه بن حاطب انصاری لیکلے دے لیکن هغه صحیح نه دے ځکه چه هغه بدری صحابی وو هغه منافق نه شی کیدلے په دغه قصه باندے ډیرو اهل علمو رد کړیدے بیهقی په دلائل النبوة کښې دیته ضعیف وئیلی دی او ابن عبد البر او ابن الاثیر او هیثمی په مجمع الزوائد او صاحب د فیض القدیر او نسیب رفاعی په مختصر ابن کثیر او سیوطی وغیره هم ورته ضعیف وئیلی دی.

۷۶ په دے ایت کښې دوه صفات قبیحه د منافقانو ذکر دی او دا ایت دلیل دے په دے بانئ چه څوک د نذر صحیح وفا نه کوی نو هغه ګنهګار دے.

يَلْقَوْنَهُ بِمَآ أَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوهُ وَبِمَا

چه مخامخ به شي دوى د هغه ساره په سبب د دے چه خلاف کړے دے دوی د الله تعالىٰ نه د هغے وعدے چه کړے يې د هغه سره او په دے وجه

كَانُوا يَكْذِبُونَ ﴿٧٧﴾ أَلَمْ يَعْلَمُوٓا أَنَّ اللّٰهَ

چه دوى دروغ وئيل. آيا نه پوهيږى دوى چه يقيناً الله تعالىٰ

يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوٰىهُمْ وَأَنَّ اللّٰهَ

پوهيږى په پټو خبرو د دوى او په جرګو د دوى او يقيناً الله تعالىٰ

عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿٧٨﴾ الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ

ښه پوهيدونکے دے په ټولو عيبونو باندے. (دا منافقان) هغه کسان دى چه عيب لګوى په رغبت کوونکو

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقٰتِ وَالَّذِينَ

د مؤمنانو نه په صدقو ورکولو کښ او هغه کسان

لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُونَ ﴿٧٩﴾

چه نه مومى هغوى مګر مزدورى خپله پس دوى مسخرے کوى

ربط: دا آيت هم متعلق دے د تير شوى آيت سره او په دے کښ يو صفت قبيحه د هغوى ذکر دے۔

يَوْمِ يَلْقَوْنَهُ مراد د دے نه ورځ د مرګ ده۔

فَأَعْقَبَهُمْ ضمير فاعل راجع دے الله تعالىٰ ته يا راجع دے بخل ته او يَلْقَوْنَهُ ضمير هم راجع دے الله تعالىٰ ته يا بخل ته په تقدير د جزاء د بخل سره۔

ربط: دا هم زوړنه ده منافقينو ته او مطلب دا دے چه الله تعالىٰ د دے منافقانو په ټولو عملونو باندے عالم دے نو دوى له به سزا ورکوى۔ او آيت ښکاره دليل دے په دے خبره چه علم د غيب خاص صفت د الله تعالىٰ دے۔

سِرَّهُمْ هغه خبرے چه په زړه کښ وى او نَجْوٰىهُمْ پټے جرګے کول۔

مِنْهُمْ ۙ سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ ۫ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۷۹﴾

په هغوی پورې. الله تعالٰی به سزا د مسخرو ورکوي دوي ته، او دوی لره عذاب دردناک دے.

اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۭ اِنْ تَسْتَغْفِرْ

که بخنه غواړې ته دوی لره او که نه غواړې بخنه دوی لره (یو شان ده) - که ته بخنه اوغواړې

لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ۭ

دوی لره اویا کرته نو هیچرې بخنه نه کوی الله تعالٰی دوي ته.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۭ

دا په دے وجه چه یقینًا دوی کفر کړیدے په الله تعالٰی او په رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغه

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۸۰﴾ ع

او الله تعالٰی نه ورکوی توفیق د هدایت قوم نافرمان ته.

۱۰ ع ۸ ۱۶

ملګ دے ایت کښې هم زوړنه ده منافقینو ته او د هغوی دوه صفات قبیحه ذکر دی مراد دا دے که څوک د الله تعالٰی په لاره کښې ډیر خرچ کوی د مالداری د وجے نه نو منافقان په هغه باندے عیب لګوی چه دا ریاکار دے او که څوک لږ خرچ کوی د غریبۍ د وجے نو منافقان هغه پورے مسخرے کوی. فائده: دا ایت دلیل دے په دے خبره چه څوک په صحابه کرامو طعن کوی نو هغه منافقان دی لکه شیعه او روافض ۸۰ په دے ایت کښې خطاب دے پیغمبر او مؤمنانو ته او یره ده منافقینو لره چه هغوی د پاره استغفار نه قبلیږی. ابتداء کښې دے ایت کښې اختلاف دے بعضو علماؤ وئیلی دی چه مقصد په دے کښې نا امیده کول دی د مغفرت د هغے نه نو استغفار د هغے د پاره بے فائدے شو او د بعضو علماؤ په نیز دا اختیار ورکول دی. حدیث د بخاری دلیل دے چه دا اختیار روؤ نبی صلی الله علیه وسلم ته لیکن بیا منسوخ شویدے په ایت ۸۴ او ۱۱۳ باندے. سَبْعِيْنَ مراد په دے سره صرف اویا نه دی بلکه بناء په عادد د عربو دا لفظ استعمالیږی د ډیر والی د پاره عدد د سبع دا سے عدد دے چه مشتمل دے په ټولو صفتونو د عدد باندے فرد او زوج اصم او منطق احد او مرکب او دا رنګ اوه مرتبے د عدد دی. یو بیز- لسیز- سلیز- زریز- لس زریز-

فَرِحَ الْمُخَلَّفُوْنَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ (٦٤)

خوشحاله دي داپاتې کړے شوي (دَ جهاد نه) په کیناستلو خپلو باندے په خلاف

رَسُوْلِ اللّٰهِ وَكَرِهُوْٓا اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ (٦٥)

دَ رسول الله کښ او بدکنړي دوي چه جهاد اوکړي په مالونو خپلو

وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَالُوْا لَا تَنْفِرُوْا (٦٦)

او په ځانونو خپلو سره په لار دَ الله تعالیٰ کښ اووائي دوي (نورو خلقوته) مه اوځئ

فِي الْحَرِّ ط قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا ط لَوْ كَانُوْا

په ګرمئ کښ (جهاد لره). ته ورته اووایه اور دَ جهنم ډیر سخت ګرم دے که چرے دوي

يَفْقَهُوْنَ (٦٧) ﴿٨١﴾ فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا وَّلْيَبْكُوْا

پوهیدلے (نو دا سے به ئے نه کولے). نو او دې خاندي دوي لږه موده او او دې ژاړي

سل زریز ـ ملیون ـ نو دَ دے وجے نه عرب دَ ډیر والي دَ پاره سبع ذکر کوي او کله دَ تاکید دَ پاره سبعین ذکر کړي او دَ زیات تاکید دَ پاره سبعمائة ذکر کوي.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا اشاره ده چه عدام مغفرت دَ دوي دَ وجے دَ نقصان دَ نبي صلی الله علیه وسلم او دَ بخل او قصور دَ الله تعالیٰ نه نه دے بلکه دَ دوي دَ کفر دَ وجے نه دے.

سله ۸۱ دے ایت کښ هم زورنه ده منافقینو ته او نخلور صفات قبیحه ذکر شوي دي. دَ اول صفت مطلب دا دے چه کیناستل دَ جهاد نه یو ګناه دے او مخالفت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دویم ګناه دے او خوشحالي په هغې باندے دریم ګناه دے او دا مرض دَ مبتدا عینو هم دے چه په هغه عمل چه خلاف دَ رسول وي خوشحالي کوي. الْمُخَلَّفُوْنَ دوي اګرچه پخپله پاتے شوے وو دَ جهاد نه لیکن دا په حقیقت کښ قهر او غضب دے دَ الله تعالیٰ په دوي باندے یعنی الله تعالیٰ پاتے کړل دوي لره لکه په سلا کښ تیر شول. خِلٰفَ په معنی دَ مخالفت سره دے او دا مفعول له دے یا په معنی دَ خلف سره دے. يَفْقَهُوْنَ یعنی علم دَ فرق دَ دنیا او دَ اخرت او دَ مشقتونو او دَ نعمتونو دَ دواړو او دا حقیقي علم دے دَ دے وجے نه دیته فقاهت اوئیلے شو.

كَثِيْرًا ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٨٢﴾

ډيره موده، بدله ورکيدېشي په سبب د هغې عملونو چه دوی ئې کوی.

فَاِنْ رَّجَعَكَ اللّٰهُ اِلٰى طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ

پس که واپس راوستے ته الله تعالیٰ یوے ډلے ته د دوی نه

فَاسْتَاْذَنُوْكَ لِلْخُرُوْجِ فَقُلْ لَّنْ تَخْرُجُوْا

نو اجازت به غواړی ستانه د پاره د وتلو (جهاد د پاره) نو ته ورته اووایه هرګز مه اوځئ

مَعِيَ اَبَدًا وَّلَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِيَ عَدُوًّا ۭ اِنَّكُمْ

زما سره هیچرے او هیڅ کله جهاد مه کوئ زما ملګرتیا کښ دشمن سره. یقیناً تاسو

رَضِيْتُمْ بِالْقُعُوْدِ اَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوْا

رضا شوی یئ په کیناستلو اول ځل . نو کینئ .

مَعَ الْخٰلِفِيْنَ ﴿٨٣﴾ وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ

د پاتے کیدونکو سره . او مونځ (جنازه) مه کوه په هیڅ یو د دوی نه

٨٢ دا هم زورنه ده منافقانوته او په دے سره امر مراد نه دے بلکه خبر او زورنه مراد ده او دا رنګ وَلْيَبْكُوْا په امر سره خبر مراد دے او د قَلِيْل نه مراد دنیا ده او د كَثِيْر نه مراد جهنم دے او د ضحك او بكاء نه مراد معنی حقیقی ده او احتمال دے چه مراد وی د دے نه خوشحالی او غمونه.

فائده: خندا کول بغیر د قهقهے نه د نبی او د صحابه کرامو نه ثابت ده لیکن ډیر والے د هغې عمل د بے وقوفانو دے.

٨٣ دے ایت کښ هم زورنه ده منافقانوته او په دے کښ منع کول د دوی دی په ائنده زمانه کښ د وتلو د جهاد د پاره او هر کله چه دا ایتونه په سفر د تبوک کښ نازل شوے وو نو ځکه ئې اوفرمائیل چه فَاِنْ رَّجَعَكَ اللّٰهُ او الْخٰلِفِيْنَ زنانه او اوواړه او کمزوری سړی په دے کښ داخل دی. او خالفین فاسدینو ته هم وائي او فاسدین په معنیٰ د ګنداه بانده دے او فراء وئیلی دی چه خالفین مخالفت کوونکو ته هم وئیلے شی. فائده: په دے ایت کښ دلیل دے په دے خبره چه

مَّاتَ اَبَدًا وَّلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ ؕ اِنَّهُمْ

چه مړشي هيڅ کله او مه اودريږه دَ هغه دَ قبر په خوا کښې - يقيناً دوی

كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَمَاتُوْا وَهُمْ

کفر کړے دے په الله تعالیٰ او په رسول (صلی الله علیه وسلم) دَ هغه او مړه شوی دی په داسے حال چه دوی

فٰسِقُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَاَوْلَادُهُمْ ؕ

نافرمان وو - او تعجب کښې دے نه اچوی تا لره مالونه دَ دوی او اولاد دَ دوی

اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الدُّنْيَا

يقيناً غواړی الله تعالیٰ چه عذاب ورکړی دوی لره په هغے سره په دنيا کښې

خلاف کوونکی وی دَ پيغمبر نه نو دَ هغوی سره ملګرتيا منع ده هم دارنګ امام رازی په تفسير کبير کښې ذکر کړے دی. اِلٰى طَآئِفَةٍ طائفه ئے ځکه اوئيل چه په دوی کښې بعضو ايمان راوړو او بعض دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ واپس راتللو نه مخکښې مړه شول. يا طائفه نه مراد منافقين دی ځکه چه پاتے شوی بعض مومنان وو.

۸۴ دا عطف دے په مخکښې آيت کښې فقل باندے په مضمون کښې او دَ فَاسْتَاْذَنُوْكَ دَلالت ے داخل نه دے. په دے آيت کښې هم زور نه ده منافقينو ته اويره ورکول دی چه دَ منافقت دَ وجے نه په دوی باندے جنازه او پس دَ مړګه دوی ته دُعا کول منع دی. وَلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ مطلب دا دے چه دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم عادت وو چه کله به مړے دفن کړے شو او قبر به تيار شو نو دَ هغه دَ قبر په خوا کښې به اودريدلو او دُعا به ئے کوله او دارنګ چه کله زيارت دَ يو قبر به ئے کوؤ نو هم به ئے په اولاړے دُعا کوله ليکن دَ منافقانو دَ پاره دَ دے طريقے نه رسول الله صلی الله عليه وسلم منع کړے شو. دا دليل دے چه دَ قبر په خوا کښې دعا کول په ولاړه سره سُنت ده عَلٰى قَبْرِهٖ علی په معنی دَ عند سره دے ځکه دَ قبر دَ پاسه اودريدل جائز نه دی. اِنَّهُمْ كَفَرُوْا دا علت دے دَ منع دَ صلوٰة او قيام دَ قبر سره دَ پاره دَ دُعا. فٰسِقُوْنَ چه کفر او ګناهونه ښکاره کوی.

وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿٨٥﴾ وَاِذَآ

او اوځي روحونه دَ دوی او حال دا چه دوی کافران وی. او کله چه

اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ اَنْ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَجَاهِدُوْا

نازل کړی شی یو سورت (ددے مضمون سره) چه ایمان راوړئ په الله تعالیٰ او جهاد کوئ

مَعَ رَسُوْلِهِ اسْتَاْذَنَكَ اُولُوا الطَّوْلِ مِنْهُمْ

په ملګرتیا دَ رسول (صلی الله علیه وسلم) دَ هغه کښ، نو اجازت غواړی ستانه طاقت والا خلق دَ دوی نه

وَقَالُوْا ذَرْنَا نَكُنْ مَّعَ الْقٰعِدِيْنَ ﴿٨٦﴾

او وائی چه پرېږده مونږه چه شو دَ کیناستونکو سره.

۸۵ دا جواب دَ یو وهم دے که څوک دا وهم اوکړی چه دَ دوی دَ مال او اولاد دَ وجے یا دَ دوی دَ ځامنو دَ وجے نه جنازه کول په دوی باندے به جائز وی؟ نو په دے ایت کښ دَ هغے جواب اوشو او دا بل حکم دَ منافقانو دے عطف دے په لا تصل باندے.

سوال: دا ایت مخکښ ۵۵ کښ تیر شوے دے نو دَ مکرر راوړلو څه فائده ده.

جواب[1]: مخکښ ایت کښ تفریع وه دَ پاره دَ منع دَ قبول دَ نفقاتو دَ دے وجے نه ئے په فا سره راوړلو او دا ایت جواب دَ هغه وهم دے چه مخکښ ذکر شول. جواب[2] مخکښ ایت په باره دَ هغه منافقینو کښ وو چه موجود وو په وخت دَ نزول دَ ایت کښ او دا ایت عام دے او دواړه ایاتونو کښ فرق دے په څلورو طریقو سره اول دا چه دَ هغے په سر کښ فا ده او دَ دے په سر کښ واو دے دَ هغے وجه مخکښ معلومه شوه دویم دا چه هلته کلمه دَ لا دوه کرته وه او دلته یو کرت ده ځکه چه هغه تفریع وه او ابتداء دَ تفریع په تفصیل باندے وی او په دے ایت کښ صرف حکم دے دَ هغے تفصیل ته حاجت نیشته. دریم هلته لیعذبهم په لام سره او دلته ان یعذبهم دے ځکه هلته مفعول حذف دے یعنی تکثیر الاموال والاولاد او دلته ان یعذبهم پخپله مفعول دے. څلورم هلته لفظ دَ الحیاة الدنیا ذکر وو او دلته لفظ دَ حیاة محذوف دے وجه دا ده چه هلته تاکید مقصد وو او دلته مقصد تاکید نه دے (او الله تعالیٰ بنه پوهیږی په حکمت دَ کتاب خپل باندے).

۸۶ دا هم په طور دَ عطف سره ذکر کړو دے ته عطف دَ قصه په قصه باندے وئیلے شی په دے ایت کښ هم زورنه ده منافقینو ته چه کله دَ جهاد اعلان اوشی نو مالداران

رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ (۶۸) وَطُبِعَ

رضا (خوشحاله) دي دوی په دے خبره چه شي دَ پاتے کيدو سره د نکو ښځو سره او مهر وهلے شوے

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ (۶۹) فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ﴿۸۷﴾ لٰكِنِ

په زړونو دَ دوی نو دوی نه پوهيږي (پخپل نقصان باندے). ليکن

الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ جٰهَدُوْا

رسول (صلى الله عليه وسلم) او ايمان والا دَ هغه ملګري جهاد کوی

بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ؕ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ

په مالونو خپلو سره او په ځانونو خپلو سره. او دغه کسان دوی دَ پاره

الْخَيْرٰتُ ز وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۸۸﴾

ډيرے خوشحالئ دي او دغه کسان دوی کامياب دي.

کَ دوی نه دَ پاتے کيدالو کوشش کوی. دَ اٰمَنُوْا نه مراد مؤمنانو کَ پاره هميشګيری دَ ايمان ده او دَ منافقو دَ پاره اخلاص دَ ايمان دے او دا ئے ځکه ذکر کړو چه جهاد بغير دَ ايمان نه نه قبليږي. سُوْرَةٌ څه حصے دَ سورت ته هم سورت وئيلے شی يا مراد دَ سورت نه ټول سورة توبه دے. اُولُوا الطَّوْلِ ئے ځکه خاص ذکر کړل چه دَ دوی طاقت او وس رسی او سره دَ دے نه جهاد نه کوی. الْقٰعِدِيْنَ عام مراد دے که مريضان او معذوران دی او که زنانه او بچي او بوډاګان وی.

۸۷ په دے ايت کښ هم زور نه دے منافقينو ته او دَ هغوی دوه صفتونه قبيحه ذکر دی.

خَوَالِفِ جمع دَ خالفة ده، زنانه او واړه او معذوره سړی دَ دے نه مراد دی. دا رنګ خوالف ذليل کسانو ته هم وائي. يَفْقَهُوْنَ مراد دَ فقاهت نه دلته فرق دے په مينځ دَ فائدو دَ جهاد او دَ نقصانونو دَ ترك الجهاد کښ او دا رنګ په مينځ دَ صحبت دَ مجاهدينو کښ او دَ صحبت دَ زنانو کښ او دا رنګ په مقاصدو دَ سورت باندے پوهه لرل.

۸۸ ۸۹ په دے ايتونو کښ صفت دَ رسول الله او دَ صحابه کرامو دے په جهاد کولو سره په مقابله دَ منافقانو کښ او دوی دَ پاره زيرے اُخروی دے او په لفظ

أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا

تیار کړي دي الله تعالیٰ دوی د پاره باغونه چه بهیږي لاندې د هغې نه

الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ

ویالې همیشه به وي دوی په هغې کښ دا کامیابي

الْعَظِيمُ ﴿٨٩﴾ وَجَاءَ الْمُعَذِّرُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ

لویه ده. او راغلل په دروغه بهانې کوونکي د بانډه چیانو نه

لِيُؤْذَنَ لَهُمْ وَقَعَدَ الَّذِينَ كَذَبُوا اللَّهَ

د دې د پاره چه اجازت اوکړېشي دوی ته، او کیناستل هغه کسان چه دروغ ئې وئیلي وو الله تعالیٰ ته

وَرَسُولَهُ ۚ سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ

او رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغه ته، زر دې چه اورسي هغه کسانو ته چه په کفر پاتې شوي دي د دوی نه

عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٠﴾ لَّيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ

عذاب دردناک. نیشته په کمزورو باندې

د لٰكِنِ کښ فائده دا ده چه منافقان د دا خیال نکوی چه مونږ جهاد نه کوؤ نو بلځوک نیشته چه جهاد اوکړي نو الله تعالیٰ د مجاهدینو شان ذکر کړو او بشارت په څلورو طریقو سره په اول ایت کښ دوه طریقې دی او په دویم کښ هم دوه طریقې دی او په دویم ایت کښ ذکر د خیراتِ اخرویه دے. اَلْخَیْرٰتُ مراد د دے نه منافع د دُنیا او اخرت دی یا مراد د دے نه ښیښیانې دی په جنت کښ لکه سورة رحمٰن ایت ۷۰ کښ دی.

۹۰ په دے ایت کښ هم زور نه ده منافقینو ته او بیان د حال د بانډه چیانو منافقانو دے پس د بیان د حال د مدینې والونه. مُعَذِّرُوْنَ په شد سره هغه چاته وائي چه په دروغه عذر کوی یعنی دے کسانو په دروغه عذر کړے وو او کله چه استعمالیږی د پاره د عذر صحیح. وَقَعَدَ الَّذِیْنَ مراد د دے نه بله ډله ده چه هغوی بغیر د عذر بښکاره کولو نه د جهاد نه پاتې شول او معنیٰ دا ګ چه کیناستل د عذر کولو نه یا مراد د دے نه دا مخکنۍ ډله ده چه دروغ عذر ئې پیش کړو

وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى وَلَا عَلَى الَّذِيْنَ

او نه په مریضانو باندې او نه په هغه کسانو چه

لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ حَرَجٌ اِذَا نَصَحُوْا

نه مومي هغه څیز چه خرچ کړي، څه ګناه (په کیناستلو د جهاد نه) کله چه اخلاص کوي

لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۭ مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ

الله تعالٰی او رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغه کښې. نیشته په احسان کوونکو باندې هیڅ

سَبِيْلٍ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۙ ﴿٩١﴾

ملامتیا. او الله تعالٰی بخونکے رحم کوونکے دے،

وَّلَا عَلَى الَّذِيْنَ اِذَا مَآ اَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ

او نیشته ګناه په هغه کسانو باندې چه کله راغلل تا ته دې د پاره چه سورلی ورکړې دوی ته

او پاتې شول د جهاد نه نو معنٰی دا شوه چه کیناستل د جهاد نه. ګنا بوا مراد د دې دروغونه دعوه د ایمان د دوی ده یا مراد د دې نه دروغ عذر دے. کَفَرُوْا مِنْهُمْ منهم یې ځکه او فرمائیلو چه بعض کسانو د دې نه د نفاق نه توبه ویستلې وه. ملا په دې آیت کښې ذکر د معذوربنو دے چه هغوی د صحیح عذر د وجې نه د جهاد نه پاتې شویدی نو دوی ګنهګار نه دی په دې آیت کښې د هغوی نه درې قسمه ذکر کړیدی. یو ضعیفان، دا عام لفظ دے چه د بدن نه داسې طاقت ختم شوے وی چه په هغې سره جهاد کیدلے شي، لکه ړوند شوے وی، ګوډ، شل یا بوډا شوے وی. دویم مریضان په داسې مرض سره چه په جهاد کولو کښې زیاتی کیږي مرض د هغوی یا هلاکت ته رسوونکي وي. دریم معذور هغه کسان دی چه خرچه د جهاد نه مومي لیکن په دوی یې دوه شرطه لګولې دی یو دا چه نَصَحُوْا لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ نصیحت د پاره د الله تعالٰی اخلاص د عقیدې د توحید او د هر قسم شرک نه بچ کیدل او عمل کول ئې په او امرو د الله تعالٰی او بچ کیدل د منهیاتو د هغه نه او نصیحت د رسول الله دا دے چه ایمان راوړي په هغه او د هغه اطاعت کوي او د هغه توقیر او محبت کوي او د هغه د سنت اتباع کوي او د هغه نه د مخالفت کوونکو سره دُشمني کوي. دویم شرط دا دے

قُلْتَ لَآ اَجِدُ مَآ اَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ ۪ تَوَلَّوْا

نو تا اوئیل چه زه نه مومم هغه څيز چه سواره کړم تاسو په هغې باندے، نو واپس شول دوی

وَّ اَعْيُنُهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا

او سترګو د دوی بهولے اوښکے د وجے د غم نه

اَلَّا يَجِدُوْا مَا يُنْفِقُوْنَ ﴿۹۲﴾ اِنَّمَا السَّبِيْلُ

په دے خبره چه نه مومی هغه څيز چه خرچ کړی يقينًا ملامتيا

عَلَى الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ وَهُمْ اَغْنِيَآءُ

په هغه کسانو ده چه اجازت غواړی ستانه (د پاتيکيدلو د جهاد) او دوی مالداروی

---

مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ په دے کښی اشاره ده دیته چه دا معذورين د خپل طاقت مناسب د ډیے جهاد کوی او احسان کوی د مجاهدينو سره په حفاظت د اهل وعيال او د مالونو د هغوی کښی يا دا چه دوی سره د عذر نه نصيحت يوځائے کړے دے نو د دوی نوم محسنين شو۔

سلا۹۲ دےکښی څلورم قسم معذوره ذکر دی يعنی هغه څوک چه د سفر کولو د پاره سورلی نه مومی او دا د غزوه تبوک په وخت کښی او وه کسان وو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل او طلب د سورلويئے ترينه اوکړو ليکن د هغه طاقت کښی سورلی ورکول نه وو نو دوی ډیر پښيمانه سره واپس شول او ډيره زمانه يئے ژړا کوله او دوی ته بکاوون وئيلے کيدل۔ اول قول دا دے چه دوی پيزار يا موزے غوښتلے وو۔ اول قول غوره دے تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ په دے کلام کښی مبالغه د جزا مقصد ده ځکه چه په اصل کښی دموعهم تفيض من الاعين يا تمتلئ الاعين من الدموع ثم تفيض۔ ترجمه: او ښکے د دوی بهيږی د سترګو نه يا سترګے ډکيږی د اوښکو نه بيا بهيږی۔

فائده: دا ايت دليل دے په دے خبره چه د نبی صلی الله عليه وسلم په اختيار کښی چالہ څاروی ورکول هم نيشته د جهاد د پاره اګرچه هغه په هغه وخت کښی ژوندے وو۔ نو د مرو په لاس کښی نه څنګه څه اختيار وی چه مشرکين خلق د مړو نه څاروی وغيره غواړی۔

رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللّٰهُ

خوشحاله دي په دے خبره چه شي د پاتيكيدونكو ښځو سره ، او مهر وهلے دے الله تعالىٰ

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٩٣﴾

په زړونو د دوی پس دوی نه پوهيږي ـ

س٩٣ په دے ايت كښ زړه نه ده مالدارو منافقينو ته دا په مقابله د لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ او اَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ كښ دے ـ

اَغْنِيَآءُ يعنى دوى قادر دى په نفقه او سورلئ باندے او معذوره نه دى ـ

رَضُوْا جمله مستانفه ده علت دے د طلب د اذن د دوى او په س٨٦ س٨٧ كښ هم دا سے مضمون ذكر وو ليكن هلته هغه اغنياء مراد دى چه ډير مالدار دى ځكه يې هغوى ته اولوالطول ويلے وو او دلته لږے غناء والا مراد دى چه صرف نفقه او سورلئ باندے قادر وى دا رنګ هلته حال د منافقانو په وخت د نزول د سورت كښ ذكر وو او دلته حال د هغوى په وخت د اعلان د غزوه تبوك كښ ذكر دے بيا هر كله چه هلته انزلت مجهول ذكر وو نو طبع يې هم مجهول ذكر كړو ـ او هلته عدم فقاهت په سورت باندے او دلته عدم علم په نقصانا تو د ترك د جهاد باندے مراد دے د دے وجے نه هلته نفى د فقه او دلته نفى د علم يې اوكړله ـ

يَعۡتَذِرُوۡنَ اِلَيۡكُمۡ اِذَا رَجَعۡتُمۡ اِلَيۡهِمۡ ط

دروغ بهانے به كوی دوی تاسو ته كله چه واپس شئ تاسو دوی ته۔

قُلۡ لَّا تَعۡتَذِرُوۡا لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَكُمۡ قَدۡ نَبَّاَنَا

ته ووایه مه كوئ بهانے هیچرے یاورنه كوؤ موتږ په تاسو باندے یقیناً خبر راكړیدے موتږ ته

اللّٰهُ مِنۡ اَخۡبَارِكُمۡ ط وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمۡ

الله تعالیٰ د حالاتو ستاسو نه، او زر ده چه اوبه وینی الله تعالیٰ عمل ستاسو

وَرَسُوۡلُهٗ ثُمَّ تُرَدُّوۡنَ اِلٰى عٰلِمِ الۡغَيۡبِ

او رسول (صلی الله علیه وسلم) د هغه بیا به او گرځولے شئ هغه ذات ته چه عالم دے په هر پټ

وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمۡ بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۹۴﴾

او ښكاره نو خبر به كړی تاسو په هغه عملونو چه تاسو یے كوئ۔

سلف داهم زورنه ده منافقینو ته او داوحی نبی كریم صلی الله علیه وسلم ته په سفر دتبوك كښ راغلے وه په طریقه د پیشنگوییٔ په دلیل د اِذَا رَجَعۡتُمۡ اِلَيۡهِمۡ سره او يَعۡتَذِرُوۡنَ استیناف دے یعنی كه او وئیلے شی چه دوی څنگه استیذان كوی نو طریقه د هغے یٔے ذكر كړه په اعتذار سره۔ يَعۡتَذِرُوۡنَ اعتذار په معنی د دروغژن عذر دے۔ قَدۡ نَبَّاَنَا اللّٰهُ نسبت د انباء الله تعالیٰ ته او حرف د مِنۡ دلیل دے په دے خبره چه نبی صلی الله علیه وسلم په بعض پټو خبرو باندے هله عالم وو چه الله تعالیٰ به ورله خبر ورکړو لکه په سورة تحریم ۳ كښ دی او دا ایت ښكاره دلیل دے په دے خبره چه غیبدان صرف الله تعالیٰ دے۔ وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمۡ لفظ د مستقبل دلیل دے چه مراد د عملكم نه راتلونكی اعمال دی یعنی توبه كول د نفاق نه یا نه كول او امداد كول د مؤمنانو سره په شركت د قتال یا نه كول۔

فائده: د دے ایت نه بعض جاهلانو استدلال كریدے چه نبی صلی الله علیه وسلم حاضروناظر دے د هغے جواب په ډیرو طریقو سره دے اول دا چه په دے ایت كښ لفظ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنۡ اَخۡبَارِكُمۡ د دے خلاف دے دویم دا چه وروستو جمله كښ عالم الغیب صفت د الله تعالیٰ د پاره ذكر شوے دے دریم دا چه په ایت ۱۰۵ كښ المؤمنون هم ذكر دی نو لازم دا شوه چه ټول مؤمنان د حاضروناظروی

سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ

زر دے چه قسمونه به کوی په الله تعالیٰ تاسو ته کله چه واپس شئ تاسو دوی ته

لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ إِنَّهُمْ

دے د پاره چه مخ واړوئ د دوی نه نو مخ واړوئ د دوی نه یقیناً دوی

رِجْسٌ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوا

پلیت دی او ځائے د دوی جهنم دے، بدله به ورکیدېشي د هغه عملونو چه دوی

يَكْسِبُونَ ﴿٩٥﴾ يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ

یئے کوی - قسمونه کوی دوی تاسو ته د د پاره چه رضا شئ تاسو د دوی نه

ښکاره شی (علم) د الله او د رسول کښی د فرق د پاره مفعول یئے مقدم کړے په معطوف (رسوله) باندے دا روستو وجه روح المعانی کښی ذکر کړے ده۔

۹۵ دا ایت بیا زوړنه ده منافقینو ته او د هغوی دوه صفات قبیحه ذکر دی۔ فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ مراد دا دے چه د دوی سره خبرے هم مه کوئ او کیناستل هم مه کوئ۔ لِتُعْرِضُوا مراد د دے نه اعراض د صفح دے یعنی نه ملامته کول او اعرضوا کښی مراد د اعراض نه مجلس او سلام کلام پریښودل دی په دلیل د علت سره چه إِنَّهُمْ رِجْسٌ دے او مراد د دے نه نجاست معنویه باطنیه دے یعنی لکه چه د پلیت څیز نه ځان ساتل ضروری دی نو دا رنګ د دوی نه ځان ساتل لازم دی د پاره د دے چه د دوی پلیتی په تاسو کښی اثر اونکړی۔ فائده: مخکښی ایت کښی رَجَعْتُمْ او يَعْتَذِرُونَ ذکر دے او په دے کښی انقَلَبْتُمْ او سَيَحْلِفُونَ ذکر دے د دے حکمت دا دے چه رجوع مطلق واپسئ ته وئیلے شی که تبدیلی د حال راغلے وی او که نه، او انقلاب تبدیلئ د حال ته وئیلے شی نو په اول ایت کښی صرف واپس کیدل مدینے ته مراد دی قطع نظر د تبدیلئ د حال نه نو هغه وخت منافقان صرف د ملامتیانه د بچ کیدلو د پاره عذرونه پیش کوی او په دے ایت کښی واپسی سره د تبدیل د حال نه مراد ده یعنی مومنان روستو د غلبے نه په تبوک کښی په خوشحالئ واپس شول نو منافقان او یریدل نو قسمونه یئے پیش کړل د پاره د طلب د معافئ کولو۔ فائده: مشرکانو ته یئے نجس وئیلے وو په ۲۸ کښی او منافقانو ته رجس وئیلے دے ځکه نَجَسٌ هغه دے چه پلیتی یئے ښکاره او پټه دواړه وی او

فَإِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَرْضَىٰ (٧٢)

پس که رضا شوئ تاسو د دوی نه نو یقینًا الله تعالیٰ خو نه رضا کیږی

عَنِ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ﴿٩٦﴾ الْأَعْرَابُ أَشَدُّ (٧٣)

د قوم نافرمان نه۔ بانډچیان ډیر سخت دی

كُفْرًا وَنِفَاقًا وَأَجْدَرُ أَلَّا يَعْلَمُوا حُدُودَ

په کفر کښ او په منافقت کښ او لائق دی د دے خبرے چه نه پوهیږی په مطلب

مَا أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ

د هغے احکامو چه نازل کړی دی الله تعالیٰ په رسول (صلی الله علیه وسلم) خپل باندے۔ او الله تعالیٰ پوهه دے

حَكِيمٌ ﴿٩٧﴾ وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يَتَّخِذُ (٧٥)

حکمتونو والا دے۔ او بعض د بانډچیانو نه هغه څوک دی چه ګڼړی

مَا يُنْفِقُ مَغْرَمًا وَيَتَرَبَّصُ (٧٦) بِكُمُ الدَّوَائِرَ

هغه مال چه خرچ کوی (په لار د الله کښ) تاوان او انتظار کوی په تاسو باندے د آفتونو۔

رجُسٌ هغه دے چه پلیتی یٔ پټه وی نو اول وصف د مشرکانو او دویم د منافقانو سره مناسب دے۔

۷۲ داهم زورنه ده منافقانو ته او صریح ده په دے خبره کښ چه الله تعالیٰ د منافقینو نه خفه دے او رضا کیدل اوچت دی د اعراض نه نو دا ترقی ده د ماقبل نه او معلومه شوه چه د منافقانو نه اعراض کول جائز دی لیکن رضا کیدل د هغوی نه منع دی۔

۷۳ داهم زورنه ده بانډچیانو منافقانو ته په ذکر د دوه صفاتو قبیحو سره اَلْاَعْرَابُ جمع د اعرابی ده هغه څوک چه په بانډه کښ اوسی او عربی هغه وی چه نسب یٔ د عربو سره وی۔ وَاَجْدَرُ دا علت دے د اَشَدُّ د پاره یعنی کفر او نفاق د دوی ځکه سخت دے چه دوی د قرآن پاک او د سنت نه او د احکامو د شریعت نه ډیر ناخبره دی۔ حُدُوْدَ لفظ عام دے احکامو او آدابو او معانی او مقاصدو ته۔

عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٩٨﴾

په دوی باندې دې وي آفت ناکاره ، او الله تعالیٰ هرڅه اوري په هرڅه پوهه دې.

وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

او بعضې د باندې چیانو نه هغه څوک دي چه ایمان لري په الله او په ورځ

الْآخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبٰتٍ عِنْدَ اللّٰهِ

د آخرت او ګڼړي خرچ کول په لار د الله تعالیٰ کښې سبب د نزد یکت الله تعالیٰ ته

وَصَلَوٰتِ الرَّسُولِ ۚ أَلَا إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ ۚ

او سبب د دعا ګانو د رسول (صلی الله علیه وسلم). خبر شئ یقینًا دا خرچ کول سبب نیزدې والي د دوی دې

سَيُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ فِي رَحْمَتِهِ ۗ إِنَّ اللّٰهَ

نزدې چه داخل به کړي دوی لره الله تعالیٰ په خاص رحمت خپل کښې. یقینًا الله تعالیٰ

غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩٩﴾ وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ

بخونکې رحم کوونکې دې. او مخکښې کیدونکي ایمان ته چه رومبي دي

ع ١٢ / ١٠

٩٨ دې کښې هم زورنه ده دغې منافقینو ته او د هغوی دوه صفات قبیحه ذکر دي. مَغْرَمًا هغه څیز چه انسان یې واجب او فائده من نه ګڼړي او مجبورًا یې کوي اودا صفت په علاما تو د قیامت کښې هم حساب دې. دَوَآئِر جمع د دائرة ده هغه حالت ته وائي چه بدل شي د نعمت نه مصیبت ته مراد ترینه عامې حادثې دي. عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ دا دُعاء شر ده په دوی باندې په آخر د تولو صفاتو کښې، او د دینه مراد حادثې د مصیبتونو او د عذابونو او د شکست دي.

٩٩ دا ذکر د بعضې باندچیانو مؤمنانو دې په مقابله د منافقانو کښې او بشارت دې هغوی ته. وَصَلَوٰتِ الرَّسُولِ مراد د دې نه دعا ګانې د پیغمبر دي چه هغه به صدقه ورکوونکو ته دعا کوله لکه آیت ١٠٣ کښې راتلونکې دې.

أَلَآ إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ هر کله چه په صلوات الرسول کښې هم مقصد حصول د قربت الٰهي وو که دې وجې نه صرف د قربت ذکر یې په ډیر تاکید سره او کړو او غایه د قربت یې په سَيُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ سره ذکر کړله او د رحمت نه مراد جنتونه دي

مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ

دَ مهاجرينو نه او دَ انصارو نه او هغه كسان چه

اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ

تابعداري كوي دَ دوي په ښه ويتا كولو سره، رضا (خوشحاله) دَ الله تعالٰى دَ دوي نه

وَرَضُوْا عَنْهُ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ

او دوي رضا دي دَ هغه نه او تيار كړيدي دوي لره باغونه چه بهيږي

تَحْتَهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ

لاندے دَ هغے نه ويالے هميشه به وي دوي په هغے كښ هميشه ـ

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝۱۰۰ وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ

دا كاميابي لويه ده ـ او دَ هغه چا نه چه چاپيره دي ستاسو نه

تلـ كـ دے ځائے نه تر اخره دَ سورت پورے خلورمه حصه ده او په دے حصه كښ دريے قسمه دَ صحابو كرامو نه ذكر شويدي په واقعه دَ تبوك كښ. يو قسم مجاهدين دويم قسم پاتے كيدونكي دَ جهاد نه ليكن زر توبه ايستونكي، او دريم قسم پاتے كيدونكي دَ جهاد نه او روستو كوونكي توبے لره. او په دے حصه كښ ترغيبات دي جهاد ته او دارنګ زورنے دي منافقينو ته دَ هغوي په ناكاره اعمالو او په آخر دَ سورت كښ صداقت دَ رسول صلى الله عليه وسلم او دعوه دَ توحيد ده! په دے آيت كښ لوئے والے دَ شان او زيرے په رضا دَ الله تعالٰى او په جنتونو سره دَ ټولو صحابو رضوان الله اجمعين دَ پاره ذكر دے. او دارنګ هغه كسان چه دَ صحابه كرامو تابعداري كوونكي وي سره دَ دے نه چه مدحه كوي دَ صحابو په دے آيت كښ دوه قوله دي دَ اول دا چه دَ السابقون نه مراد هغه صحابه كرام دي چه دَ ټولو نه مخكښ دَ ايمان او هجرت او نصرت صفت ئے حاصل كړيدے او دَ والذين اتبعوا نه مراد نور صحابه كرام دي چه روستو ئے ايمان راوړے دے او دا دواړه قسمونه دَ سورة انفال په ۷۲ ـ ۷۵ كښ ذكر شويدي نو آيت صرف دَ صحابه كرامو په باره كښ دے او تائيد دَ دے روايت دَ محمد بن كعب قرظي دے چه خازن او آلوسي وغيره نقل كړے دے. دويم قول دا دے چه مراد السابقون الاولون نه ټول صحابه كرام دي لكه چه

مِنَ الْأَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۛؕ وَمِنْ اَهْلِ

دَ بانډيچيانو نه منافقان دي ـ او بعض دَ

الْمَدِيْنَةِ ۛ مَرَدُوْا عَلَى النِّفَاقِ لَا تَعْلَمُهُمْ

مدينې والو نه كلك دي په منافقت باندې، ته نه پيژنې دوي

نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ

مونږ پيژنو دوي لره زر دې چه عذاب به ورکړو دوي لره دوه کرته



الواحدي په تفسير الوجيز کښې ذکر کړې دي چه ټول صحابه کرام دَ اُمت نه مخکښې دي په ايمان راوړلو او په صحبت او رويت دَ نبي صلى الله عليه وسلم کښې ـ او وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْ نه روستو خلق مراد دي په شرط دَ اتباع او دَ احسان سره ترقيامته پورې نوبنا په اول قول باندې په دې ايت کښې تفاوت دَ مرتبو دَ صحابو ته هم اشاره ده يو قسم وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ او دويم قسم دَ هغوي نه روستو ايمان راوړونکي ـ دَ سٰبِقُوْنَ معنیٰ دا ده چه دَ نورو کسانو نه يې مخکښې ايمان راوړې دې او دَ پيغمبر تابعداري يې کړې ده او هجرت او نصرت يې کړې دې او دَ اَلْاَوَّلُوْنَ مراد دا دې چه دَ دوي زمانه دَ ايمان راوړلو دَ نورو نه مخکښې ده ـ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ په دې کښې دوه قوله دي اول قول دَ دې نه روستو صحابه کرام مراد دي چه هغوي دَ مخکنو صحابه کرامو تابعداري کړې ده ـ دويم قول هغه کسان مراد دي چه ترقيامته پورې دَ صحابه کرامو تابعداري يې کړې وي ـ بِاِحْسَانٍ دوه معنې دي اوله معنیٰ دا ده چه تابعداري کوي دَ هغوي په هغه کارونو کښې چه هغه دَ قرآن وسنت موافق وي، نو کوم کارونه چه دَ هغوي نه په خطايئې صادر شوې وي هغه ترينه خارج شول ـ دويمه معنیٰ دا ده چه تابعداري کوي دَ صحابه کرامو سره دَ نيکي ويناله په باره دَ هغوي کښې نو په دې لفظ سره هغه خلق خارج شول چه هغوي دَ صحابه کرامو عيبونه بيانوي او په هغوي طعن کوي لکه شيعه گان او روافض وغيره ـ

نکته: دَ تاکيد دَ بشارت دَ وجې نه دَ تَحْتَهَا نه مِن غورځولې دې چه دلالت کوي په ډير نزديکت باندې سره دَ لاندې والي نه ـ

ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾

بيا به اوگرځولے شي دوى عذاب لوئے ته۔

ربط: دے آیت کښ ذکر دے د منافقینو او هغوی له یره وړکول دی په عذاب سره او ربط د دے د هغکښ آیت سره ربط د مقابلے دے یعنی د منافقانو مقابل صحابه کرام دی۔

لَا تَعْلَمُهُمْ الوسی او قرطبی وئیلے دی چه دا آیت صریح دلیل دے په دے خبره چه پیغمبر پاک تر اخره وخت پورے هم په غیب باندے نه پوهیدلو ځکه چه دا سورت د هغه سورتونو نه دے چه په نهم او لسم کال د هجرت نازل شوے دی۔ بل دا دلیل دے په دے خبره چه د هیچا په باره کښ یقیناً حکم نه شی کیدے چه دا جنتی دے یا دوزخی دے ماسیوا د هغه کسانو نه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی په باره کښ خبر ورکړے دے

سوال: سورة محمد ۳۰ کښ دی چه "لَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ"؟

جواب د دے د ابن کثیر نه په تفسیر د سورة محمد کښ مونږ نقل کړے دے هلته کښ اوګورئ حاصل جواب دا دے چه دلته علم په ټولو منافقینو باندے مراد دے او سورة محمد کښ علم په بعضو باندے مراد دے۔

سوال: تفسیر جمل کښ وئیلے دی چه آیت د سورة محمد ناسخ دے د دے آیت او دا منسوخ دے؟

جواب: ټولو محققینو مفسرینو وئیلے دی چه دا سورت په ترتیب د نزول کښ ۱۱۳ دے او سورة محمد ۹۵ دے نو هغه د دے ناسخ نشی کیدلے دا رنګ صاحب د تفسیر جمل د دا سے مقام نه دے چه د هغه قول د محققینو مفسرینو په مقابله کښ نشی قبلیدلے

سوال: روایت ۳ د ابن عباس او د ابن مسعود نه مفسرینو دلته او سورة محمد کښ ذکر کړے دے هغه دلالت کوی چه نبی صلی الله علیه وسلم دوی پوره پیژندل؟

جواب: هغه روایت ضعیف دے یو راوی د هغے اسباط دے تهذیب التهذیب ص ۲۱۲ کښ هغه ته ضعیف وئیلے دی او بل راوی سدی کبیر دے په هغه باندے په دغه کتاب ص ۳۱ کښ کلام دے یعنی په باب د حدیث کښ کمزورے دے۔

سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ په دیکښ یو عذاب دنیوی دے او دویم عذاب قبر دے۔ ثُمَّ يُرَدُّوْنَ دیته مراد عذاب د قیامت دے دا سے الواحدی په الوجیز کښ او ابن کثیر ذکر کړے دی۔

وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا

او نور کسان دی چه اقرار ئے کړے دے په ګناهونو خپلو باندے ګډ کړے دی

عَمَلًا صَالِحًا وَّاٰخَرَ سَيِّئًا ط عَسَى اللّٰهُ

ښه عمل نیک او نور بد عمل. نیزدے ده چه الله تعالیٰ

اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ط اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

توبه قبوله کړی د دوی. یقینًا الله تعالیٰ بخښونکے دے

رَّحِيْمٌ ﴿۱۰۲﴾ خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً

رحم کوونکے دے. اخله د مالونو د دوی زکوٰة

تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ط

چه پاکوے به دوی لره (د ګناهونو نه) او زیاتی کوے دوی لره مال په سبب د هغے او دُعا کوه دوی ته

۱۰۲ دے آیت کښ دویم قسم د صحابو کرامو ته اشاره ده چه هغوی د غزوه تبوک نه پاتے شوے وو او بیا ئے ځانونه د جماعت په ستنو پورے تړلے وو او وعده ئے کړے وه چه مونږ ځان نه پرانیزو تر دے چه زمونږ توبه قبوله شی او رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ پرانیزی او دغسے اوشول۔ د ابوعثمان نه روایت دے چه نیشته په قرآن کښ یو آیت چه زما په نیز ډیر اُمید کیدے شی د هغے د پاره د دے اُمت، مګر دا دے، اشاره ده دیته چه دا آیت عام دے صحابو پورے خاص نه دے عَمَلًا صَالِحًا په نورجها دونو کښ شرکت کول او دا رنګ د دے ګناه نه زړه توبه کول۔ تُطَهِّرُهُمْ ضمیر د فاعل راجع دے صدقة ته او صیغه د مونث غائب ده یا صیغه د مخاطب ده چه نبی صلی الله علیه وسلم دے۔

وَتُزَكِّيْهِمْ دا صیغه د مخاطب ده یقینًا او مراد د تزکیه نه پاک کول دی د خبائث د نفاق نه او زیادت د مال او د درجاتو سره او نسبت د دے نبی صلی الله علیه وسلم ته سببی دے چه هغه دُعا د هغه ده چه وروستو د صَلِّ سره ذکر ده۔

إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ وَاللَّهُ سَمِيعٌ

یقینًا دُعا ستا ارام دے (دَ زړونو) دوی او الله تعالٰی هر څه اوري

عَلِيمٌ ﴿١٠٣﴾ أَلَمْ يَعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ

په هر څه پوهه دے. ایا دوی نه پوهیږی چه یقینًا الله تعالٰی، خاص هغه قبلوی

التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِۦ وَيَأْخُذُ الصَّدَقَٰتِ

توبه دَ بندګانو خپلو نه او قبلوی زکوٰتونه

وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٠٤﴾

او یقینًا الله تعالٰی خاص هغه ډیر توبه قبلوونکے رحم کوونکے دے۔

وَقُلِ اعْمَلُوا فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ

او نه ورته اووایه عمل کوئ پس خامخا وینی الله تعالٰی عمل ستاسو

سلنا دا ایت هم دَ دغه صحابه کرامو په باره کښی دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هغوی دَ زکوٰة قبض کولو نه منع کړے وه نو الله تعالٰی اوفرمائیل چه دَ دوی توبه قبول شوے ده نو زکوٰة دَ دوی قبض کوه او دا حکم بیا عام دَ هر امیرالمومنین ته چه دَ مؤمنانو زکوٰة دے قبض کوی او هغوی ته دے دُعا کوی۔

فائده: طریقه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا وه چه زکوٰة به صحابه کرامو راوړونو رسول الله صلی الله علیه وسلم به قبض کوو لیکن دا قبض په طریقه دَ وکالت سره وو، نه په طریقه دَ ملکیت سره اوبیا به ئے دَ هغې په مصرفونو کښی خرچ کوؤ او زکوٰة ورکوونکو ته به ئے دعا کوله خاص په لفظ دَ صلوٰة سره۔

سلنا دے ایت کښی ترغیب دے توبے کولو ته او صدقا تو ورکولو ته، اشاره ده په دے کښی دیته چه عبادت مالی سره عبادت بدنی یعنی توبه یوځائے کول پکار دی. او دا ایت دلیل دے چه په سلنا کښی عسلی دَ پاره دَ شک نه دے۔

یَأْخُذُ دا صفت دَ الله تعالٰی په حدیث دَ ابن مسعود کښی ذکر کړے دے چه إِنَّ الصدقة تقع فی ید الله تعالٰی قبل ان تقع فی ید السَّائل (ابن کثیر) - یقینًا صدقه دَ الله تعالٰی په لاس کښی پریوزی مخکښی دَ پریوتلو نه په لاس دَ سوال کوونکی کښی۔

وَرَسُوْلُهٗ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ وَسَتُرَدُّوْنَ اِلٰى

اورسول (صلی اللہ علیہ وسلم) دَهغه او مؤمنان - اوزر دے چه اوبه کرځولے شئ تاسو هغه ذات ته

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ

چه پوهه دے په پټو او ښکاره ؤ نو خبر به درکوی تاسو لره

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۵﴾ وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ

په هغه عملونو چه تاسو یئے کوئ - او نور کسان دی چه روستو کړے شوی دی

لِاَمْرِ اللّٰهِ اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ؕ

فیصلے دَ الله تعالیٰ ته یا به عذاب ورکوی دوی لره او یا به توفیق دَ توبے ورکړی دوی ته

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۰۶﴾ وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا

او الله تعالیٰ پوهه دے په هرڅه، حکمتونو والا دے. (او بعض منافقانو نه) هغه کسان دی چه جوړ کړے یے

۱۰۵ دا آیت هم خطاب وو اولاً صحابو ته او بیا تولو مؤمنانو ته.

نکته: په دے آیت کښ والمؤمنون، ذکر دے او آیت ۹۴ کښ دا نه وو ذکر شوے دَ دے وجه دا ده چه هغه آیت په باره دَ منافقینو کښ وو او هغوی دَ مؤمنانو نه پټ کارونه کول نو ملته ځکه مؤمنون ذکر نه شو او دا آیت په باره دَ مؤمنانو کښ دے او دَ مؤمنانو عمل دَ نورو مؤمنانو سره شریک وی او دَ هغوی په مخکښ وی او هغوی ترینه خبریږی او بعض مفسرینو ذکر کړے دی چه مراد دا دے چه دَ ژوندو عملونه په مؤمنانو رشته دارانو مړو باندے پیش کیږی او دَ دے دَ پاره حدیث دَ ابوداؤد طیالسی باندے استدلال کوی او هغه مسند احمد په روایاتو دَ انس رضی الله عنه کښ ذکر کړے دے (چه اعمال ستاسو په خپلوانو مړو باندے پیش کیږی) لیکن دَ دے په سند کښ مجهول راوی دے په دے استدلال صحیح نه دے بله وجه دا ده چه عرض مستلزم دَ علم نه دے لکه ثم عرضهم على الملائكة.

۱۰۶ دا دریم قسم صحابه کرام دی، دا درے کسان وو، کعب بن مالک، هلال ابن أمیه او مرارہ بن ربیع رضی الله عنهم دوی دَ غزوه تبوک نه پاتے شوے وو بغیر دَ څه عذر نه او بیا یئے په توبه کښ هم تاخیر کړے وو چه دَ هغے تفصیل په حدیث

مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّكُفْرًا وَّتَفْرِيْقًا بَيْنَ

جومات د ضرر ورکولو دپاره او د وجے د کفر نه او د جدا ایئ د پاره په مینځ

الْمُؤْمِنِيْنَ وَاِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللّٰهَ

د مؤمنانو کښ او مورچه د پاره د هغه چاچه خلاف ئے کړے د الله تعالیٰ

وَرَسُوْلَهٗ مِنْ قَبْلُ ؕ وَلَيَحْلِفُنَّ اِنْ اَرَدْنَآ

او د رسول (صلى الله عليه وسلم) د هغه مخکښ د دے نه، او خامخا قسمونه کوی دوی چه اراده نه ده کړے مونږ

اِلَّا الْحُسْنٰى ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ

مګر نیکی کول ۔ او الله تعالیٰ خبر ورکوی چه یقیناً دوی

لَكٰذِبُوْنَ ﴿١٠٧﴾ لَا تَقُمْ فِيْهِ اَبَدًا ؕ لَمَسْجِدٌ

خامخا دروغژن دی ۔ مه اودریږه ته په دے جومات کښ هیچرے ۔ خامخا هغه جومات

د بخاری کښ راغلی دے په دے ایت کښ د هغوی فیصله موقوف شوه او د دوی توبه پنځوس ورځے بعد قبوله شوے ده چه د هغے ذکر ۱۱۸ ایت کښ به رائی۔
اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ دا تردید په نسبت د بنده ګانو سره دے چه تاسو د دے انتظار اوکړئ یعنی یا عذاب یا توبه۔
۱۰۷ په دے ایت کښ زور نه ده په خاص عمل د منافقانو چه هغه مسجد ضرار جوړول وو او دائے د دے د پاره ذکر کړو چه د مؤمنانو او د منافقینو په مینځ کښ تمیز راشی۔ دا مسجد ضرار دے منافقانو په مقابله د مسجد قبا کښ جوړ کړے وو او دا طریقه دوی ته ښودلے وه ابو عامر راهب، چه هغه مرتد شوے وو او د قیصر روم سره ئے رابطه جوړه کړے وه۔ تفصیلی واقعه مفسرینو لیکلے ده هر کله چه دا مسجد ئے تیار کړو نو راغلل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او هغه د تبوک د پاره تیاری کوله نو دوی ورته اوئیل چه مونږ یو جومات جوړ کړے دے د معذورو خلقو د پاره او زمونږ دا خوښه ده چه ته په هغے کښ اول مونځ اوکړے او د برکت دعا اوکړے نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه اوس زه مشغول یم په تیاری د سفر کښ او هر کله چه واپس راشم نو بیا به ستاسو مسجد کښ مونځ اوکړم هر کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم لاړو تبوک ته

أُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ

چه بنیاد یې ایښودلې شوې دې په اخلاص د عقیدې باندې د اولې ورځې نه زیات لائق دې د دې

أَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ ؕ فِيْهِ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ

چه ته او درېږې په دې کښې (د مونځ د پاره) . په دې جومات کښې داسې سړي دي، چه خوښوي

أَنْ يَّتَطَهَّرُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ ﴿۱۰۸﴾

دا چه پاک کړي ځان ، او الله تعالیٰ مینه کوي د داسې پاکانو سره .

او واپس شو نو الله تعالیٰ داوحی را اولیږله او په دې آیت[۱۰۷] کښې د هغې مسجد څلور صفاتِ قبیحه یې بیان کړیدي او هغه په اصل کښې صفات دي د جوړوونکو د مسجد - اول ضرر ورکول بل مسجد ته، او ضرار او ضرر کښې دا فرق دې، ضرار هغه کار دې چه نه وي په هغې کښې هیڅ فائده او ستاګانو ته نقصان وي - او ضرر هغې ته وائي چه ستا په هغې کښې فائده وي او ضرر ګاونډي ته وي - دویم صفت کفر دې یعني جوړوونکو دا مسجد د کفر په عقیده باندې جوړ کړې دې - او دریم تفریق دې یعني دې د پاره یې جوړ کړیدې چه د مؤمنانو په مینځ کښې جدائي راشي - او څلورم اِرْصَاد دې یعني هغه څوک چه مشرک او مبتدع وي نو هغه له په دې مسجد کښې ځائې ورکوي د پاره د بیان یا د پاره د نورو مکرونو. فائده[۱]: د دې آیت نه معلومه شوه چه هر مسجد جوړول چه په هغې کښې د دې صفاتو نه یو صفت هم وي نو هغه مسجد ضرار دې - او په وخت د قدرت کښې د هغې نړول واجب دي - او شیخ الاسلام ابن تیمیه په کتاب الاقتضاء کښې ذکر کړې دي چه کوم جوماتونه چه د قبرونو د بزرګانو په خوا کښې جوړ شویدي د هغوي د دفن نه روستو د هغوي د تعظیم په نیت سره نو هغه هم په حکم د مسجد ضرار کښې راځي او شربیني لیکلي دي چه هر مسجد چه جوړ شي په فخر کولو، ریا کولو یا بل غرض وي سیوا د رضا د الله تعالیٰ نه نو هغه هم په حکم د مسجد ضرار کښې داخل دې - فائده[۲]: د دې نه معلومه شوه چه هر کار د دین چه څوک په غرضِ فاسد سره کوي نو په هغه کښې صفت د نفاق دې.

مِنْ قَبْلُ مخکښې د مسجد جوړولو نه یا مخکښې د غزوه تبوک نه . اِلَّا الْحُسْنٰى یعني دوي وئیل چه دا مونږ د بوډاګانو او معذورو خلقو د پاره جوړ کړیدې چه مسجد قبا او مسجد نبوي ته نشي رسیدلې.

[۱۰۸] په دې آیت کښې حکم د مسجد ضرار بیان شو چه په هغې کښې مونځ کول منع دي.

اَفَمَنْ اَسَّسَ بُنْيَانَهٗ عَلٰى تَقْوٰى مِنَ

ایا پس هغه څوک چه ایښے دے بنیاد د اٰبادئ خپلے په بیره د

اللّٰهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ اَسَّسَ

الله تعالیٰ نه او په رضامندئ د هغه غوره دے؟ او که هغه څوک چه ایښے دے بنیاد

بُنْيَانَهٗ عَلٰى شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهٖ

د اٰبادئ خپلے په غاړه د یو ړو د کمر باندے چه غورزیږی، پس او غورزیږی سره د دغه

فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ

په اور د جهنم کښ۔ او الله تعالیٰ توفیق د نیکئ نه ورکوی قوم

الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠٩﴾ لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِيْ

ظالمانو ته۔ همیشه به وی اٰبادی د دوی هغه چه دوی

لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى په دے کښ اختلاف دے چه مراد د دینه مسجد قبا دے یا مسجد نبوی دے۔ غوره په دیکښ اول قول دے لیکن دا حکم عام دے۔ مِنْ اَوَّلِ يَوْمٍ مراد ترینه هغه اوله ورځ د هجرت د نبی صلی الله علیه وسلم ده چه په هغے کښ مدینے منورے ته را ورسیدل او د مسجد قبا بنیا د یئے کیښودو او د دے لفظ نه عمر رضی الله تعالیٰ عنه استنباط کړیدے د پاره د شروع کولو د تاریخ د هجرت۔ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ دا صفت دے د صحابه کرامو۔ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا مراد د تطهر نه عام دے باطنی پاکوالے یعنی د شرک او گناهونو نه ځان بچ ساتل او ظاهری پاکوالے یعنی استنجاء کول او په اودس ما تے پسے زر بیا اودس کول او په اودس پسے دوه رکعتونه کول او په جنابت پسے زر غسل کول دا په مختلف روایاتو سره ثابت دی۔ ربط په دے ایت کښ د دغه دوو قسمونو جوماتونو په مینځ کښ تقابل دے او مسجد ضرار والو ته بیره ورکول دی او دا علت دے د پاره د ما قبل ایت۔ تَقْوٰى مِنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانٍ تقوٰی علتِ مادیه دے او رضوان علتِ غائیه دے او په دیکښ اشاره ده چه بنیاد د دوی قوی او مضبوط دے او د مقابل بنیاد کمزورے دے۔ او عَلٰى شَفَا جُرُفٍ الخ په طریقه د مثال دے د پاره د کمزورئ بنیاد او په دیکښ اشاره ده چه د مسجد ضرار بنیاد کمزورے دے۔ لَا يَهْدِي مراد د دینه

بُنۡيَانُهُمُ الَّذِيۡ بَنَوۡا رِيۡبَةً فِيۡ قُلُوۡبِهِمۡ اِلَّاۤ اَنۡ تَقَطَّعَ

جوړه كړې وه سبب د غصې په زړونو د دوی كښې (پس د نړيدلو د هغې نه) تر هغه وخته چه ټكړې ټكړې شي

قُلُوۡبُهُمۡ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ ۞ اِنَّ اللّٰهَ

زړونه د دوی. او الله تعالىٰ پوهه دے حكمتونو والا دے. يقيناً الله تعالىٰ

اشۡتَرٰى مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اَنۡفُسَهُمۡ

اخستے دی د مؤمنانو نه نفسونه د هغوی

وَاَمۡوَالَهُمۡ بِاَنَّ لَهُمُ الۡجَنَّةَ‌ ؕ يُقَاتِلُوۡنَ

او مالونه د هغوی په بدله د دې كښې چه دوی لره به جنت وی. جنګ به كوی

فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ فَيَقۡتُلُوۡنَ وَيُقۡتَلُوۡنَ‌

په لار د الله تعالىٰ كښې نو وژنی به كافرانو لره او دوی به هم وژلے كيدې شی

هدايت د اصلاح او د نجات دے. مجرفٍ هغه كمر په كنده د اوبو كښې يا په ويخ د كوهي كښې چه اوبو خوړلے وی نو په كښې كړې وی.

سلا هركله چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د مسجد ضرار د نړولو حكم او كړو او صحابه كرامو هغه اونړوو نو په هغې منافقان ډير غصه شول ليكن هيڅ مقابله يې نه شوه كولے دے آيت كښې هغې ته اشاره ده.

بُنۡيَانُهُمۡ دا مصدر په معنی د مفعول دے او دلته مضاف محذوف دے يعنی هدام بنياهم (نړول د آبادئ د دوی)) او رِيۡبَةً نه مراد غضب او غيظ دے يا بنيان نه مراد نفس آبادول د مسجد ضرار دی يعنی مصدر په خپله معنی سره دے او مضاف محذوف نه دے يعنی هركله چه مسجد ضرار يې آباد كړو نو سبب شو د ياره د زيادت د منافقت نو مراد د ريبة نه نفاق دے.

اِلَّاۤ اَنۡ تَقَطَّعَ اِلا په معنی د الی اَنۡ سره دے او مراد د دينه مرګ دے په غصه او په نفاق باندے او ويلے شويدی چه مراد د دے نه توبه ده په اخلاص د زړه سره.

وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ

وعده کړیده دَ دوی سره الله تعالیٰ وعده رشتینے، چه ذکر شویده په تورات او په انجیل کښ

وَالْقُرْاٰنِ ؕ وَمَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ

او قرآن کښ۔ او څوک بهٔ پوره کوونکے دے لوظ خپل لره دَ الله تعالیٰ نه

فَاسْتَبْشِرُوْا بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ ؕ

نو خوشحاله شئ په خرڅولو خپلو سره هغه خرڅول چه سودا کړیده تاسو په هغے الله تعالیٰ سره۔

وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۱۱﴾ اَلتَّآئِبُوْنَ

او دا کامیابي لویه ده۔ (دا خلق) توبه کوونکی دی

الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ

بندګی کوونکی دی ستائنه کوونکی دی (دَ الله تعالیٰ) ګرځیدونکے دی (دَ جهاد دپاره) رکوع کوونکی دی

السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ

سجده کوونکی دی (الله تعالیٰ ته) حکم کوونکی دی په نیکئ سره او منع کوونکی دی

عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ؕ

دَ بدئ نه او ساتنه کوونکی دی دَ پولو دَ الله تعالیٰ۔

ملا دے ایت کریمه کښ ترغیب دے جهاد ته په لس تاکیداتو سره روستو دَ زجر شدیدانه په پریښودونکو دَ جهاد باندے رپه هغه لس تاکیداتو نمبر لګولے شویدی اشْتَرٰی اه. دا په طریقه دَ تمثیل سره دے چه دَ مؤمنانو نفسونه او مالونه دَ الله تعالیٰ په طاعت کښ خرچ کیدل دا پشان دَ مبیعه (سودا) ده او جنت دَ هغے عوض پشان دَ قیمت دے۔ یُقَاتِلُوْنَ دا بیان دَ اَنْفُسَهُمْ دے چه مبیعه ده. نو په دیکښ اشاره ده چه مالونه او نفسونه دَ مؤمنانو ملکیت دَ الله تعالیٰ دے نو مؤمنانو لره اختیار نیشته چه دا بغیر دَ رضا دَ الله تعالیٰ نه خرچ کړی۔ اَنْفُسَهُمْ دا ئے دَ دے وجے نه مخکښ کړو چه عبادات بدنیه ډیر دی په نسبت دَ عباداتِ مالیو۔ او دَ دے ایت پشان ایت دَ سورة صف ښه هم دے۔

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١١٢﴾ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ

او زیری ورکه داسی ایمان والو ته ۔ نه دی جائز پیغمبر لره او هغه کسانو لره

آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا

چه ایمان والا دی، دا خبره چه بخنه غواړی مشرکانو لره اگر که وی دا

أُولِي قُرْبَىٰ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ

خپلوان دَ دوی ، روستو دَ هغې نه چه ښکاره شویده دوی ته

۱۱۲ په دے ایت کښې دَ مؤمنانو لس صفات ذکر دی دَ ترغیب دَ پاره۔ او دَ دے دَ پاره چه دَ صفت دَ جهاد سره دا لس صفات هم ضروری دی دَ پاره دَ حصول دَ درجاتو دَ جنت او دا صفات باطنیه او ظاهریه بدنیه ټولو ته شامل دی۔ التَّائِبُونَ مراد دَ دے نه دَ ټولو ګناهونو نه توبه کول دی که شرک یا کفر وی او که نور ګناهونه کبیره او صغیره وی په حقوق الله او په حقوق العباد کښې۔ الْعَابِدُونَ مراد دَ دے نه ټول عبادات قلبیه ظاهریه، بدنیه او مالیه دی۔ السَّائِحُونَ یو معنی روژه دار ځکه چه روژه دار سړے خوراک او څښاک او شهوات پریږدی، دویمه معنی مجاهدین، دریمه معنی مهاجرین، څلورمه معنی طالبان دَ علم شرعیی وئیلے دی چه سیاحت دَ پاره دَ طلب دَ علم کښې ډیرے فائدے دی اوله دا چه دَ ډیر مختلف علماؤ سره ملاقاتونه اوشی او مختلف علمونه حاصل کړی دویمه دا چه دَ ځان نه په لوئے علماؤ او وینی نو خپل ځان به ورته سپک ښکاره شی دریمه دا چه دَ سفر دَ تکالیفو سره به عادت شی۔ او پینځمه معنی دَ السَّائِحُونَ ګرځوونکی خپلو فکرونو لره په توحید دَ الله تعالیٰ کښې۔ الْمَعْرُوفِ توحید وسنت دے او المنکر شرک وبدعت دے دا رنګ دا دواړه لفظونه هر نیکئ او بدئ ته شامل دی۔ وَالنَّاهُونَ په دیکښې واؤ ذکر شو یو دَ دے وجے نه چه واؤ دَ پاره دَ جمع دے نو مطلب دا شو چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر په جمع صفت دَ مدح دے یو ائے یو نه کافی کیږی۔ دویمه وجه دا ده چه دا واؤ ثمانیه دے مطلب دا دے چه دَ عربو عادت دا وو چه کله اووه څیزونه شمار کړی نو دَ اتم په ابتداء کښې واؤ ذکر کوی۔
وَالْحٰفِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ په دے صفت کښې اشاره ده چه په دے ټولو کارونو کښې دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ حدودو رعایت کول ضروری دی۔

أَنَّهُمْ أَصْحٰبُ الْجَحِيمِ ﴿۱۱۳﴾ وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ

چه يقيناً دوی جهنم والا دی. او نه وه بخنه غوښتل

إِبْرٰهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَا

دَ ابراهيم (عليه السلام) خپل پلار لره مګر دَ وجې دَ وعدې نه وه چه کړې وه وعده

إِيَّاهُ ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ

ده ورله (پلار) سره، پس هر کله چه ښکاره شو ده ته چه يقيناً دے دُشمن دَ الله تعالی دے

تَبَرَّأَ مِنْهُ ۚ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ ﴿۱۱۴﴾

توجدا شو دَ هغه نه، يقيناً ابراهيم (عليه السلام) ډير نرم زړے او صبرناک وو.

---

اولحاظ دَ حدودو نه کول بدعت دے. وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ اشاره ده چه ماقبل صفتونه بغير دَ ايمان نه سبب دَ بشارت نشي کيدلے.

۱۱۳ هر کله چه صفات دَ کمال دَ مؤمنانو دَ پاره ذکر شول نو په دې ايت کښې دَ مشرکانو نه دَ براءت کولو يو خاص طريقه دَ مؤمنانو دَ پاره ذکر کوی هغه دا ده چه پيغمبر او مؤمنانو له مشرکانو دَ پاره بخنه غوښتل منع دی او کوم چه حديث کښې راغلی دی رب اغفر لقومي فإنهم لا يعلمون. نو دَ هغې جواب دا دے چه هغه دَ دے ايت دَ نزول نه مخکښې وو بل جواب دا دے چه اِغْفِر په معنی دَ اِهْدِ دے.

مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ دَ دے دوه مطلبه دی يو دا دے چه په قرآن کريم سره معلومه شوے ده چه مشرک ته بخنه نه کيږی لکه په سورة نساء ۴۸ ۱۱۶ کښې نو دے به هميشه جهنمی وی لکه په سورة مائده ۷۲ کښې او دويم مطلب دا دے چه کله مړشی په شرک باندے نو ښکاره شوه دا خبره چه دے هميشه جهنمی دے. په دے توجيه سره دا خاص دے په روستو دَ مرګ پورے ليکن اوله توجيه غوره ده ځکه مشرک ژوندی دَ پاره سوال کَ مغفرت منع دے هاں سوال دَ هدايت ورله جائز دے.

۱۱۴ دا جواب دے کَ يو سوال نه چه ابراهيم عليه السلام کَ مشرک پلار دَ پاره بخنه غوښتلے ده لکه سورة ابراهيم ايت ۴۱ او سورة شعراء ايت ۸۶ کښې راغلے دی. نو دَ دے جواب او شو چه ابراهيم عليه السلام هغه سره وعدة کړې وه نو خپله

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ إِذْ هَدٰىهُمْ

او نه دے الله تعالیٰ چه ګمراه (ګنهګار) کړی یو قوم پس د هغے نه چه هدایت یې کړے دوی ته

حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ ؕ إِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ

تر هغے چه ښکاره (بیان) کړی دوی ته هغه څه چه ځان بچ کوی د هغے نه. یقیناً الله تعالیٰ په هر

شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿۱۱۵﴾ إِنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

څیز پوهه دے. یقیناً الله تعالیٰ خاص هغه لره بادشاهی ده د اسمانونو

وَالْأَرْضِ ؕ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ

او د زمکے. ژوندی کول کوی او مړه کول کوی. او نیشته تاسو لره د

وعده یې پوره کړه او وعده د ده ذکر ده په سورة مریم ۵۲ او په سورة ممتحنه ۴ کښ. بیا سوال دا دے چه هرکله هغه پلار یې مشرک وو نو وعده د استغفار یې ولے کوله. فَلَمَّا تَبَيَّنَ دے سره اشاره اوشوه جواب ته حاصل د جواب دا دے چه د وعدے کولو په وخت کښ ده ته یقین نه وو راغلے چه دا کافر او مشرک دے او هرکله چه یقین یې راغے نو استغفار غوښتل یې پریښودو. دویمه توجیه دا ده چه د وعدے په وخت کښ هغه ته وحی نه وه راغلے چه مشرک د پاره استغفار منع دے نو هرکله چه ورته وحی راغله د منع د استغفار د پاره د مشرک نو بیا یې استغفار بند کړو دا توجیه غوره ده. اَوَّاهٌ قرطبی د دے پنځلس معانی ذکر کړیدی ټول راجع دی نرم والی د زړه ته او دا متعلق دے د وعده کولو د پلار سره د استغفار او حَلِيْمٌ متعلق دے د استغفار غوختلو سره.

۱۱۵ دا جواب د بل سوال دے سوال دا وو هرکله چه استغفار د مشرک د پاره منع وو نو د دے نه مخکښ چه چا استغفار غوښتلے دے نو هغوی ګنهګار شول؟ په دے ایت کښ جواب اوشو حاصل د جواب دا دے چه قانون د الله تعالیٰ دا دے چه څو پورے یو حکم نه وی بیان کړے نو د هغے په مخالفت کولو سره مؤمن سړے نه ګمراه کیږی ځکه معصیت خو وئیلے شی عملاً د مامور به ته او ارتکاب د منهی عنه ته. او مراد د لِيُضِلَّ نه حکم کول دی د ګمراهئ یا سزا ورکول دی د ګمراهئ. فائده: د دے ایت نه معلومه شوه چه احکام شرعیه بنا دی په وحی باندے. فائده: دا رنګ د ورود د شرعے نه وړاندے په چا باندے حکم د ګنهګارئ نه شی کیدے.

دُوۡنِ اللّٰهِ مِنۡ وَّلِیٍّ وَّلَا نَصِیۡرٍ ﴿۱۱۶﴾

الله تعالٰی نه سیوا څوک دوست او نه مددګار.

لَقَدۡ تَّابَ اللّٰهُ عَلَی النَّبِیِّ وَالۡمُهٰجِرِیۡنَ

یقینًا مهربانی کړیده الله تعالٰی (په اسانتیا راوستلو) په نبی (صلی الله علیه وسلم) او په مهاجرینو

وَالۡاَنۡصَارِ الَّذِیۡنَ اتَّبَعُوۡهُ فِیۡ سَاعَةِ

او په انصارو هغه کسان چه تابعداری یې کړیده دده په حالت

الۡعُسۡرَةِ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا كَادَ یَزِیۡغُ قُلُوۡبُ

د تنګسیا کښې پس د هغې نه چه نیږدې وه چه کاږه شوې وې زړونه

فَرِیۡقٍ مِّنۡهُمۡ ثُمَّ تَابَ عَلَیۡهِمۡ ؕ اِنَّهٗ

د یوې ډلې د دوی نه بیا مخکوالے راوستو الله تعالٰی په دوی باندې. یقینًا هغه

بِهِمۡ رَءُوۡفٌ رَّحِیۡمٌ ﴿۱۱۷﴾ۙ وَّعَلَی الثَّلٰثَةِ

په دوی باندې شفقت کوونکے رحم کوونکے دے. (او توبه یې قبوله کړه) د هغه دریو

ف۱۱۶ داعلت د مخکښې ایت دے چه قانون بیانول د الله تعالٰی اختیار دے ځکه چه بادشاهی د الله تعالٰی د پاره ده- او په دے ایت کښې دعوه د توحید ده په رد د شرک فی التصرف سره- یُحۡیِیۡ وَیُمِیۡتُ احیاء او اماتت حقیقیه مراد دے او جائز ده چه هدایت او ګمراهی تربیه اشارةً مراد شی.

ف۱۱۷ په دے ایت کریمه کښې زیرے دے مؤمنانو ته په قبولیت د توبې او په دے ایت کښې اشاره ده تکالیفو ته په غزوه د تبوک کښې چه ګرمی سخته وه سفر اوږد وو او په سوړلو باندے هم نمبر په نمبر تلل وو او توخه د دوی زړے کهجورے وے- بیا د توبې نه مراد په دے ایت کښې تخفیف او اسانتیا راوستل دی په اول تاب کښې او زړونه کلکول دی په دویم تاب کښې- په دے کښې اشاره ده چه نبی ع م توبې ته محتاج دے لیکن د هغه توبه د ګناه نه نه ده بلکه اسانتیا راوستل مراد دی- یَزِیۡغُ مراد د زیغ نه ترک د جهاد دے ارتداد نه دے مراد-
فائده: جصاص وئیلے دی چه په دے کښې مداحه د صحابه کرامو ده چه د هغوی

الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا ؕ حَتّٰۤى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ

کسانو چه روستو کړے شو بوه معامله د هغوی ـ تردے پورے چه کله تنګه شوه په دوی باندے

الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ

زمکه سره د ارتوالی نه او تنګ شو په دوی باندے زړونه د دوی

وَظَنُّوْۤا اَنْ لَّا مَلْجَاَ مِنَ اللّٰهِ اِلَّاۤ اِلَيْهِ ؕ

او یقین اوکړو دوی چه نیشته دے ځائے د پناه ځ د عذاب د الله تعالیٰ نه مګر هغه ته دے ـ

ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوْبُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ

بیا توفیق د توبے ورکړو دوی ته، دے د پاره چه توبه اوکړی یقینًا الله تعالیٰ

هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۱۸﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

خاص هغه توبه قبلوونکے رحم کوونکے دے ـ اے ایمان والو !

ظاهر او باطن موافق وُو او رد دے په طعن کوونکو (روافض) باندے ـ

۱۱۸ په دے آیت کښ زیرے دے د قبولیت د توبے د هغه دریو کسانو چه په آیت ۱۰۶ کښ تیر شوی دی ـ خُلِّفُوْا، د کعب رضی الله تعالیٰ عنه نه روایت دے چه مراد د دے نه روستو والے د حکم د دوی دے روستو والے د جهاد نه مراد نه دے ځکه هغه صفت د منافقانو دے ـ

ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ، دا دے وجے نه چه د دوی سره صحابه کرامو معامله پریښودلے وه او خبرے یې ورسره نه کولے په حکم د نبی صلی الله علیه وسلم سره ـ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ، دا د دے وجے نه چه ملګری به کله دوی سره مخامخ شول نو سخته وینا به یې ورته کوله بل دا چه په دوی باندے په زړونو د دوی کښ ډیر غم او فکر راغلے وو ـ ابوبکر وراق نه روایت دے چه د توبة نصوح علامت دا دے چه د ګناه د وجے نه په انسان باندے د غمے حالت راشی ـ

حَتّٰۤى اِذَا، دا غایه ده د خُلِّفُوْا د پاره او ثُمَّ تَابَ عطف دے په اذا ضاقت باندے ـ

اتَّقُوا اللّٰهَ وَكُونُوا مَعَ الصّٰدِقِينَ ﴿۱۱۹﴾

یرهٔ کوئ دَ الله تعالیٰ نه او شئ ملګری دَ رشتینو خلقو.

مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُمْ

نه ده مناسب مدینې والو لره او هغه چا لره چه ګیرچاپیره دی

مِّنَ الْأَعْرَابِ أَنْ يَّتَخَلَّفُوا عَنْ رَّسُولِ

دَ بانډچیانو نه چه روستو پاتې شي دَ رسول الله (صلی الله علیه

اللّٰهِ وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنْفُسِهِمْ عَنْ نَّفْسِهِ ط

وسلم) نه او نه دې غوره کوی خپل ځانونه دَ هغه دَ ځان نه.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَّلَا نَصَبٌ

دا حکم په دې وجه دې چه نه رسی دوی ته تنده او نه ستړیوالې

وَّلَا مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَلَا يَطَـُٔونَ

او نه لوږه په لار دَ الله تعالیٰ کښ او نه ګرځی دوی

مَوْطِئًا يَّغِيظُ الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ

په یو لاره چه غصه کوی کافرانو لره او نه حاصلوی دوی دَ

عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ بِهٖ عَمَلٌ صَالِحٌ ط

دشمن نه څه څیز مګر لیکلې کیږی دوی لره په بدله دَ هغې کښ عمل نیک.

ربط: دا ترغیب دے جهاد ته او منع ده دَ پاتے کیدلو دَ جهاد نه پس دَ ذکر دَ پاتے کیدونکونه، او ترغیب دے په مزکرتیا دَ مجاهدینو او دَ رشتینو خلقو- او په دے آیت کښ دوه امرونه دی اول کښ اصلاح دَ نفس انفرادی مراد ده په تقوٰی سره او په دویم کښ اصلاح اجتماعی مراد ده یعنی دَ صادقینو مزکرتیا اختیارول-

إِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿۱۲۰﴾

يقيناً الله تعالىٰ نه ضائع كوي (برباد وي) ثواب دَ ښائسته عمل كوونكو۔

وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً

او نه خرچ كوي دوى څه خرچ لږ او نه ډير

وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ

او نه سفر كوي دوى په يو ميدان كښې مګر ليكلے كيږي دوى له دَ دې دپاره چه بدله به وركړي دوى ته

اللّٰهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۲۱﴾

الله تعالىٰ ډيره ښائسته دَ هغے عملونو چه دوى به ئے كوي۔

ن۱۲۰ په دے ايت كښې ترغيب دے جهاد ته يو په دے طريقه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم جهاد كوى او په خپل نفس تكليف تيره وى نو تاسو ولے نه كوئ او ولے ځان له تكليف نه وركوئ بله طريقه داده چه په جهاد كښې هر يو تكليف تيرول سبب دَ ثواب دے۔ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا، مطلب دا دے چه كله مؤمنان مجاهدين په زمكه ګرځي او كافران ورته ګوري او غصه كيږي دا هم ثواب دے۔ وَلَا يَنَالُونَ، مراد دَ دے نه دا دے چه كافران قتل كول يا هغوى له شكست وركول يا دَ هغوى نه غنيمت حاصلول دا ټول ثوابونه دى۔ أَن يَتَخَلَّفُوا، دَ هغه دَ حكم نه يا دَ هغه په مركرتيا كښې دَ جهاد كولو نه خلاف كول۔ بِأَنفُسِهِمْ، يعنى نبى صلى الله صلى الله عليه وسلم ډير مصيبتونه او تكليفونه بدانى په جهاد كښې په ځان باندے تيروى نو تاسو دَ هغه نه غوره نه يئ نو تاسو مصيبتونه دَ جهاد تير كړئ۔

بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ، يعنى دا تكليفونه پخپله عبادات نه دى ليكن دَ فى سبيل الله دَ وجے نه په دے سره اجر دَ عملِ صالح ليكلے كيږي۔ الْمُحْسِنِينَ كښې اشاره ده توحيد او سُنت ته يعنى دَ ثواب اصل سبب احسان دے۔

ن۱۲۱ په دے ايت كښې هم نور عملونه دَ مجاهد ذكر دى چه په هغے سره هغه ته ثواب حاصليږى او دا عملونه پخپله عبادات دى دَ دے وجے نه دَ دے سره بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ نه دے ذكر كړے۔ او مخكښې پخپله نيك اعمال نه وؤ ليكن دَ جهاد دَ وجے نه ثواب دَ نيك عمل ور باندے وركولے كيږى۔ او دَ دے وجے نه په هغه

وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً ۚ

او نه ده مناسب چه مؤمنان دے اووځي (دَ جهاد دپاره يا دَ علم دپاره) ټول (په يو ځائے)

فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ

پس ولے نه اوځي دَ هرے ډلے دَ دوی نه څه کسان

لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ

دے دپاره چه پوهه حاصل کړي په دين کښ او چه يره ورکړي قوم خپل ته (په بيان دَ دغه علم)

إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾

چه واپس شي دوی ته (قوم ته) دے دپاره چه دوی (قوم) ځان بچ کړي دَ ګناهونو نه.

ايت کښ محسنين ذکرکړو يعني دغه عملونه دَ احسان دَ وجے نه صالح ګرځي او په ايکښ اَحْسَنَ ذکرکړو اشاره ده چه دا عملونه په خپله احسن دی. وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا، مراد دَ دينه سفرکول دی په نيت دَ جهاد سره. وَادِي، په اصل کښ هغه فراخ ځائے دے چه په مينځ دَ غرونو او ډيرکوکښ وی چونکه هغه کنداه (دره) هم دَ او ميدان هم دے نو دَ وادی اطلاق په دواړوکيږی.

١٢٢ په دے ايت کښ ترغيب دے علم دَ دين ته دَ پاره دَ تکميل دَ جهاد يعني دَ جهاد دپاره مخکښ دَ هغے نه علم دَ دين ضروری دے. حاصل دَ ايت دا دے چه ټول کسان جهاد له مه اوزئ (کله چه جهاد فرض کفائي وی) بلکه بعض کسان جهاد له اوزئ او بعض کسان دَ علم دَ دين دپاره ځان وقف کړئ نو دا ايت دليل دے په دے خبره چه علم دَ دين ټول فرض کفائي دے او علم دَ هغے احکامو چه فرض عين وی هم فرض عين دے. فائده: په ايت کښ توجيهات دی اوله دا چه لِيَنْفِرُوا نه مراد وتل دی دَ جهاد دپاره ځکه چه مخکښ ايا تونوکښ ترغيب دَ جهاد ذکر شو. طَائِفَةٌ، دَ دينه مراد طائفه دَ مجاهدينو ده. او لِيَتَفَقَّهُوا ضمير دغه طائفے ته راجع دے په دے شرط سره چه نبی صلی الله عليه وسلم ورسره وی نو دَ هغه نه دين ايزده کوی يا راجع دے فِرْقَةٍ ته يعني دَ جهاد نه پاتے شوی کسان دِ دين ايزده کړي او دا په زمانه دَ نبی پورے خاص نه دے. دويمه توجيه دا ده چه لِيَنْفِرُوا نه مراد وتل دَ طلب دَ علم دپاره دی او طائفه نه مراد طلب ګاره دَ علم دی. لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ، مراد دَ دين نه کتاب الله او سنت دے

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ قَٰتِلُوا۟ ٱلَّذِينَ يَلُونَكُم

اے ایمان والو جنګ کوئ د هغه کسانو سره چه نیژدے دی تاسو ته

مِّنَ ٱلْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا۟ فِيكُمْ غِلْظَةً ۚ وَٱعْلَمُوٓا۟

د کافرانو نه او او دے مومی هغوی په تاسو کښې کلکوالے۔ او پوهه شئ

أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُتَّقِينَ ﴿١٢٣﴾ وَإِذَا مَآ أُنزِلَتْ

چه یقینًا الله تعالیٰ ملګرے د متقیانو دے۔ او کله چه نازل کړے شی

سُورَةٌ فَمِنْهُم مَّن يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ

یو سورت نو بعض د دوی نه هغه څوک دے چه وائی کوم یو لره ستاسو نه زیاتی کړو

هَٰذِهِۦٓ إِيمَٰنًا ۚ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فَزَادَتْهُمْ

دے سورت ایمان، پس هر چه هغه کسان دی چه ایمان ئے راوړے دے نو زیات ئے کړه هغوی لره

إِيمَٰنًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿١٢٤﴾ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ

ایمان او هغوی خوشحالی کوی (د دے سورت په نازلیدلو)۔ او هر چه هغه کسان دی

او تفقه نه مراد داسے علم دے چه په هغے سره د حکمتونو او د حکمونو استنباط کیدیشی او په حدیث کښې وارد دی "مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ"۔ وَلِيُنذِرُوا، مراد د انذار نه تبلیغ د قرآن او سنت دے نو د هغے په منلو سره او عمل کولو سره تقلید نه لازمیږی ځکه چه دا علم دے په دلیلونو سره او تقلید خو خبر منل بغیر د دلیل نه دی۔

۱۲۳ په دے ایت کښې هم حکم د قتال دے او تعلیم د طریقے د جهاد دے چه د نږدے نه دے شروع کیدے شی۔ او غِلْظَةً، په معنیٰ د کلکوالی او د غیرت دے۔ فائده: په دے دوارو ایاتونو کښې په ترتیب سره درے ذمه وارئ د مؤمنانو ذکر شوے اول علم د دین دویم دعوت دریم قتال فی سبیل الله۔

۱۲۴ هر کله چه تردے ځائے پورے د دے سورت تفصیلی احکام ذکر شول او خصوصًا مسئله د جهاد نو په دے ایت کښې رد او زجر دے په منافقینو باندے کله چه هغه سورت نازل شو چه په هغے کښې مسئله د جهاد وه نو منافقانو اعتراض کوؤ چه

فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا

چه په زړونو دَ هغوی کښې مرض (دَ نفاق) دے نو زیاتوی (دا سورت) هغوی لره پلیتی

إِلَىٰ رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ ﴿١٢٥﴾

دَ پلیتئ دَ هغوی سره او مره کیږی دوی پیدا سے حال کښې چه کافر دی۔

أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً

او ایا دوی سوچ نه کوی چه یقیناً دوی باندے امتحان راځی په هر کال کښې یو ځل

أَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٢٦﴾

یا دوه ځله بیا دوی نه کوی توبه او نه دوی نصیحت قبلوی۔

وَإِذَا مَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ

او کله چه نازل شی یو سورت (چه دَ منافقانو عیب پکښې وی) نو گوری بعض دَ دوی

إِلَىٰ بَعْضٍ هَلْ يَرَاكُم مِّنْ أَحَدٍ ثُمَّ

بعضو ته۔ (او دَ سترگو په اشاره یو بل ته وائی) ایا وینی تاسو لره څوک، بیا

کَ دے دَ نازلیدلو څه فائده ده نو جواب اوشو چه په دے سره دَ مؤمنانو ایمان زیاتی کیږی ځکه چه هغوی په دے باندے عمل کوی۔ فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا۔ مجاهد نه نقل دے چه دا آیت دلیل دے چه ایمان زیادت قبلوی یعنی ایمان کښې زیاتے راځی که په درجه دَ نفسِ تصدیق او یقین کښې وی او که اعمالو سره وی۔

۱۲۵ دا بیان دَ حال دَ منافقینو دے چه حکم دَ قتال چه کله نازل شی نو منافقان دَ هغې نه خلاف کوی او سستی کوی نو دَ هغوی پلیت والے نور زیات شی۔ او دَ دے زیادت ذکر په سورة مائده ۵۲ او اسراء ۸۲ کښې هم شته او رجس دَ منافقت په دے سورة ۹۵ کښې ذکر دے۔

۱۲۶ دے کښې زورنه ده منافقینو ته چه په دوی باندے هر کال امتحان راځی په فرض کولو دَ جهاد سره یو ځل یا دوه ځله لیکن دوی دَ منافقت نه توبه نه او باسی یعنی سرة دَ وجود دَ سبب دَ توبے نه دوی توبه نه او باسی نو دا علت دے دَ مَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ۔ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ۔ یعنی غزاگانے به هر کال یو یا دوه ځله واقع کیدلے۔ يَذَّكَّرُونَ، توبه دَ افتتان سره تعلق لری او تذکر دَ اوریدلو دَ قرآن سره تعلق لری۔

انْصَرَفُوْا ۭ صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ

اوگرځي (د مجلس ستاسو نه). گرځوي الله تعالیٰ زړونه د دوی (د حق نه) په دې وجه چې دا قوم دے

لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿١٢٧﴾ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ

چې نه پوهیږي. یقینًا راغلې دے تاسو ته رسول (صلی الله علیه وسلم) د

اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ

جنس ستاسو نه. گران دے په هغه باندے هغه کار چې تاسو پرے تکلیف مومئ، او حرص کوونکے دے

عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٢٨﴾

ستاسو په هدایت، خاص د مؤمنانو سره ډیره مینه کوونکے رحم کوونکے دے.

ف١٢٧ په دے کښې هم بیان د حال د منافقینو دے په هغه وخت کښې چې بیان شي سورت د جهاد او ذکر د قبائحو د منافقانو لکه دا سورت نو دوی د هغې مجلس نه د تیښتې کوشش کوي. هَلْ يَرٰىكُمْ، دلته یشیرون پټ دے یعنې په سترګو یو بل ته په اشارو سره تپوس کوي چې صحابه کرام مونږ ته ګوري او که نه. لیکن صحابه کرامو به د نبي صلی الله علیه وسلم په مجلس کښې سرونه ښکته کړي وو لکه چې په سرونو باندے ئې مارغان ناست وي او د منافقانو خو به خیال داوو چې دوی مونږ ته نه ګوري د ثُمَّ انصرفوا نه مخکښې دا عبارت پټ دے. لَا يَفْقَهُوْنَ، دا صفت د دوی په ٨١ او ٨٧ کښې تیر شوے دے. صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ، دا دعا د شر ده (ښیرے) منافقانو ته پس د بیان د حالاتو د هغوی نه تفصیلًا یا جمله خبریه ده.

ف١٢٨ دا بیان د صداقت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او د نبي علیه السلام شپږ صفات پکښې ذکر دي.

اول صفت رَسُوْلٌ، دا په صفاتو د بشریت کښې اعلیٰ صفت دے او اشاره ده چې دے د ځان نه خبرے نه جوړوي نو د دهٔ اتباع فرض ده.

دویم مِنْ اَنْفُسِكُمْ، یعنې ستاسو د جنس نه دے عربي دے، او بشر دے او په دے کښې اشاره ده شرافت د نسب د هغه ته او اسانتیا د حصول د علم ته د هغه نه ځکه د هم جنس نه استفاده کیدے شي.

دریم عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ، یعنې تاسو ته چې کوم شے تکلیف درکوي نو د هغې

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ (١) لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ (٢) ط

پس که دوی مخ واړوي نو ووایه بس دی ماته الله تعالیٰ، نشته هیڅوک مستحق د عبادت سیوا د هغه

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ (٣) وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ (٤) الْعَظِيْمِ ﴿١٢٩﴾ ع

په هغه باندې ما ځان سپارلے دے او هغه مالک د عرش لوئے دے.

ع ١٧/٧ ٥

بوج په هغه باندے وی او هغه پرے خفه کیږی. په دے کښ اشاره ده دیته چه د هغه په طریقه کښ په اُمت باندے اسانتیا ده.

څلورم حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ، مطلب دا دے چه هغه کوشش کوی د دے خبرے چه تاسو مؤمنان شئ او جنت ته داخل شئ.

پنځم رَءُوْفٌ، په مؤمنانو باندے ډیر شفقت کوونکے دے او ستاسو د حفاظت دعا گانے غواړی.

او شپږم رَحِيْمٌ، په مؤمنانو رحم کوونکے دے. په دے دواړو کښ اشاره ده دے خبرے ته چه هغه به په آخرت کښ د مؤمنانو د پاره شفاعت کوی او په دُنیا کښ هم د هغه د شفقت او رحمت ډیرے واقعے موجود دی.

ف ١٢٩ په دے آیت کښ بیان د مسئلے د توحید دے په څلورو جملو سره چه په آیت کښ په هره جمله نمبر لګیدلے دے اوله جمله په مقابله د منکرینو کښ ویلے کیږی دلته هم د کافرانو د ټولو قسمونو او د منافقانو د خبا ثتو په مقابله کښ ذکر ده. دویمه جمله علت د اولے دے او دریمه تفریع ده په اول دواړو جملو باندے او څلورمه علت دے د ما قبل د پاره او ربوبیت د عرش مستلزم دے ربوبیت د ټول عالم لره. په روایت د ابوداود کښ راغلی دی چه چا دا څلور کلمات صبا او بیګا اُووه اُووه ځله لوستل نو الله تعالیٰ به د هغه نه غمونه لرے کوی دا روایت مرفوعًا ضعیف دے او موقوف په سند حسن سره دے.

الحمد لله چه ختم شو تفسیر د سورة التوبة او د اول جلد دریمه حصه

بحمد الله ختم شوه.

کاتب: ارقم جان (خدروخیل)

# فهرست دَ مضامينو